




# د کندهار یادابښتونه

## لومړی او دوهم ټوک











علامه اکاډیمیسن پوهاند

## عبدالشکور رشاد



ترتیب او سمون

**محمدمعصوم هوتک**

# د کندهار یادابنتونه

## لومړی ټوک

لیکوال

علامه اکاډیمیسن پوهاند
عبدالشکور رشاد



بسم الله الرحمن الرحیم



## د کتاب ځانګړنې:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | **د کندهار یادښتونه (لومړی او دویم ټوک)** |
| لیکوال | :: | علامه اکاډیمیسن پوهاند رشاد |
| ترتیب او سمون | :: | محمد معصوم هوتک |
| خپرندوی | :: | د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه ـ جرمني |
| چاپ کال | :: | ۱۳۸۶ ل (۲۰۰۷ ع) |
| چاپ شمېر | :: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| د خپرونو لړ | :: | (۹۴ او ۹۵) |
| کمپوز/ډیزاین | :: | مطیع الله روهیال |

**چاپځی:**

**د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه ـ پېښور**

Tel:+92-91-2564513/Email:danish2k2000@yahoo.com

د سریزې پر ځای:

# د علامه استاد رشاد

# د کندهار پر یاد ښتونو

# یو یادښت

له اروابناد استاد علامه اکاډیمیسین عبد الشکور رشاد څخه راپاتې آثار نه یوازې دا چې د هغه نومیالي افغان لیکوال او څېړونکي راپاتې ارزښتناک علمي میراث دی، په ملي کچه هغه افغاني علمي، کلتوري او ادبي پانګه ده چې اوس د وطن د راپاتې علمي میراثونو په لړکې پوره پاملرنه ورته په کار ده.

له بده مرغه د اروابناد استاد په ژوند کې د هغه ځینې مهم آثار چاپ او خپاره نه شول، خو له نېکه مرغه د علامه استاد د علمي کورنۍ او د پوهو اولادونو له برکته د غه آثار خوندي دي او د هغوی او د یو شمېر شاګردانو او مخلصانو په هڅو یې د خپراوي کار پیل شوی دی.

د اروابناد استاد له مړینې سره سم یو ګڼ شمېر ادبي او کلتوري شخصیتونو او ټولنو د استاد پر مړینه د ویر او ماتم د څرګندولو په څنګ کې، د دغه ستر علمي میراث په اړه، د اندېښنو یادونې وکړې او وېره یې ښکاره کړه چې هسې نه د استاد دغه راپاتې علمي میراث ته څه پېښ نه شي، ځکه چې د داسې پانګو د چور او تالان، سوزېدلو او ورکېدلو تاریخي تجربې ډېرې ترخې وې او بېلګې یې هم زیاتې.

همدغو تجربو ته په کتلو ، ما هم د استاد له وفات سره سم ، د هغوی د ارزښتناکو آثارو د تنظیم ، ترتیب او چاپ ته د برابرولو او خپرولو لپاره د یو علمي کمیسیون د جوړېدو وړاندیز وکړ. ما په هغه وخت کې په موقته او سملاسي توګه د دغو پوهانو د نومونو وړاندیز کړی و:

هر یو ښاغلی: عبدالله بختاني خدمتګار ، حبیب الله رفیع ، زلمی هېوادمل ، محمد معصوم هوتک او طارق رشاد.

هغه وخت ما یادونه کړې وه چې پر دغو کسانو نور نومونه هم زیاتېدای شي. اوس لږ تر لږه څو نور نومونه هم زما له خوا پرې زیات شوي چې ښاغلي : محمد آصف صمیم ، انجنیر شېرشاه رشاد ، خلیل الله سروري او صدیق الله بدر دي. د نورو لیکوالو او څېړونکو نومونه هم پرې زیاتېدای شي.

سره له دې چې د دغسې یو کمیسیون جوړېدو ته په خپل وخت کې پاملرنه ونه شوه ، خو له نېکه مرغه د هغه د راپاتې علمي میراث لپاره دغه دوه مهم کارونه تر سره شول:

۱ . د استاد عالمو اولادونو ، دغه میراث ته ، د وطن د علمي میراث په توګه پوره توجه وکړه. د استاد د آثارو د تکثیر لپاره یې خپله پانګه ولګوله . زیاتره آثار او کتابونه یې په څو نقلونو کې کاپي کړل او په بېلابېلو ځایونو کې یې د ځای پر ځای کولو هڅه وکړه. دا کار په لومړي ګام کې د دې لپاره هم خورا مهم دی چې د دغو راپاتې آثارو د ورکېدو مخه ونیوله شي.

۲ . د استاد یو شمېر مخلصو شاګردانو د هغه د ځینو آثارو د ترتیب، تنظیم او چاپ ته په برابرولو کې لازمې هلې ځلې پیل کړلې.

په دې لړ کې د استاد (( د کندهار یادابښتونه )) په نوم کتاب د یادونې وړ دی. دغه اثر د استاد د ناچاپو کتابونو په فهرست کې (( د کندهار تاریخ )) او هم (( د کندهار یادابښتونه )) په نومونو یاد شوی دی.

دغه مهم اثر د استاد د یو نومیالي شاګرد او وتلي افغان څېړونکي ښاغلي محمد معصوم هوتک په سریزه، ترتیب او سمون، په دوه ټوکه کې دا دی چاپ ته چمتو شو. په نظر کې وه چې په جرمني کې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه دغه مهم دوه ټوکیز اثر د افغان - هوتکي پاڅون د درې سومې کالیزې د جشن په ویاړ چاپ کړي، خو د کتاب د کاپي کولو، ترتیب او تنظیم او چاپ ته د برابرولو د بهیر اوږدېدو او د اثر د حجم زیاتېدو، پر خپل وخت د دې کتاب چاپ ممکن نه کړ، او دا دی اوس یې چاپ ته متي رانغاړو.

لازمه ده دلته لومړی د کندهار یادښتونه پر کتاب او بیا یې د ترتیب او سمون پر کار څو یادونې وکړو:

د علامه استاد عبدالشکور رشاد (( د کندهار یادښتونه )) خپله اروانښاد استاد هم په دوه ټوکه کې تهیه کړي و او د یادښتونو بڼه یې لرله. د دې اثر لومړی ټوک ۲۱۸ مخه او دویم ټوک یې ۲۴۵ مخه دي چې له سریزو سره یې اوس د مخونو شمېره نوره هم زیاته شوې.

د دغه کتاب دواړه ټوکه د استاد د ناچاپو آثارو په فهرستونو کې د (( ۱۴۰۰ )) مخونو په شاوخوا کې یاد شوي دي. دا خبره سمه ده. خو کله چې دغه اثر ښاغلي هوتک چاپ ته چمتو کاوه او وروسته کمپوز شوی. نو هم ځینې مکرر یادښتونه ترې حذف شوي دي او هم د استاد د لاس کښلي لیک په کمپیوټري کمپوز کې راکوچنی شوی دی.

دغه اثر د کندهار د جغرافیې، تاریخ، کلتور، ادب، نومیالیو او نورو بېلابېلو مسایلو په اړه هراړخیز معلومات وړاندې کوي ښاغلي لیکوال او څېړونکي او د اروانښاد استاد مخلص شاګرد محمد معصوم هوتک د دغه کتاب په ترتیب او تنظیم کې د یادونې او ستاینې وړ هلې ځلې کړې دي. د کتاب د منابعو او سرچینو لټون یې تر خپله وسه کړی او د اخځونو په ښودنه کې یې هڅه کړې چې د یادښتونو اصلي منابع پسې ولټي. چې دا د ترتیب او سمون په کار کې تر ټولو ستونزمن کار

دی. هغه هڅه کړې چې د استاد هغه یادښتونه هم تر ممکنه ځایه بشپړ کړي چې په دغو نسخو کې له اروا ښاد استاده نیمګړي پاتې شوي وو.

ښاغلي هوتک تر ټولو ستونزمن کار دا کړی دی، چې دغه پنځه کتاب یې له ناوزګارتیاوو سره سره په لنډه موده کې ترتیب او تنظیم کړی دی. دا یې له استاد سره، له افغانستان سره او له خپلې خوږې پښتو سره د مینې او اخلاص یو بل ثبوت دی.

اروا ښاد استاد ته د فردوس جنت دعاګانې او ښاغلي هوتک ته د اوږد او همداسې له ثمره ډک ژوند هیلې او نیکې پېرزوینې وړاندې کوو.

دغه راز له ښاغلیو انجنیر شېرشاه رشاد او خلیل الله سروري څخه هم ډېره مننه کوو چې چاپ ته د دغه مهم تاریخي اثر په چمتو کولو کې یې هلې ځلې کړې دي.

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه ویاړي چې علامه استاد رشاد دغه اثر د نوي او معاصر افغانستان د جوړېدو د ۲۶۰ کلیزې د نړیوال جشن په ویاړ خپروي.

په مینه

زرین انځور

جرمني، د کولن ښار

۲۰۰۷، د اګست دریمه

د ۱۳۸۶ د زمري ۱۲

# یادونه

د علامه بابا رحمة الله علیه د ناچاپو اثارو د چاپ په برخه کي د علامه رشاد اکاډیمی او د ډېرو مخلصانو او ارادتمندانو دا هیله وه او ده، چي د دوی اثار تر ممکنه حده پوري له نیمګړتیا او تېروتنو پرته چاپ سي.

د دې غرض له پاره د دوی یو لوی څېړنیز او تاریخي اثر " د کندهار تاریخي یاداښتونه " ( د کندهار یاداښتونه ) د قلمي نسخې فوټوکاپي د ۲۰۰۵ کال په دوبي کي استاد محمد معصوم هوتک ته وسپارل سوه، چي د هغه کال تر پایه پوري د استاد هوتک په ډېر ستړي او ستومانه کار سره نوموړی اثر د چاپ له پاره تیار سو.

پروسږ د ۲۰۰۶ کال د مارچ _ اپریل په شاوخوا کي دا ترتیب سوی اثر تر موږ پوري کندهار ته راورسید، دغه اثر د یاداښتونو د فوټوکاپۍ له مخي تیار سوی ؤ، ډېر داسي ځایونه په کښي وو، چي په فوټوکاپۍ کي یا کنډو سوي وو او یا نه لوستل کېدل، نو ځکه مو د قلمي نسخې سره د دې کتاب مقابله اړینه وبلله.

د علامه بابا رحمة الله علیه د پنځو اثارو د چاپ تر فراغت وروسته سږ کال د ۲۰۰۷ کال د مې په میاشت کي د علامه رشاد اکاډیمۍ له خوا ما (ش . ر) او حامد متواضع ته د دې (۱۴۰۰) څورلس سوه مخیز قلمي اثر د مقابلې کار راوسپارل سو. د دې کار په پیل کي مو لا د استاد معصوم هوتک درونډ او ستړی کار محسوسولای سوای، خو هر څونه چي د اثر منځ ته ورننوتلو د سمون او ترتیب ستونزي او کړاوونه لا نور هم راته څرګندېدل.

د مقابلې په ترڅ کي ځیني برخي چي په فوټوکاپۍ کي کنډو سوي وې، ځیني یې په اصل کي ولوستلي سوې او د (؟) یا (...) د نخښو پر ځای ور زیاتي سوې. د دغو او داسي نورو برخو د سمون یا زیاتوب له امله د فني او تخنیکي پلوه دې ته اړ سوو، چي د کتاب کمپوز ( کمپیوټر چاري) دوهمه پلا تر سره کړو.

همدا راز د دې کتاب د یاداښتونو ځیني برخي موږ ته داسي و ایسېدلې، چي د کتاب تر بحث وتلي دي او ښاغلي هوتک صاحب هم رانقل کړي نه وې،خو دا چي علامه بابا رحمة الله علیه د دې اثر په کښلو کي تر ( ۲۴۵ ) زیات ماخذونه کتلي، څېړلي او له هغو څخه یې دا یاداښتونه د کتاب په پاڼو کي راوړي دي. د دې له

پاره چي دا یاداښتونه له ورکي خوندي پاته سوي وي ، کوچني یاداښتونه مو کټ مټ او د لویو یاداښتونو لنډ ذکر مو د دې کتاب د دوهم ټوک په پای کي د (( بیل بیل یاداښتونه )) تر نامه لاندي را نقل کړل.

پر دې سربېره د علامه بابا رحمه الله د ارمانونو د یوې برخي د پوره کېدلو په هیله مو د دې اثر د سرېو نومونه ، د ځایونو نومونه ، د ماخذونو فهرست او لنډه پېژندنه په انګریزي ژبه ( ۸٦ مخونه ) هم ورسره تیار کړل .

د علامه بابا رحمه الله د روح د خوشالتیا له پاره په دې درانه کار کي لومړی تر هر څه استاد محمد معصوم هوتک ، په جرمني کي د افغاني کلتوري ودې ټولني ، د هغه مشر ښاغلي زرین انځور او ټولو مخلصانو ته چي د دې کتاب له ترتیب او سمونه نیولې دکتاب تر لګښت او د چاپ تر وروستیو چارو پوري یې ځغاستي او تربې وهلي او خولې توی کړي دي ، د زړه له کومي مننه او کورودانی وایم.

سپیڅلی ښښتن دي مو په دې ویاړلې او ستومانه لاره کي بریالي لري.

په درناوي

علامه رشاد اکاډیمي

محقق ( ښېرونکی ) شېرشاه رشاد

کندهار _ ۱۳۸٦ _ چنګاښ

# فهرست

## (لومړی ټوک)



## کندهارونه



## کندهار

## زابل (کلات)



## سیستان



## زمینداور (زینداور)

## الرُخُج



## اراکوزيا

## د کندهار زوړ ښار

## احمدشاهي بنار



## د کندهار نوميالي

## میوند



## بُست

## د کندهار مالیه، مسکوکات، مزلونه او ...

## ضمایم

# سریزه

## د لوی خدای ﷻ په نامه

دا دئ تر دریو میاشتو پرله پسې کار او زیار وروسته پاک خدای د دې لویې نیکمرغۍ احسان رابانـدې ولوراوه، چې د خپل خواخوږي او مهربان استاد ارواښاد علامه اکاډمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد رحمة الله علیه یو ناچاپ اثر (د کندهار یاداښتونه) چاپ ته تیار کانـدم. زه تـر دې د بـل غـټ ویاړ تصور لا هـم نـه سم کولای.

د علامه رشاد مرحوم د ناچاپو آثارو د خپرولو مسئله د دوی په ژوند کې لا هم د یوې جدي اکاډمیکې اړتیا په توګه مطرح وه. لکه ما چې په هالیند کې د علامه مرحوم د اتیایمې کالیزې د نمانځنې په غونډه کې ویلي و، د دغو آثارو د چاپ او خپرولو له پاره زما هلې ځلې د ارواښاد علامه په ژوند کې پیل سوې وې. ما په دغه غونډه کې د خپلې وینا په یوه برخه کې داسې ویلي و:-

"... ما د دوی د آثارو د چاپ په برخه کې له ډېره وخته لاس و پښه وهل. په ویرجینیا کې د استاد یو شمېر مخلصانو د دغه کار له پاره د مالي مرستې آمادګي څرګنده کړه. ما استاد ته لیکلی خبر کابل ته ولیږه او کله چې څه موده وروسته استاد پخپله ویرجینیا ته تشریف راوور، ما د هماغو خواخوږو په مخ کې ورتـه د دوی د آثارو د چاپ خبره یاده کړه. استاد د دوی له اخلاص او فرهنګي مینې څخه مننه وکړه او وې فرمایل چې:-

زه به خپل وس کوم چې دغه آثار بشپړ کړم. بیا به یې د چاپ په برخـه کې اقدام کوو. ستاسي یې کور ودان".

د علامه مرحوم تر رحلت وروسته د غمجنو وطنوالو په هره مرکه او وینا کې د ده د آثارو د نشر خبره یوه سملاسي اړتیا ګڼل سوېده. په ځینو مرکو کې خو لا

ځینو اشخاصو او ټولنو د دغو آثارو د نشر و خپرېدلو له پاره د هر راز تیاري اعلانونه هم وکړل. په جرمني کې د افغاني کلتوري ودې ټولنې مشر ښاغلي زرین انځور د دې کار له پاره یو کمېسیون هم پېشنهاد کړ.

د علامه مرحوم په کورنۍ کې هم د دوی فرهنګیالو او فرهنګپالو زامنو د دغې اړتیا احساس تر بل هر چا زیات کاوه او په دې لړ کې یې د دغو ناچاپو آثارو د فوټوکاپي اخیستلو کار ته ملا وتړله او په لږ موده کې یې دا کار تر ډېرې اندازې مخ ته بوت. زه د دې ټولو هلو ځلو په بهیر کې قدرمنو دوستانو د کار په جریان خبرولم چې د دوی د دې پېرزوینې له امله د زړه له کومې کورودانی ورته وایم.

د علامه استاد رحمة الله علیه تر وفات لږ وروسته ښاغلي زرین انځور د هوتکي غورځنګ د پیل د درې سوومې کالیزې د نمانځلو په باب د خبرو په ترخ کې راځخه وغوښتل چې که د دغې غونډې په ویاړ د استاد رحمة الله علیه یو ناچاپ اثر چاپ ته تیار کړای سم، ډېره به ښه وي. ما د زړه له کومې خپل تیاری ورته وښود او (د کندهار تاریخ) مې د دې غونډې په ارتباط مناسب اثر وباله، چې ښاغلي انځور هم خوښه کړه. ډاکټر طارق رشاد مې په موضوع خبر کړ او کتاب مې له کابله راوغوښت. له بده مرغه کتاب پر خپل وخت زما لاس ته راونه رسید او د نومورې غونډې په مناسبت خپور نه سو. په دې ترخ کې زه د سږکال په جولای کې کابل او وریسې کندهار ته ولاړم او کتاب مې له ځانه سره کاناډا ته راووړ او سمدلاسه مې کار پر شروع کړ.

د علامه رشاد مرحوم دغه اثر (د کندهار تاریخ) نومول سوی دئ او په دوو ټوکو کې تقریباً څورلس سوه قلمي مخه کېږي، خو دواړه ټوکه د یاداښتو په شکل دي او د کمپوز او ترتیب له پاره یې علامه استاد فرصت نه دئ موندلی. ما د دغو یاداښتو تر کتلو وروسته د هغو د تنظیم و ترتیب د کار ستونزي درک کولای سوای، خو چې کار مې ورباندي پیل کړ نو راته زما تر اټکل ډېر دروند ښکاره سو. د هالینډ په غونډه کې، چې وړاندي مې یادونه وکړه، ما د خپلي وینا په یوه برخه کې دا هم ویلي و، چې :-

"... د هر عالم اثر که د هغه په ژوند کې د هغه تر نظر لاندي چاپ نه سي،

وروسته يې چاپ ته د اماده کولو په برخه کې علمي و فني ستونزي منځ ته راځي، ځيني ليکني خو د مسودو په شکل پاته سي او ليکوال يې ډېري برخه د چاپ وخت ته پرې ايښي وي. د چاپ په وخت کې يې له حافظې څخه د کاغذ مخ ته ورنقلوي او که پخپله ليکوال په منځ کې نه وي د هغو بشپړېده به ناممکن غوندي وي".

له دغو ستونزو سره زه پخپله مخامخ سوم، خو علامه استاد مرحوم ته د اخلاص او درناوي جذبه دومره پیاوړې وه چي زه يې پر دې ټولو ستونزو بريالی کړم. د خوښۍ ځای دا و چي علامه استاد د دواړو ټوکو له پاره يو فهرست جوړ کړی و. ما که څه هم د خپل کار له پاره هماغه فهرست اساس وټاکه خو ځای ځای مي ګوتي پکښې ووهلې او مطالب مي سره ورانديوروسته کړل. په يادښتو کي ځيني داسي مطالب هم وو، چي د استاد مرحوم په فهرست کې نه دي راغلي. ما يې هغه برخه چي زما په نزد يې له موضوع سره سر خوړ، واخيستله. ځيني يادښتونه په خورا تفصيل سره تقريباً سربسته مقالې دي. له هغو څخه مي پخپل انتخاب اخيستني وکړې. عربي نقل قولونه مي تر خپله وسه پوري پښتو کړل او په لمنليکونو کي مي د ترجمې حواله خپل نامه ته په دې نيت ورکړه، چي د ژباړې د ناسموالي پړه خدای مه کړه علامه استاد رحمة الله عليه ته متوجه سي. هغه برخي مي تر ممکني اندازې له اصلي ماخذو سره وکتلې. چي د فوټوکاپۍ په وخت کي مغشوشي سوي دي. د يادښتو ځيني برخي د کتاب له موضوع څخه وتلي دي او استاد هم له فهرسته ايستلي دي. دا برخه مي، چي ښه پوره حجم يې دئ، هم نه ده اخيستې. په يادښتو کي مکررات هم زيات وو، تر هغو مي لاس اړولی دئ. توضيح غوښتونکو مطالبو ته مي په حاشيو کي څرګندوني کړي دي. د هغو کلماتو په لوستنه کي مي ډېر دقت کړی دئ، چي په متن کي مغشوش وو. که يې پر سموالي باندي څه شک راته پيدا سوی دئ د هغو مخي ته مي (؟) نخښه ايښې ده. هغه ځايونه مي خالي پرې ايښي دي، چي بېخي د لوستلو نه وو. په يادښتو کي ښه ډېره برخه داسي ده، چي علامه استاد يوازي د اړوند ماخذ او د مربوط مخ يادونه کړېده. ما بايد دغه ماخذونه چي حوالې ورته سوي دي، پيدا کړي

وای او یوازي مي په حواشیو کي د هغو په یادونه اکتفا نه وای کړې، خو دا کاریو راته میسر نه و او له بلي خوا له ماخذ ځخه د نقل قول په انتخاب کي ستونزي پیدا کېدلې. له نه وسه مي په حاشیو کي د هغو یادونه کافي وبلله. ښاغلي څېړونکي که د دغو موضوعاتو په باب نور تفصیل ته اړتیا حس کړي، کولای سي اصل ماخذ ته، چي علامه مرحوم راښوولی دئ مراجعه وکړي.

د کتاب نوم د علامه استاد رحمة الله علیه د آثارو په څېړو سویو لستونو کي ځای ځای (د کندهار تاریخ) او ځای ځای بیا (د کندهار یاداښتونه) ثبت سوی دئ. ما یې دا دوهم نوم (د کندهار یاداښتونه) غوره وباله.

د کار په ټوله جریان کي مي د علامه استاد مرحوم سپېڅلی روح هر وخت راته حاضر احساساوه او دې احساس مي پر انرژۍ او حوصلې باندي زیاتوب راووست. ما د دوی په مرثیه کي ژمنه کړې وه چي :-

نو ستا لار به پالمه پر قدم به دي ګام ږدمه

پر سختو پر پېچومو به دي نوم راننګومه

پاک خدای جل جلاله دي د دغي سپېڅلي لاري د پاللو توفیق راکړي !

(آمین)

محمدمعصوم هوتک

اوکویل - کاناډا

۲۶ - اکتوبر - ۲۰۰۵ ع

## الف :- د دکن کندهار :-

په افغانستان او پخواني هندوستان کي څو سيمي او ښارونه وو، چي د قندهار (کندهار) په نامه يادېدله. يو له هغو څخه په دکن کي د قندهار ښار و، چي له حيدرآباده څخه يې شپېته کروه واټن درلود او په معيارالاوقات کي يې شرقي طول البلد اوه اويا درجې او څورلس دقيقې او شمالي عرض البلد اته لس درجې او شپږ پنځوس دقيقې شوول سوی دئ. رفيع الدين قندهاری د دغه ښار له بزرگانو څخه تېر سوی دئ. د ذخيرة الخوانين په ۱۲۱/۲ مخ کي شيخ فريد بهکري ليکلي دي :-

"ملک عنبر از شنيدن اين اخبار متردد و متوهم شده با نظام الملک از قصبۀ کهړ کی بر آمده بر قندهار (دکن) که سرحد گل کنډه است شتافت[1]"

د دکن د قندهار يادونه په برهان مآثر کي ډېره سوېده.

## ب :- ويهند = هنډ = د پېښور قندهار (قندهار ښار) :-

په حدودالعالم (مولفۀ ۳۷۲ هـ) کي ليکلي دي :-

"ويهند شهر بزرگی است و بادشاه وی جيپال اندر اطاعت رای قنوج است اندرو مسلمانان اند اندک. جهازهای هندوستان بدين ناحيت افتد از مشک و گوهر و جالهای باقيمت[2] ... شهری عظيم است و اندرو بتان زرين و سيمين است بسيار و جای زاهدان است و برهمنان شهر باستانست و او را ناحيتی است خاصه".

منهاج سراج وايي :-

---

[1] علامه رشاد رحمة الله عليه دلته د مشاهير دکن په نامه د يوه کتاب يادونه کوي او وايي، په اردو ژبه دئ او په عامه کتب خانه کې يوه نسخه سته. دغه رازيې د دکن د قندهار حواله د تاريخ هندوستان (د زيب سر؟ ژباړه) ۲۱۸ مخ ته ورکړېده، (هوتک).

[2] حدودالعالم، مبحث هند، ۴٦ مخ.

"بتخانهٔ ویهند در حدود بر شاپور (برشاور = پېښور) بر لب آب سدره بود[3]"

گردیزي وايي :-

سلطان محمود دا ښار په (۳۹۲ هـ ق) كال ونيو[4]

البيروني وايي :-

د ويهند ناوه د سنده د اوبو مجرا ده.د كابل غورونـد (غوربند)، پنجهير (پنجشېر)، لنبكا (لغمان) اوبه يو ځاى كېږي او برشاور تـه نږدې د قندهار تر ښار يعني ويهند كښته د سنده په اوبو گډېږي[5] د كورمي او گومل تويونه (رودونه) هم په سينده (اباسين) گډېږي.

نظامي په خردنامهٔ اسكندري كي د اباسين د غاړي قندهار داسي ستايلى دئ :-

در آمد بآن شهر مينو سرشت
كه تركانش خوانند گنگ بهشت
بهاری درو ديد چون نوبهار
پرستش گهی نام او قندهار
عروسان بت روی دروی بسی
پرستنده بت شده هر كسی

د دې ښار وداني په نهم ميلادي قرن كي برهمن پاچا لليه تـه منسوبه ده. په الجماهير (۲۳٦ مخ) او منتخبات قانون مسعودي (۲۰ مخ) كي ليكلي دي :-

ويهند د سنده په شيله كي د قندهار قصبه ده او د سند اوبه تر دغه

---

[3] طبقات ناصري، ۱/ ۲۷۰ مخ.

[4] زين الاخبار، ۵۲ مخ.

[5] كتاب الهند، ۱/ ۲۴۷ مخ.

ځایه تېرېږي چي هندیان یې د زرو واله بولي. همدغه رنګه البیروني لیکلي
دي :-

ويهند د قندهار قصبه د سنده په شپله کي ده[٦]. ځيني کسان وايي
چي ويهند هغه "ماى هند" دئ، چي فردوسي يې په شهنامه کي ذکر کړی
دئ :-

همه در کابل و دنپر[٧] و ماى هند
ز درياى چين تا به درياى سند
ز زابلستان تابدان روى بست
بنوى نبشتند عهد درست[٨]

ابو ريحان البيروني پخپل اثر (کتاب الهند) کي، چي په (۴۲۴ هـ)
کال يې ليکلى دئ، ليکي :-
"برشاور (پشاور) ۱۴ فرسخه کښته (ويهند) د قندهار پايتخت د اباسين
پر لمر ختيز پلو؟ پروت دئ و دهان (ودان؟)، بتير، نوج لوار (... لواړه؟)،
اتمان کوج (... کڅ؟) او نور د کندهار د لتي ښارونه دي"[٩].
په کتاب الهند کي دغه راز لولو :-
محمد بن قاسم ثقفي چي د سنده بمنهوا او د پنجاب (؟) و ملتان
ښارونه ونيول، په هندوستان کي تر قنوجه پوري ولاړ، چي راستنيدی د
قندهار او کشمير سيمو ته ولاړ (قندهار=گندهارا)[١٠]. دلته له قندهاره
مطلب ويهند دئ. البيروني پخپل بل کتاب الجماهير في معرفت الجواهر

---

[٦] قانون مسعودي، ٥٦٢/٣ مخ.

[٧] دَنْپر = جلال آباد.

[٨] شهنامه، ١١٦/١ مخ، طبع تهران.

[٩] البيروني، کتاب الهند، ۲۷۴ مخ.

[١٠] کتاب الهند، ١٨ مخ.

(۲۳٦ مخ) کې لیکلي دي :-

ویهند د قندهار یوه قصبه ده په هند کې. د اسیند (اباسین) د سرو زرو په ویاله مشهوره دئ. تر دې چې ځینې کسان یې له دغه سببه اوبه نه خوښوي [11].

د "اټک کې اس پار" په ۳۴۵ مخ کې لیکلي دي :-

"د سکندر اعظم تر حملې پخوا (۳۲٦ - ۳۲۷) د پېښور وادي ... د گندهارا پایتخت (پیشکارواتي) و، چې اوس یې چارسده بولو. د چندرگیت ... (گندهارا) د هند په پاچهۍ پورې تړلی و. له مردانه څخه لس میله لیرې د ... اشوک کتیبې دا موضوع څرگندوي.

د البیروني د کتاب الجماهیر روسي ژباړې (منرالوجي) په ۴۷۹ مخ کې راغلي دي:-

ویهند د هندي Udabhand ...؟

---

[11] د البیروني په دې نقل قول کې د اباسین په باب تفصیلات راغلي دي او ما (هوتک حاشیې ته نقل کړل، په دې ډول :-

"... دا سین (اباسین) منابعو ته نژدې (موه) بلل کېږي. بیا چې اوبه یې ډېرې سې د ژوروالي له امله د شین والي په سبب یې (کرش) بولي، یعني تور (د کندهار د هلمند گرش به هم د تور معنی لري)، او په کوم ځای کې چې ...؟ د شمیل بت درول سوی دئ (مولانا سیفي وایي : ما د شمل په نامه یو ځای اروېدلی دئ چې په مندړو کې واقع دئ، رشاد)، د بلول (بهلول؟) د سیمي په برخه کې بیا د سیند په نامه مشهوره دئ (د بالول زوړ ښار له مردانه څخه اووه میله لیرې واقع دئ. کنډوالې یې سته. له دغه ځایه ډېرې سکې موندلې سوې دي. د حدس او تخمین له مخې په لومړی عیسوي صدۍ کې دا ښار ودان و. دا ښار د بده مذهب لوی مرکز گڼل سوی دئ. وگ : یوسفزی افغان، ۲۴۴ مخ).

چینو ته نژدې یې خلک په بهنځې کې کندې ورته کیني او دا کندې په پاره (زیبق) ډکې کړي. کال چې پر تېر سي دغه زیبق تولمه طلا گرزېدلې وي. دا اوبه چې بهېږي په ریگو کې یې د غوماشې د وزر غوندې د طلا ټوټې وي، چې د دغې پارې پر برابري راسې پاره پورې ونښلي او طلا نه پرېږدي، چې ځنې تېره سي". (ثقافة الهند، ۱۰۹ مخ، ۱۹٦۱ اپریل)

د تعلقات هند و عرب په ۲۴ مخ کي سید سلیمان ندوي لیکلي دي :-

یو قندهار د سنده په ایالاتو کي، بل په گجرات کي او بل د هند په ښارو کي تر کشمیر کښته، چي تقریباً اوسنی راولپنډی ده، سته. ما (رشاد) ته دغه وروستی قندهار د ویهند قندهار ښکاري؟

البشاري مقدسي د احسن التقاسیم په ۳۷۷، او ۴۸۵ مخونو کي لیکلي دي :-

په ویهند کي مسلمانان زیات دي او مسلمانان و هندوان بېل بېل امارتونه لري. ویهند د هغه ملک پایتخت دئ. د ویهند ذکر تر مقدسي (احسن التقاسیم) وړاندي په اسلامي دوره کي نه لیدل کېږي. مقدسي لیکلي دي :-

ویهند له غزني څخه ۱۷ مزله شمال شرق خوا ته واقع دئ. ډېره ارزاني ده پکښې، درې منه (د هندوستان یو نیم سېر) شات په یوه درهم (اته انې) دي. د شیدو او ډوډۍ بیه خو بېخي د نشت په حساب ده.

ډاکټر ناظم ویلي دي ویهند د هغه پاچهۍ پایتخت و، چي له لغمانه تر چنابه او د کشمیر له جنوبه بیا تر ملتانه پوري یې حدود وه[۱۲].

د صوبه سرحد په گزیټر ۱۵ مخ کي لیکلي دي :-

Waihind یا Ohind یا Hind یا Und د سنده پر غربي څنډه له اټکه ۱۵ میله په ۲۴ درجې ۲ ثانیې شمالي او ۷۲ درجې و ۲۷ ثانیې شرقي کي یو کلی، چي له پشاوره څخه شمال شرقي لور ته واقع دئ او په هند قدیم کي یې Udaka یا Uda-Bhan Dapura باله، هیون تسانګ او تو- کیو- هن - چو لیکلي دي :-

د هندو شاهی ترکي کورنۍ پایتخت و، چي د کابل او ګندهارا پر شېلویې د اسلام د راتګ په وختو کي پاچهي کوله.

---

(۱۲) حیات سلطان محمود، ۱۹۴ مخ.

هیون څانګ په اوومه عیسوي پېړۍ کي دا ښار معمور او اباد ښار بللی دئ او محیط یې ۴ میله ضبط کړی دئ. اوسنی هند د پېښور شمال شرق د مردان د صوابۍ په لته کي د اباسین پر ژۍ واقع دئ او د دغه کلي پر شاوخوا د دوه میلو په فاصلو د زاړه ویهند کنډوالې لیدل کېږي، د دې ښار په کنډوالو کي دوې کتیبې هم پیدا سوي دي.

باید وویل سي، چي د ویهند نوم یې د هیون څانګ په سفرنامه کي اودکه کهنډه Udakakhanda لیکلی دئ.

د خروشتي کتیبو په ۱۷۰ مخ کي لیکلي دي :-

Und یا Ohind یو کلی دئ د اباسین پر لوېدیزه غاړه ۱۵ میله تر اټک لوړ.

رضواني احمدشاه (۱۳۵۳ هـ ق مړ) د پېښور په حال کي کښلي دي :-

ویهند هم د پېښور په ملک کي لوی ښار و. اوس وړکوټی غونډي کلی پاته سوی دئ. دا هم هغه ښار دئ چي د صوابۍ په ملک کي د هند په نوم اوس هم یادېږي. [۱۳]

هند په صوابۍ تحصیل کي د اټک له روده څخه تقریباً ۱۵ میله لیري واقع دئ. دا ښار د هندوشاهیه کورنۍ پایتخت بلل سوی دئ. هیون څانګ د دې ځای ذکر پخپله سفرنامه کي کړی دئ. [۱۴]

د هند له کلي څخه څلور میله لیري د لاهور کلی واقع دئ.

هرګربویس وایي :-

د دې ښار دېوالونه د ۱۴۰۰ ګزو محیط نیولی دئ او غیر له جنوبي دروازې څخه یې څلورو خواوو ته د دروازو نخښي سته. په (۱۸۹۴ ع) کال کي یې د دغه ښار د یوه ځاه په دېوال کي یوه عربي کتیبه پیدا کړه چي دا

---

[۱۳] یوسفزی افغان، ۲۴۵ مخ.

[۱۴] د هیون څانګ ژوند، ۶۴ مخ.

مضمون پر کښلي و :-

"بسم الله الرحمن الرحيم. بنا هذا البئر الفقيه ابو جعفر محمد بن عبدالجبار بن محمد الجوزجاني في ذي القعده سن اثنى و ثمانين و اربعمائة (۴۸۲ هـ ق) من هجرت النبي عليه السلام"[۱۵].

د ټوپی جمشید نومي پښپله منظومه رساله کي، چي د پیر بابا بالکی او کدری نومېږي، د بالکی پلار د هند اوسېدونکی بللی دئ، دی وایي :-

و په هند کي يو سړی نومې اکبر و
توره دار و د ټول کلي معتبر و
یوه روځ يې نمازدیګر ناڅاپه زوږ سه
په ټول هند کي د هر یو سړي په غوږ سه

د چنګیز تر دورې وروسته د دې ښار ذکر نسته.

## ج :- د ګجرات قندهار – د کهمبایت د سیمي قندهار :-

ابن بطوطه لیکلي دي :-

قندهار[۱۶] د ګجرات په (کهمبایت) کي د عرب بحیرې پر ژۍ ودان دئ. له دې ځایه څخه زموږ کاروان وخوځېدی د کاوې تر ښار چي تېر سوو، قندهار ته ورسېدلو. دا ښار، چي د بحیرهٔ عرب پر غاړه واقع دئ، لوی ښار دئ. زیات کفار پکښي اوسي. پاچا يې هم کافر دئ، جالنسي[۱۷] نومېږي. د ډهلي دربار ته کال په کال سوغاتونه او کلنګونه لېږي. پاچا پخپله زموږ مخي ته راووت، په خورا درناوي يې زموږ هرکلی وکړ. پخپله ماڼۍ کي يې واوسولو. د خواجه بهره د کورنۍ څو تنو، چي ناخدا ابراهیم

---

[۱۵] راپور سالانهٔ باستان شناسی هند، ٦٨ مخ.

[۱٦] د قاف په زور (فتحه) د نون په سکون د مهمل دال په زور (فتحه) او هاء او راء.

[۱۷] د جیم او لام په زور (فتجه) د نون په سکون او د سین په زېر (کسره).

هم په هغو کي و او د دغه کندهار د مسلمانانو مشران وو، د جالنسي په امر زموږ سره وليدل. موږ له دغه ښاره څخه د ناخدا ابراهيم له شپږو بېړيو څخه په يوه کي چي (جاګر) نومېدله سپاره سوو، پنځوس ليندۍ ويشتونکي او پنځوس حبشي ځوانان راسره وو. دوی يې زموږ د ساتني له پاره راسره کړي وو. د پاچاهۍ سوغات او يا؟ آسه هم په دغه بېړۍ کي ځای سول. د پاچاهۍ سوغات نور دېرش آسه د نورو ملګرو له آسونو سره د ناخدا ابراهيم د ورور په بېړۍ کي چي "منورت" نومېدله، واچول سول. جالنسي يوه بله بېړۍ راکړله، چي د آسونو وابنه او د سپرليو څوري يې پکښي اچولي وو. د امير ظهيرالدين ابدارباشي او نورو ملګرو آسونه هم په دغه بېړۍ کي وو. جالنسي خپل زوی هم په يوه وړه جنګي بېړۍ کي راسره کړ. د دغي بېړۍ نوم (عکبري) و. دا بېړۍ د جنګ په وخت کي داسي پوښل کېدای سي، چي د غليم غشي پر هيڅا ونه نښتلای سي. په منځ کي يې يوه ستن هم ولاړه ده. له دوو ورځو سفر وروسته زموږ کاروان بيرم جزيرې ته وخوت[18].

اطهر مبارکپوري د (رجال السند والهند) په ۱۱۵ مخ کي د خمار القندهاريه په شرح حال کي ليکلي دي :-

القندهاريه نسبته الی القندهار بالضم معرب گندهارا من گجرات و کانت بندراً صغيراً فتحها عمروبن جمل و هدم البد (بت) و بنی موضعه مسجداً.

ژباړه :- د القندهاريه نسبت قندهار ته دئ چي په پېښ سره د ګندهارا معرب دئ. دا ښار په ګجرات کي يو وړوکی بندر دئ، چي د عمرو بن جمل په لاس فتحه او د هغه ځای بت يې وران او پر ځای يې مسجد ودان کړ[19].

---

[18] د ابن بطوطه د الرحلة کتاب، دوهم ټوک. ۱۰۷ مخ.

[19] که په ژباړه کي ورانی پېښ وي، مسئوليت يې زما (هوتک) دئ. علامه رشاد رحمة الله عليه د ترجمې ځای تش پرې ايښی و.

خو ابوالحسن بلاذري پخپل کتاب فتوح البلدان کي ليکي :-
د بغداد له عباسي خلافته څخه چي هشام په (۱۴۰ هـ ق) کال د سنده واکمن وټاکه سو. ده عمر بن جمل د کاتهيوار لور ته له ډېرو لښکرو سره د غزا له پاره واستاوه، مگر عمر ناکام راستون سو. هشام پخپله لښکري پسي ولېږلې، بهروچ ته نژدې يې پر قندهار بريد وکړ، ويې نيو او هلته يې مسجد ودان کړ[۲۰].

په حدودالعالم ۳۷۷ مخ کي يې کښلي دي :-
قندهار لوی ښار دئ. د سرو او سپينو زرو بتان پکښې ډېر دي. برهمنان په دغه ښار کي ډېر دي. موږ ښار دئ. د تعلقياتو په برخه ۸۴ مخ کي يې زياته کړېده :-
دا د گجرات گندهار (قنداهر) دئ.
ادريسي کښلي دي :-
له دغه ځايه تر نهرواره پوري په گاډۍ کي د څلورو ورځو لار ده. دا ځای د کمبې (کمبهايت) د خليج په شرقي کنج کي واقع دئ. د پرتگاليانو په نقشه کي بندل گندواري د کمبې او بروچ تر منځ د امود په خليج کي د برودې جنوب غرب ته ښوول سوی دئ. د آئين اکبري په ۱۱۶/۲ مخ کي په بهروچ کي هم د کندهار يادونه سوېده.

## د - د سنده قندهار :-

د انشينټ انډيا Incient India د لومړي جلد په شپږمه نقشه کي چي (۵۰۰) کاله پخوا تر ميلاد يې د هندوستان وضعيت ښوولی دئ، گندهار يې د سنده شمالي خوا لږ شرق ته مايل ليکلی دئ.

---

[۲۰] تعلقات هند و عرب، ۱۷ مخ.

## هـ - د اُړيسې قندهار :-

د ابوالفضل د آئين اکبرۍ په ۶۳/۲ مخ کي ليکلي دي :-

د اوړيسې د عليشېر د سرکار (اولسوالی) د نراين پور په سيمه کي د غره پر سر يوه مضبوطه کلا د کندهار په نامه مشهوره ده. ۲۲۸۰۸۶۰ دامه يې ماليه ده. يو زر سپاره او څلور زره پلي لري.

## و - د آذربايجان قندهار :-

د آذربايجان په لوېديزه کي، چي د اتحاد جماهير شوروي تر اداري لاندي و، د کندهار په نامه د اوسپني يو کان سته[۲۱].

## ز - د کاناډا کندهار[۲۲] :-

د کندهار په نامه دغه کلی د کاناډا د سسکاتوون په ايالت کي د شپاړسم نمبر لويي لاري (های وې) پر سر پروت دئ. دا کلی د (بيگ کوويل) جهيل پر غاړه ودان سوی دئ. پر دغه کلي باندي د کندهار د نامه اېښوولو کيسه داسي ده :-

د (۱۸۸۰ ع) کال په جولای کي د کندهار په ميوند کي د افغان و انگليس سخته جگړه سوې ده. دې جگړې د لوېديځو هيوادو د زياترو اوسېدونکو غوږو ته د کندهار نوم او د پښتنو د مېړاني داستانونه او دغه راز تر وروستی شېبې پوري د انگرېزي لښکرو د ټينگار کيسې رسولي وې. کله چي په کاناډا کي د رېلوې خط جوړېدی او دغه سټېشن ته راورسېدی د نومونو اېښوولو کمېسيون دا وړ وبلله، چي دغه سټېشن د افغانستان د کندهار

---

[۲۱] زما د دريم زوی، شېرشاه رشاد يادابښت.

[۲۲] د علامه رشاد رحمة الله عليه په يادابښتو کي د دغه کندهار په باب څه نسته. زه (هوتک) به يې پر زيات کړم.

په نامه ونوموي او په دې ډول د افغاني شهامت او انګرېزي مقاومت خاطره په ژوندۍ کړي. په (۱۹۱۲ ع) کال د دغه ستېشن نوم رسماً د کندهار په کلي واوښت. د دغه کلي لومړي اوسېدونکي د ناروې د هیواد هغه مهاجرین دي، چي په (۱۹۰۴) کال کي کاناډا ته راغلي وو. څه موده وروسته د ایسلېنډ یوه ډله مهاجرین هم په دغه کلي کي مېشته سوي وو. دې کلي یو وخت ښه رونق درلود خو د (۱۹۳۰) کلونو د اوږدې وچکالۍ له امله خلک ځني بارسول او اوس یوازي څو کوره پکښي مېشته دي. خو نوم یې د کاناډا په رسمي دفترونو او د نقشو په کتابو کي درج دئ او د شپاړسمي لويي لاري په اوږدو کي یې د موټرو له پاره لارښوونکې تخته (ساین) ولاړه ده.[۲۳]

## د کندهار په نامه نور ځایونه :-

د Holdich د Gates of India په ... مخ کي کښلي دي :-

د کچ په ګنداوه کي یو ښار دئ، چي قندهار نومېږي. دغه ښار ته نژدې کندوالې سته او ویل کېږي چي دا قندابیل دئ. په چچ نامه ۴۹ مخ کي لیکلي دي :-

چچ بن سیلان از انجا بر اریامیل؟ برګشت ... تا بلاد قندابیل یعنی قندهار رسید.

د چچ نامې د تعلیقاتو په ۲۵۸ مخ کي کښلي دي :-

د کندهار پخوانی نوم سکندهاوار Skandhawar स्कन्द ावार و، چي د معسکر یا چوني معنی لري. (دا خبره د اسماعیل کالج د سنسکریت

---

[۲۳] د زیاتو معلوماتو له پاره وګورئ :- په ټورنټو کي خپرېدونکې جریده افغان رساله، د ۲۰۰۵ ع کال د جنورۍ ګنه، ۳۵ مخ کي د ښاغلي عبدالباري پیاوړي جمال کندهاري مقاله. ښاغلي پیاوړي جمال ته باید د دغه کلي د افغاني کاشف لقب ورکړه سي. (هوتک).

استاد پروفیسر بهتې کمکر کړېده).

د افغانستان د پکتیا ولایت د ځدرانو په سیمه کي یو غر دئ، چي؟ نومېږي. د دغه غره یو غاښي (کوتل) ته کندهاري غاښي وایي. دغه غاښي د پکتیا د اورگون په سیمه کي وېش (سرحد) ته نژدې د پیرکوټي او گیاني ترمنځ پروت دئ. د غاښي دواړو خواوو ته ځدران اوسي.

د گیاني دره شمالاً جنوباً پرته ده. غورمه په ځدرانو کي یوه سیمه ده. په دغه سیمه کي بلي، چي د ځدرانو یوه پښه ده، اوسي. د اورگون شمال شرق ته یو کلی دئ، چي پوښتی نومېږي[۲۳]. په دغه کلي کي ۲۵۰ کوره اوسي. په گیان کي یو غر د کندهاري په نامه سته. دغه دره چي لس میله اوږده به ولري، ډېره سمسوره ده، د ... او ... وني پکښي ډېري دي.

د کندهاریانو په نامه دوه کلي په قندوز کي سته.

د کندهار په نامه د غرونو سلسله په پنجاب کي سته، د Siralak ځنگلونه په دغه غرو کي واقع دي.

د زین الاخبار په ۲۸۸ مخ کي یې د قندهار کلمې په باب کښلي دي:-

د کشمیر خوا ته یو ولایت دئ.

د انگلستان پایتخت لندن کي د اورگاډي د کلفهم سټېشن جنوب ته د کندهار په نامه یو سړک سته.

په سینگاپور کي د کندهار په نامه یوه کوڅه سته.

په قاموس جغرافیایي ۳۹۶/۳ مخ کي کښلي دي :-

په لوگر کي د قندهار په نامه یو غر سته د زید آباد جنوب شرق ته.

د جاني خېلو په علاقه داري کي هم د کندهاري په نامه یو کلی سته. په مقر کي د کندهاري په نامه یوه کلا یا کلی سته. په اوبند کي هم د کندهار په نامه کلی سته. د کندهاریو په نامه یو کلی د مومندو په گنداو او

---

[۲۳] شریف الله ځدران د دغه کلي دئ.

بل کلی د کامې په ؟ کې سته[۲۵]. د قندهاري په نامه یو کلی د کونړ د پېچ په دره کې واقع دئ. د سمنان په ګرمسار کې د الیکاشي په نامه یوه قبیله اوسي. د دغه قبیلې یوه پښه د قندهارۍ په نامه یادېږي. وایي الیکاشي قبیله له دماوند څخه دلته راغلې ده.

## د کندهار په نامه د نورو ښارو دروازې :-

د کابل ښار هغه دروازه چي، د دهمزنګ (اوسني پل هارتن = هارتل) پر برابري وه، د کندهارۍ دروازې په نامه یادېدله (بالاحصار کابل، ۴/۲ مخ). د هرات ښار شرقي دروازه د کندهارۍ دروازې په نامه یادېږي.

په امریکا کي د متحده ایالاتو یو لوی ایالت کلیفورنیا نومېږي. دا ایالت د بحرالکاهل پر غاړه د متحده ایالاتو په لوېدیزه برخه کي پروت دئ. د کلیفورنیا شمالي برخه سانفرانسیسکو نومېږي. په سانفرانسیسکو کي د یوه ښار نوم کانکورد دئ. په دغه ښار کي افغاني مهاجرین یو ریسټورانت لري چي کندهار ریسټورانت یې بولي.

د روحیاتو استاد د Doblio Valley College د James Dalen ښاغلي شاهي خان افغان د شعري مجموعې (د زړه اوښکي) د مقدمې په ۹ مخ کي لیکي :- شاهي زه په کانکورد کي زموږ کالج ته نژدې کندهار ریسټورانت ته بوتلم او د افغانستان له خوندورو خوړو سره یې بلد کړم.

بیلیو په Notes on Afghanistan اوه لسم مخ کي د Gandhar په نامه غر د ډاډر سیمي ته نژدې په زنګي دره کي راښیي.

په حدودالعالم ۸۵ مخ کي کښلي دي :- قنداهرد نربدادهانې (مصب) ته نژدې واقع دئ[۲۶].

---

[۲۵] د ښاغلي محمدآصف صمیم یاداښت.

[۲۶] د مؤلف مراد به ښایي د دکن قندهار وي، (هوتک).

## کندهار :-

کندهار د یوه جغرافیایي نامه په توګه نژدې زر کاله پخوا د غازي سلطان محمود (۳۸۷ - ۴۲۱ هـ ق) د دربار ملک الشعراء ابوالقاسم حسن بن احمد عنصري (۴۳۱ هـ ق مړ) راوړی دئ، دی وایي :-

زکر کنج رخشد گهی رایتش

گهی از در بارهء قندهار

(دیوان عنصری، ۸٦ مخ)

د پارسي ژبي یوه بل نامتو شاعر حکیم جمال الدین ابو محمد الیاس بن یوسف نظامي ګنجوي (۶۰۴ مړ) په سکندرنامه کي ویلي دي :-

در آمد بآن شهر مینو سرشت

که ترکانش خوانند گنگ بهشت

بهاری درو دید چون نوبهار

پرستش گهی نام او قندهار

عنصري ویلي دي :-

از حروف آخرین توهمی نسخت برند

صورت روی پری را بتگران قندهار

قاآني بیا د عنصري په تقلید ویلي دي :-

از تاب موی هر یك صد نافهء ختن

در رنگ و روی هر یك صد نقش قندهار

خو په دغو بیتونو کي راغلی قندهار هغه قندهار نه دئ، چي اوس د افغانستان د یوه ولایت په توګه د دغه ملک په جنوب لویدیز کي پروت دئ او اوس موږ د هغه په باب رغیږو.

زموږ تر بحث لاندي کندهار (د جنوب غربي افغانستان کندهار) غالباً لومړی ځل بلاذري (۲۷۹ هـ ق مړ) په فتوح البلدان (۴۲۲ مخ) کي د

حجاج تر واکمنی مخکي واقعاتو کي داسي راوړی دئ :-

"وغزا عباد بن زیاد ثغرالهند من سجستان فاتی سناروذ. ثم اخذ علی حوی کهزالی الروذبار من ارض سجستان الی الهندمند (هلمند) فنزل کش وقطع المنازل حتی اتی القندهار فقاتل اهلها فهزمهم و فلهم و فتحها بعد ان صیب رجال المسلمین ورای قلانس اهلها طوالا فعمل علیها فسمیت العبادیه. وقال ابن مفرغ[1] کم بالجروم و ارض الهند من قدم بقندهار و من تکتب منسیته بقندهار یرجم دونه الخبر و من سرابیل قتلی لیتهم قبروائنک[2].

ابن بطوطه په (۷۳۳ هـ ق) کي غزني ته راغلی او پخپله سفرنامه (۲۵۴/۱ مخ) کي د قندهار نوم داسي اخلي:-

والغزنه کاند (بلده) کبیره و هی شدیده البرد و الساکنون بها یخرجون عنها ایام البرد الی مدینه القندهار.

ژباړه :- غزني لوی ښار دئ، ژمی یې سخت دئ، په ژمي کي یې خلک کندهار ته ځي[3].

حموي لیکلي دي :-

قندهار په دریم اقلیم کي واقع دئ. طول البلد یې ۱۱۰ درجې او عرض البلد یې ۳۰ درجې دئ. دا د هند او سند په ښارو کي مشهور ښار دئ. وایي عباد بن زیاد د سند او سیستان پر سرحد باندي سنا رود ته راغی او بیا د حوکهن له لاري رودبار ته راغی، چي د هلمند وادي کش ته ولاړ او له

---

[1] ابن مفرغ د معاویه بن ابو سفیان معاصر دئ. (د دې حاشیې یوه برخه مغشوشه ده. م. هوتک).

[2] علامه استاد د دغه عربي عبارت ژباړه خو کړښي وروسته راوړې ده (م. هوتک).

[3] د کندهار د خوا پښتانه وایي :-
چي چنگوښي وای قر، تره کی وای مقر، چي چنگوښی وای غار، تره کی وای کته (کښته) کندهار.

هغه ځایه قندهار ته ولاړ، جنګ یې وکړ، خلک یې ووژل او وتښتول. ابن واضح یعقوبي په البلدان کي د سیستان حدود تر سنده او قندهاره ښیي. زه نه پوهېږم چي له قندهاره به د ده مراد ګندهارا وي او که اوسنی کندهار. خو دی ناحیت الرخج (اوسنی کندهار) د بست له ښارونو څخه ښیي[۴].

عباس بن محمد بن احد ابن السید رضوان المدني د (القندهاري) کلمې په شرحه کي کښلي دي :-

"القندهاري - لقندهار ذکروا انها مدینة من السند اوالهند و قد اخبرني مواثق به من علماء السند انها من بلاد خراسان قریبة من السند".

ژباړه :- القندهاري و قندهار ته منسوبه ده او قندهار د سند یا هند یو ښار دئ، خو د سنده له معتبرو پوهانو څخه روایت دئ، چي دا ښار سند ته نژدې د خراسان ښار دئ[۵].

په هفت کشوریا صورالاقالیم کي راغلي دي :-

درآخر مملکت هند که آخر اقلیم سوم است شهری باشد که قندهار می خوانند و در اول اقلیم چارم شهری هست که آنرا کشمیر می خوانند.

د الاعلاق النفسیه په ۹۷ مخ کي ابن رسته لیکلي دي :-

الاقلیم الثالث یبتدي من المشرق فیمر علی شمال بلاد صین ثم علی بلاد الهند و فیه مدینة القندهار ثم یمر علی شمال بلاد السند و ثم علی کابل و کرمان و سجستان ...

ژباړه :- دریم اقلیم له ختیزه پیل کېږي په شمال کي د چین او هند تر ښارونو پوري رسېږي. په هغو کي د کندهار ښار دئ. بیا د شمال خوا ته د

---

[۴] وګ : البلدان، ۵۷ مخ.

[۵] وګ : ذیل لب الالباب من واجب الانساب، ۵۰ مخ، د مصر چاپ، (د نقل قول ژباړه زما ده، م. هوتک).

سنده ښارونه بیا کابل او کرمان او سجستان ته رسېږي[٦].

علامه صدیق حسن خان بهوپالي په ریاض المرتاض کې، چې کله د کندهار بحث ته را رسېږي، هلته لیکي :-

د خلیفه المقتدر عباسي د خلافت وخت و. په (۳۰۴ هـ ق) کال د کندهار د کلا یو برج ونړېده، تر دغه برج لاندې تقریباً یو زر سرونه وو، چې په ځنځیرو یو له بله تړلي وو. د نهه ویشتو سرونو په غوږو پوري پرزې په تار تړلي وې. پر دغه پرزو د هغو سرو د خاوندانو نومونه لیک و. لکه شریح بن سکان، حنان بن زید، خلیل بن موسیٰ او نور ... پر دغو پرزو باندې د لیکنې کال (۷۰ هـ ق) لیکلی و. دا سرونه تر دغه وخته پورې نه وه خراب سوي.

د ماثرالامراء د دوهم ټوک په ۵۵۵ مخ کې د کندهار په باب کښلي دي :-

کندهار په دریم اقلیم کې یو پراخ هیواد دئ. اوږده یې له قلات، بخارا (؟) څخه تر غوره غرجستانه پورې ۳۰۰ کوسه او پسور یې له سنده څخه تر فراه پورې ۲۶۰ کوسه دئ. مشرق ته یې سنده، مغرب ته یې فراه، شمال مغرب ته یې غور غرجستان او شمال مشرق ته یې کابل وغزني او جنوب ته یې سیوی واقعه ده. د قندهار د کلا نیول ګران کار دئ. د کندهار کلا په ۱۰۷ درجې ۴۰ دقیقې طول البلد او ۳۳ درجې عرض البلد کې واقع ده. زیاتره افغان بلوڅ او ابدالي قبیلې د قندهار په سیمه کې آباد دي، ۲۴ سیمې لري. اووه کروړه سرکاري عایدات یې دي، چې د بلخ او بدخشان له عایداتو سره برابر دي.

په مرآت الهند ٦١ مخ کې قندهار د هندوستان صوبه ښوول سوې ده، اوږده یې ۳۰۰ کوسه او پسور یې ۲۰۰ کوسه بلل سوی دئ. پر څلورو محالو (بولکو) وېشلی دئ، اتیا زره یو سل و څلور کلي یې دي آمدني (عایدات)

---

[٦] ژباړه زما ده. (م. هوتک)

يې پنځوس لکه روپۍ دي، (آئين اکبري).

کندهار د بحر له سطحي څخه ۱۰۷۷ متره لوړ دئ. شرقي طول البلد يې د ۲۴ - ۲۸ درجو، ۱۵ - ۱۸دقيقو، ۱۰ - ۱۲ ثانيو او شمالي عرض البلد يې ۲۹ - ۳۲ درجو، ۱۲ - ۱۳ دقيقو، ۲۰ - ۲۵ دقيقو تر منځ دئ. لوېديځ تـه يـې سيستان، ختيځ ته يې پکتيا، شمال ته يـې غـور او هـرات او جنـوب تـه يـې بلوچستان واقع دئ.

د آريانا دايرة المعارف په اووم ټوک ۵۸۴۴ مخ کې کښلي دي :-

کندهار د درياب (بحر) له سطحي څخه تقريباً ۱۰۷۷ متـره جـګ دئ. شرقي طول البلد يـې د ۶۴ - ۶۸ درجـو، ۸ - ۵۱ دقيقـو او ۱۰ - ۱۲ ثـانيو او شمالي عرض البلد يې د ۲۹ - ۳۴ درجو، ۱۲ - ۱۳ دقيقو او ۲۵ - ۲۰ ثانيو تـر منځ دئ. کندهار له کابله ۵۱۵ کيلـومتره او لـه هراتـه ۶۴۷ کيلـومتره ليـري دئ.

د کندهار نوم ځيني کسان په اسکندر پوري او ځيني يې بيا له ګنـدوفار سره، چې د اراکوزيا، سيستان او ګندهار پاچا و، نښلوي. ځيني بيـا وايـي د ګندهارا مهاجرين چې په پنځمه او شپږمه عيسوي سـدۍ کـې د يفتليـانو لـه ظلمه د اوسني کندهار سيمې ته راغلـل، د کنـدهار نـوم يـې لـه ځانـه سـره راووړ[۷].

د ۱۳۲۰ ش کال په کلنۍ کې همدغه راغلي دي، هلته ليکي :-

"نام قندهار را مهاجرين ګندهاره وقتيکه باين سرزمين آمدنـد آوردنـد. عربها آنرا قنـدهار خواندنـد. در وقـت لشکرکشـی مسـلمانان عـرب، قنـدهار شهرت نداشت. آنچه بود، بست بود. بعد ازانکه علاوالـدين بسـت را ويـران کرد، قندهار کسب رونق نمود و پايتخت ولايت اراکوزيه قرار ګرفت".

د History of Ancient India په ۱۱۷ مخ کې ليکلي دي :-

---

[۷] وګ : د بيليو Races of Afghanistan.

اسکندر چې سيستان ونيوه، پر جنوبي افغانستان يې بريد وکړ، په اراکوزيا کې يې يو ښار جوړ کړ، چې الکزندريه يې بلله او اوس د کندهار په نامه ياديږي. بل کال يې کابل ته ځان ورساوه.

محمود افشار هم د دغه نظر ملاتړ کوي او وايي :-

په کوم ځای کې مې لوستي دي، چې کندهار د اسکندر ا کلمې تحريف دئ او وايي د کندهار ښار اسکندر جوړ کړی دئ[8].

د قندهار کلمه ښايي د سانسکريتي کلمې Skandhawar[9] څخه جوړه وي، چې د معسکر (چونی) معنا لري.

د کندهار مجلې د ۱۳۴۴ کال، ؟ګڼې په ۱۶ مخ کې د کندار (کندهار) تر عنوان لاندې له هرم لوګ مجلې څخه د ښاغلي نجيب ژباړه په دې مضمون خپره سوې ده :-

د کندهار نوم له دوو کلمو څخه جوړ دئ، کند (ښار) + دار. (دار) لمر ته ويل کيږي يعنې د لمر ښار.

کندار د ارکند = ارغند د رود پر غاړه ودان و. اراکوزيانو چې د پنبې د کرهنې فن له هنديانو زده کړ، د دوی ژوند د اقتصاد له مخې خورا ښه سو[10].

د "ادبيات مزديسنا" د ۱۸۰ مخ په حواله د بيستون په کتيبه کې د Haravati (قندهار) د ساتراپ (نائب الحکومه) نوم Vivana کښلی دئ[11].

---

[8] افغان نامه، ۱/ ۲۴۳مخ.

[9] علامه رشاد د دغې سنسکريتې کلمې د يوناګري ليکنه هم راوړې ده، چې د طباعتي ستونزو له امله يې ضبط پاته سو. (هوتک).

[10] نقل قول ما ته نيمګړی ايسي. (هوتک)

[11] علامه رحمه‌الله د قندهار په باب د (ايران در عهد ساسانيان) ۲۹، ۴۷، ۴۸، ۳۸۴، ۶۳۰ مخونو ته اشارې لري او ځاينونه يې سپين ورته پرې ايښي دي. (هوتک).

د فرهنگ واژه های اوستا په ۱۵۵۴/۳ مخ کي ليکلي دي :-

Haraxaiti کندهار ته نژدې د ارغنداب په شاوخوا کې د يوه ځای نوم و. (هرا) په اوستا کي (غره او له اوبو څخه لوړ ځای) ته ويل کېږي.

په تحفة الکرام دوهم ټوک ۸۷ مخ کي يې کښلي دي :-

"قندهار طولش قزم = ۱۴۷ عرضش لح ها = ۴۴ شهربندی استوار داشت هر که محاصره کردی در نظرش شهربند از معهود بالاتر آمدی".

همدارنګه په ۳۳۹ مخ کي ليکي :-

از کابل تا قندهار ۱۲۰ فرسنگ است. يک فرسنگ دوازده هزار گز".

ابوالفضل (۱۰۱۱ ه ق مړ) په آئين اکبري کي دوکی کلا، چي په ږوب کي واقع ده د کندهار له توابعو څخه بللې ده.

اخوند درويزه (۱۰۲۸ ه ق مړ) په مخزن الاسلام کي د وزيرستان کاڼي ګرام د کندهار له توابعو څخه بللی دئ. ده کښلي دي :-

"بدان ای فرزند که عبدالله نام شخصی در حدود قندهار در موضع کانی گرام در ميان افغانان اورمړ مردی باعلم و صلاح و از اولاد علما و صلحا بود ...".[۱۲]

## د بودا کچکول په کندهار کي :-

هيون تسانګ پخپله سفرنامه کي ليکلي دي :-

د بودا کچکول له ګندهارا څخه پرشيا ته وړل سوی دئ. اوس په

---

[۱۲] وګ : مخزن الاسلام ۱۲۲ مخ. د پېښور چاپ، ۱۹۶۹ ع.

د کندهار ښار په باب مسيحي سياح کښلي دي :- کندهار د اسکندر له بناوو څخه دئ. د هندوستان پاچهانو د فرانسوي معمارانو په مرسته دا کلا نوې کړې او ټينګه کړې ده. د کندهار کلا نادر خرابه کړه. پښتانه يې نادر آباد ته وکوچول. اوس هلته اوسي.

کندهار کې پروت دئ[۱۳].

Sir H. Rawlison چې په ؟ کال کندهار ته تللی و، هغه کچکول یې په کندهار کې لیدلی و. کندهار ته د کچکول وړل به غالباً په شپږمه عیسوي سدۍ کې سوي وي. وروسته له هغه چې گندهارا د Kipin پاچا ونیوله.

بیلیو د The Races of Afghanistan په ٦١ مخ کې کښلي دي :-

په پنځمه یا شپږمه عیسوي سدۍ کې د Scythy کام د کوچیانو قبیلې له شمالي خواوو څخه پر گندهارا راغلې او د گندهارا پر ځینو سیمویې قبضه وکړه. د گندهارا د سیمي ځیني ولسونه د هلمند او ارغنداو غاړو ته وکوچېدل او هلته یې د خپلي مېني په یاد کندهار نومی ښار ودان کړ. دوی بودایان وو، چې د هلمند او ارغنداو غاړو ته تلل، د بودا مقدس کچکول یې هم له ځانه سره یووړ. دوی هلته له محیطي خلکو سره مېشت سول او دغه دین یې تر فراه او سیستانه پوري ورساوه.

نوموړی مؤلف د خپل کتاب په ٦٣ مخ کې وایي :-

"درې څلور سوه کاله مومند او یوسفزي د مندړ په غوړه مرغه کې پراته وو. دوی چې په نهم هجري قرن کې بیرته خپل اصلي وطن د پېښور شاوخوا ته راستانه سول، بودایي دین یې په اسلام بدل سوی و، او گندهاري نوم یې په افغان اوښتی و.

په ستاپاسارک کې لیکلي دي :-

د اشوک د پاچهۍ په اووم یا اتم کال په پټنه کې، چې د دلتسا تر مشرتابه لاندي کومه غونډه وسوه چې نهه میاشتي یې دوام درلود او مطلب یې د بده مذهب خپرول و، نهه هیئتونه د نهو تنو وتلو مشرانو مبلغینو په مشرتابه سره ولېږل. په دغو کې ججهانتک کشمیر او قندهار ته ولېږه سو او هلته یې اتیا زره کسه د بده مذهب ته ور واړول.

---

(۱۳) The Ancient Geography of India، ۱۵ مخ.

د اشوک په کتیبو کي د ده د پاچهی په څلورو لتو کي لومړی ګندهار ولایت راوړه سوی دئ، چي پایتخت یې تکسیلا وه، هلته به یو شهزاده اوسېد، د بندوسار په زمانه کي پخپله اشوک ... او ... د ګندهار ولایت نائب الحکومه ګان وو، او د اشوک په زمانه کي جلک د ګندهار نائب الحکومه، چي د پلار تر مړيني وروسته خپلواک سو، پر کشمیر یې پاچهي کوله[۱۴].

## د کندهار د نامه تاریخي تسلسل[۱۵] :-

د هخامنشیانو په پاچهي کي (۵۵۸ - ۳۳۰ ق م) د اباسین لوېدیزي خوا ته تر ګندهارا کښته (جنوب ته) تته ګوش Thatagose او تر هغه کښته د هراخوتیش (غور) شرق او د تته ګوش جنوب ته دادیک (شیتک) او تر هغه کښته (جنوب ته) پاروټ Parut ښوول سوی دئ. د پاروټ قام شرق ته اباسین واقع دي. په بلوچستان کي د بحیرهٔ عرب پر غاړه د شرق له خوا موسي کان Musican (د سنده رود شرق ته) او ورپسې پاریکان Parikan پراته دي. ورپسې د غرب خوا ته مک Mak پراته دي. د مک او کرمانیا تر منځ Akaufajay اکوفجیه واقع ده (چي د کفج کلمه وروسته ورځني جوړه سوېده).

د سلوکس نیکاتور په وختو کي کابورا (کابل)، هرخواتي (کندهار)، اسکندریه (د کندهار ښار) او ګدروزیا (بلوچستان) د سلوکي پاچهی څخه دباندي دي او د هندوستان په پاچهي پوري اړه لري. د بست کلمه نسته او هلمند رود د ایتماندروس Atimandrus په نامه یاد سوی دئ.

د اشکانیانو په پاچهي کي (اراخوزیا) د اشکانیانو په پاچهي کي داخله وه او کابل (کوشانیان؟) باکتریا هم د دوی په قلمرو کي داخله

---

[۱۴] اشوک اعظم، ۲۷، ۴۷، ۴۸ مخونه.

[۱۵] د اطلس تاریخی ایران په حواله.

بنوول سوې ده. مګر د اشکانیانو پاچهي تر اباسینه نه ده رسېدلې او د اراکوزیا شرقي برخه ځني وتلې ده. په دغه نقشه کي د بست او فراه کلمې ستة.

د ساسانیانو په وختو کي تخارستان، بلخ، بامیان، کابل، پیشوروا، رخج (اراخوزي)، طوران (د اوسني بلوچستان شرقي برخه) چي د اراکوزیا جنوب ته واقع ده د ساسانیانو په پاچهي کي شامله بلل سوېده او وېش یې د سنده رود دئ. په دغه نقشه کي بست و قندهار و فراه هم بنوول سوي دي.

د طاهریانو په وختو کي ملتان، قندابیل، قصدار، پنج کور، قندهار، غور، بست، فراه، اسفزار، هرات، غزنه، کابل، بامیان، بلخ و بدخشان د دوی په ایالت کي شامل سوي دي. د پېښور او کابل نیمایي یې وېش دئ. د غزني او اباسین تر منځ هم نیمایي وېش دئ. د زاولستان کلمه د قندهار او زمینداور له پاره لیدله کېږي.

د صفاریانو په پاچهي کي پروان، کابل، غزني، ګردېز، قندهار، زاول، بست، غور، غرجستان راغلي دي. ملتان ته نژدې سرحد بنوول سوی دئ. پېښور له سرحده وتلی دئ او د کابل و پېښور نیمایي سرحد دئ.

د سامانیانو په پاچهي کي د کابل او پېښور تر منځ هغه زوړ سرحد دئ. تخارستان، بامیان، کابل، غزنه، غور، زاولستان، قندهار او بست د دوی په اداره کي دي. د غزنویانو په پاچهي کي پېښور تر ستلج پوریا د سنده رود وېش تر بحیرې پوري، (پنجاب) پکښي شامل دئ. پنجوایي، زابلستان، بست، قندهار، مولتان په سرحد کي داخل دي. د پنجوایي کلمه تر دغه وخته پوري د سامانیانو په نقشه کي نه ده راغلې [16].

---

(16) علامه استاد رحمة الله علیه په پورتني متن کي د راغلیو تاریخي سیمو د نومونو تشریح ته له بده مرغه فرصت نه دئ موندلی، (هوتک).

تر اراکوزیا دمخه د کندهار نوم هاراتوتي (
کوروش چي د شپږم ق م په لومړی نیمایي کي اوسنی کندهار ونیوه، هغه وخت د کندهار نوم هاراخوتي و. مقدوني سکندر چي دا سیمه ونیوله دلته یې یوه کلا په (۳۲۹ ق م) کي ودانه کړله چي لوړ او پلن دیوالونه یې درلوده د دغه ځای خلک اراکوتي بلل کېدل.

## زابلستان :-

د ابوالفضل د بيهقي تاريخ د ٦٩ مخ په حاشيه كي كښلي دي :-

"زاول اسم ولايتی است که در جنوب بلخ و طخارستان واقع شده و باین معنی شامل غزنه، زمینداور و قندهار و سیستان هم میشود".

په متن كي يې زياته كړېده چي :-

"سلطان مسعود از هرات امیر عضدالدوله یوسف عم خود را برای فتح قصدار فرستاد، وی (یوسف) از هرات برفت، باغلامان خویش و هفت و هشت ترنگ؟ سلطانی باسواري پانصد سوی بست و زاولستان و قصدار[١٧]".

د فتوحات الاسلاميه بعد مضی الفتوحات النبويه د لومړي ټوک په ١٠۴ مخ كي د عبدالرحمن بن ثمره د بريو په سلسله كي يې د داور تر نيولو وروسته ليكلي دي :-

"و فتح کابل و زابلستان و هی ولایته غزنه ثم عاد الی زرنج".

ژباړه :- كابل او زابلستان يې چي د غزني ولايت دئ، ونيول او بيا زرنج ته ستون سو[١٨].

په واقعات بابري كي بيا د فردوسي او فرخي د اشعارو له مخې غزنين او قندهار د زابل جزء بللي دي، (غزنين قندهار را از زابلستان می گفته اند چنانچه از اشعار فردوسی و فرخی معلوم میشود".

په پهلوي كي زابلستان په سكو كي Zawulistan راغلی دئ. په كارنامک كي زاول دئ. عربانو زابل او زابلستان ليكلی دئ. مقدسي د جابلستان په شكل خوندي كړی دئ. هيون تسانګ Taso Kiu-cea

---

[١٧] علامه مرحوم دغه يادښت ته ځرمه يو ځای كښلي دي :-

کندهار باصطلاح موسیقی یکی از سُرهای هفتگانه است و زابل شعبهٔ از مقامی است که از پستی مقام "عشاق" بوجود می آید.

[١٨] ژباړه زما ده، (م . هوتک).

تسوکوي چا بللی دئ. Tsou Li Glasse د په نامه یاد کړی دئ، پایتخت یې Ho-Zi-na (غزنه) دئ او بل پایتخت یې Ho-sa-lu دئ چې رستم یې تـاداو ایښـی دئ. د مهرکـولا Mihirakula د پـلار هـون تورمـان Hona Toramana نـوم د جنـوب غربـي پنجـاب د Kyura پـه یـوه کتیبـه کـې د مهراجاتور مناساهه گوولا Shah Gauola لوستل سـوی دئ او د سپینو زرو پـه سکوکـې Sahi Gabula او Sahi Ganbula او Sahi Gabuola لیـدل سوی دی. کننگهم وایي چې جابولا د مقدسي له جابلستان سره مطابقت پیدا کوي. هیون ثانگ وایي د دې سیمي ژبه او خط د نورو ایالتو له ژبـي او خط سره توپیر لري.

مسعودي په ۳۴۹/۱ مخ کې دغه ملک د Abulistan په نامه ضبط کړی دئ چې د فیروزي کبک Kabk (د سیمي په نامه مشهوره ده). ډیري مانـی یې درلودې ... ډیري لهجـې لـري چـې منشاء یـې مختلف دي. ایرانـي قاموس نگارانو د زاولي په نامه یوه خاصه لهجه راوړې ده.

هیون ثانگ وایي :-

د ده په زمانه کې یو خاص مستقل شاهي دولت و، چې د دغي سیمي د پاچهانو کورنی له پخوا څخـه وې. د "افغانستان در شهنامه" پـه ۲۶۳ مـخ کې کښلي دي چې د Zabol کلمه د پنځم عیسوي قرن په اوایلو کې د زابل د یفتلي شاهانو پر سکو لیدل سوې ده.

ابن خرداذبه د زابلستان د پاچا لقب پیروزته ورکـوي. یـاقوت حمـوي په معجم البلدان کې لیکي :-

کوره واسعه قایمـه براسها بلـخ و طخارستان وهـی (زابـل) و العجم یزیدون السین مابعدها فی اسماء البلدان و شبیها باالنسبه وهی منسوبه الـی زابل جدرستم بن دستان و هـی البلاد التـی قصبتها غزنـه البلد المعروف العظیم.

بخارستان پراته دي.

ژباړه :- دا يوه پراخه سيمه ده. سر ته يې بلخ و طخارستان پراته دي. دغه سيمه د رستم عجمو د دغو ښارو په نومونو کي سين پر زيات کړی دئ. دغه سيمه د رستم بن دستان نيکه زابل ته منسوبه ده او دا هغه ښارونه دي چي يوه قصبه يې مشهور او لوی ښار، غزني دئ[19]. چي د

د شارستان په دوهم چمن ۴۸۲ مخ کي د اسفنديار غبرګون، چي د هلمند پر ژۍ يې د رستم د نيولو له پاره د خپل پلار ګشتاسپ په امر اړولي وه، د رستم له خولې ليکي :-

"خود ميدانی که سام در جهان چه ها کرده است. چه شهرها را از دست و چنگال جن و شياطين بيرون آورده است، هر کجا داهيهٔ روی می نمود او خلايق را از آن رها می داد. پدر مادر من محراب که به پنج پدر به ضحاک که از ابنای ذکور (سيامک) است ميرسد و حاکم و پادشاه کابل بود. من در مدت عمر جهان پهلوان بودم. به يمن قدم من ايرانيان بر دشمن غالب می آمدند و سلاطين سابق به جهت هنر مرا تعظيم می نمود و ولايت به من ارزانی داشتند، من محترم عبادم و نام من در دفاتر پادشاهان ثبت است. کيکاوس را پادشاه سيستان گردانيدند و تاج به پدر من داده و او را وليعهد خويش گردانيده ...".

په ۵۷۷ مخ کي زياتوي :-

رستم پخپل باغ کي ښخ دئ، چي په زابلستان کي دئ.

د آبان يشت په ۳۷ مه فقره کي راغلي دي :-

"ګرشاسپ د پښين د رود پر غاړه د ناهيد په نامه خيرات وکړ[20]" له دي څخه معلومېږي چي ګرشاسپ د زابلستان و. د رواياتو له مخي اوس هم ګرشاسپ په پښين کي، چي د غزني په جنوب او د کندهار په مشرق کي

---

[19] د نقل قول پښتو ژباړه زما ده. (م. هوتک).

[20] ادبيات مزد يسنا، ۲۰۳ مخ.

واقع دئ، په خواړه خوب بیده دي.

په طبقات ناصري لومړي ټوک ۱۹۸ مخ کي لیکي :-

یعقوب لیث صفار چي په ۲۵۱ هـ ق کي پر امیر صالح[۲۱] لاس وموند، هغه یې وواژه پخپله په نیمه ورځ کي د سیستان پاچا سو. وریسې یې زمینداور، زاولستان (کندهار) او غزنین ونیاوه، بیا بلخ ته ولاړ هغه یې هم تر لاسه کړ، بیا یې کابل ونیو. دا ټولي سوبې یې تر ۲۵٦ هـ ق پوري یووړې.

د تاریخ افغانستان بعد از اسلام په ٦۲۰ مخ کي کښلي دي :-

د زابل رتبیلان چي کوهک (ارغنداب) یې پایتخت و، د سپینو زرو پر تخت کښېنستل. په تاریخ سیستان ۲۰۸ مخ کي راغلي دي :- یعقوب لیث چي په ۲۹۴ هـ ق کال په رخج کي رتبیل وواژه، د ده خزانه، مالونه او د سپینو زرو تخت یې په دوو سوو کښتیو کي سیستان ته یووړل.

خو منهاج سراج د طبقات ناصري د لومړي ټوک په ۲۳۸ مخ کي د یعقوب لیث صفاري جلوس په ۲۵۱ هـ ق کي بولي او زیاتوي چي پسله دې د بست و زاولستان، داور و غزنین و خوا ته یې لښکر وایستی او ټول یې ونیول.

د سلطان محمود غزنوي مور د زابلستان د یوه مشر لور وه، چي تر ده وړاندي یې پر زابلستان باندي حکم چلاوه، دا یې زابلې بلله[۲۲].

**د شه بولان غار** :-

د سیرالمتاخرین د لومړي ټوک په ٦٥ مخ کي لیکلي دي :-

د کلات په اته کروهي کي یو لوی غر دئ. د دغه غره په لمنه کي یو غار دئ، ساه غارې بولي. دوې پلني ستني پکښې ولاړې دي. یوه ستنه چي تقریباً دېرش گزه جگه ده، په چت پوري نښتې ده اوبه پر رابهېږي او په هغه حوض کي لوېږي چي د دغي ستني په بېخ کي دئ. بله ستنه یوولس گزه جگه ده.

---

[۲۱] علامه رشاد رحمة الله علیه د امیر صالح د نامه له پاره ځای خالي پرې ایښی و. ما له اصل ماخذ څخه واخیست، (م. هوتک).

[۲۲] نامه خسروان؟ ۲۳/۲ مخ.

## سیستان – سجستان – سگستان :-

سیستان (سکستان) د سلوکیدیانو په پاچهي کي د یوه ایالت په توګه و. دا ایالت په عبري کي زرنګا، په پارسي کي درنګا (یا دراګا) یادېده. د بطلیموس په جغرافیه کي د هلمند رودبار د سیستان خوا ته نژدې د (سګزتانیت) په نامه یاد سوی دئ.

د سکستان حکومت د لومړي قرن په لومړۍ نیمایي کي د ګندوفر لاس ته ورغی. سیستان د اردشېر په وختو کي د پارس تابع سو. د طبري په حواله د پای کولي؟ په کتیبو کي د سیستان د پاچا ذکر د سکان شاه Sakanshah په شکل سته.

کلودیوس مامرتینوس Claudius Mamertinus د ۲۷۹ ع په خطابو کي ویلي دي :-

د هُرمز او وروري وهرام د (۲۷۶ – ۲۹۳) په جنګ کي د هرمز په مرسته ساکها – کوشان او ګلن Gelen قامونه ولاړ وو. اګاتیاس Agathias لیکلي دي :-

دوهم ورهرام پاچا د سګستان قام مغلوب کړ او خپل زوی دریم ورهران Warharan یې د ساکاشاه په نامه د سیستان والي مقرر کړ.

د ریاض المرتاض په ۲۹۷ مخ کي لیکلي دي :-

"سیستان ولایتی است حدودش از خراسان تا کرمان ملحق بغزنین و افغانستان و سند – سجستان بن فارس آنرا بنا کرد بزابلستان و نیمروز نیز شهرت دارد. در نسبتش سجزی گویند. نهر او را هیرمن نام است. در قاموس گفته هیرمن نهری است که بسیستان میرود. ابو داود سلیمان بن اشعث بن اسحق بن شبیر بن شداد بن عمر بن عمران سجستانی (متوفی ۲۷۵ هـ در بصره) صاحب سنن، خواجه معین الدین اجمیری، فرخی شاعر ازین جا برخاسته اند".

په تحفة الكرام ۸۵/۲ مخ کي ليکلي دي :-

"آنرا سجستان نيز گويند چه سجستان بن فارس آنرا آباد کرد.
بزابلستان و شهر نيمروز هم شهرت دارد و اهل آن ديار را سگزی نيز
ميخوانند، عرب معرب ساخته سجزی کردند. در مجمع الغرايب مرقوم است
اول قلعه اش را کرشاسپ ساخت بهمن تجديد عمارت نمود و (سکان) نام
نهاد. در عوام سکستان شد ازان سجستان شد".

په يوناني متونو کي يې د سيستاني نوم گدروزيا کښلی دئ. په شپږم
قبل الميلاد قرن کي چې ساکان دغه مملکت ته راغلل، نوم يې سکستان
(سگستان) سو. عربو کاف په جيم واړاوه سجستان او بيا سيستان سو.

سجستان د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په خلافت ۲۳ هـ کي په قهر ونيو
سو. ابوبکر الحازمي په کتاب المؤتلف في الاماکن کي ليکي :-

"سجز - بالسين المهمله مکسوره و بالجيم الساکنه وآخره زای - اسم
لسجستان و تعال فی النسبة الهاسجزی انتهی ذکره النوری".

په معجم البلدان کي ليکي :-

"سجستان هی ناحيه کبيره و ولايه واسعه ذهب بعضهم الی ان
سجستان اسم للناحيه و ان اسم مدينتها زرنج و بينها و بين هرات عشره ايام
ثمانون فرسخا و هی جنوب هرات".

ژباړه :- سجستان لويه سيمه او پراخ ولايت دئ. وايي دا د هغې
سيمي نوم دئ چي زرنج يې يو ښار دئ. د زرنج او هرات تر منځ د لسو
ورځو مزل دئ او ۸۰ فرسخه لار ده. سجستان د هرات جنوب ته واقع
دئ[1].

د فتوحات اسلاميه د لومړي ټوک په ۱۲۹ مخ کي ليکلي دي :-

"په ۹۲ هـ کي قتيبه بن مسلم سجستان ونيو او د (رتبيل اعظم) قصد

---

[1] د عربي متن پښتو ژباړه زما ده، (م. هوتک).

یې وکا. رتبیل یو استاځی (قاصد) د صلحي له پاره ورته راولېږه، قتیبه هم روغه وکړه، وګرزېد. عبدر بن عبدالله لیثي یې پر سیستانیانو ودراوه".

عربان سیستان ته په ۳۰ هـ کال د ربیع بن زیاد حارثي تر مشرتابه لاندي راغلل او د سیستان له مرزبان Aparwez سره یې یو تړون لاسلیک کړ. تر ده وروسته عبدالرحمن بن شمره ځان تر زمینداوره ورساوه، بست و زابل یې ونیول. د حضرت علي رضي الله عنه په خلافت کي خراسان او سیستان د عربو له لاسه ووتل، مګر د معاویه په پاچهۍ (۵۰ هـ ق = ٦۷۰ع) کي نوموړی عبدالرحمن بن شمره بیا سیستان، بست، الرخج او زابل ونیول. کابل او بلخ یې هم د عربو مطیع کړل.

د فتوح البلدان په ۳۸۸ مخ کي لیکلي دي :-

عبدالرحمن بن شمره له خشکه ځخه پر رخج برید وکړ هغه یې ونیوه، بیا یې پر زابلستان برید وکړ بیا یې کابل ونیوه.

کابلشاه زیار ویوست چي عربان له خپلي (سیمي) ځخه وشړي. زابلستان Zunbil یې تر الرخج او بست پوري تقویه کړ. که څه هم د عبدالرحمن بن شمره له جانشین ربیع بن زیاد ځخه یې ماتې وکړه او تر ارونجه عربان په پسې وو، مګر د ربیع بن زیاد له جانشین عبیدالله بن ابوبکر سره یې یو تړون لاسلیک کړ او لس لکه درهمه یې کلنګ ومانه[۲].

یزید بن معاویه چي په ٦۴ هـ ق کال مړ کېدی، سالم بن زیاد د خراسان او سجستان والي و. د ده د ولایت په وختو کي د کابل خلک پورته سول او ابو عبیده بن زیاد یې بندي کړ. یزید بن زیاد د سالم له خوا د سیستان د والي په توګه د کابل شاه جنګ ته راولېږل سو. د Gazna (غزنه) په شاوخوا کي جنګ وسو او کابل شاه ماتې وکړه[۳].

---

[۲] وګ :- بلاذري، ۲۹۷ مخ.

[۳] بلاذري، ۳۹۷/۲ مخ، طبري، ۴۸۸/۳ مخ.

په دغو جنګو کي زنبيل دومره قوت وموند چي په زرنګ کي عربان ځني پکو وو. داسي معلوميږي چي دغه زنبيل د عبدالله بن ابر (٦٤ – ٧٣ هـ ق) د پاچهی په زمانه کي زرنګ ته نژدې د يوه عرب له لاسه وواژه سو[۴]. په لومړي ذکر کي کابلشاه بېل سړی دئ او زنبيل شهزاده بېل سړی دئ. مګر د طبري له يوه مبهم بيانه (۲۷٦/۱ مخ) څخه داسي معلوميږي چي دغه شهزاده د کابلشاه ورور دئ. هلته کښلي دي :-

شاه له خپل ورور زنبيل څخه د سجستان په يوه ښار آمل کي (ښايي زابل وي) وتښتېد او د سيستان حاکم سالم بن زياد ته يې پناه ورووړه او هغه ورسره ومنل، چي پخپلو ښارونو کي د تحت الحمايه په توګه حکومت وکړي. د معاويه تر مرګ وروسته چي د مسلمانانو اداري مرکز پخپلو شخړو اخته سو، شاه پورته سو او Amul يې تينګ کړ. زنبيل وبېرېد او خپل پوځونه يې غبتلي کړل او د زرنګ خوا ته يې پيشقدمي وکړله خو عربو ته له بصرې څخه کومک راورسېد، (طبري ۳۹۲/۱ مخ).

په دغه ليکنه کي څه تحريفات سته :-

۱. زنبيل له خپل وروره تښتېدلی دئ، نه له شاه څخه. ځکه هلته واضح ليکلي دي :- فهرب من الشاه اخوه و اسم اخي الشاه يومئذ زنبيل.

۲. سالم بن زياد د معاويه په وختو کي د سيستان حاکم نه و، بلکي د يزيد په وختو کي لومړی وار د خراسان او سيستان والي مقرر سوی دئ او د يزيد تر مرګ وروسته د امويانو او عبدالله بن زياد تر منځ جنګ پيښ سوی دئ.

دا چي دوهم زنبيل د لومړي وژل سوي زنبيل جای نشين او د سيستان والي و او هغه هم د امويانو تر قدرت ته تر رسېدلو وروسته ... دا څه عجيبه

---

[۴] بلاذري، ۳۹۸/۲ مخ.

غونـدي ښکـاري چـي ابـن خردادبـه ځنگـه زنبيـل د سجسـتان ارونـج – زميندا‌ور د حاکم په توگه معرفي کړی دئ، په داسي حال کـي چـي زنبيـل هيڅکله د سيستان حکومت په لاس کي نه و[5].

په تاريخ سيستان ۱۱۲ مخ کي ليکلي دي :-

په ۸۲ هـ ق کال عبدالرحمن بن محمد الاشعث الکندي لـه لښـر سـره چي جيش الطواويس نومېده، سيستان ته راغی. دی د دغه کال په پای کي د زنبيل جنگ ته وخوځېد او عبدالله بـن عـامر المجاشعي يـې د سيسـتان حاکم وټاکه. بست ته ولاړ او له زنبيل سره يې جنگ وکړ. ډېر کفار يې ووژل، ډېري اولجې په لاس ورغلې. بريالی راستون سو. عبدالرحمن بـن محمـد اشعث د حجاج څخه وگرزېد. له لښکرو سره بصرې ته ولاړ. هلته يې يـو اتيـا جنگه له حجاجه سره وکړل. په يو اتيايم جنگ کي عبدالرحمن مات سـو او سيستان تـه راوتښتېد. حجاج د مروي حـاکم مهلـب تـه خـط ولېږه چـي عبدالرحمن ونيسي. هغه يو تکړه پـوځ د خپـل زوی پـه مشرۍ سيستان تـه ولېږه. حجاج له بصرې څخه يو پوځ د عبدالرحمن بن العبـاس هـاشـمي پـه مشـرتوب سيسـتان تـه ولېـږه. دواړه پوځـونـه چـي سيسـتان تـه ورسـېدل عبدالرحمن بن محمداشعث بست ته ولاړ. دواړه لښکره پسي ورغلل د بسـت او رخج تر منځ جنگ ونښت د اشعث زوی مـات سـو زابلستان تـه ورغـی او زنبيل ته يې پناه يووړه. حجاج چي خبر سو عماره بـن نمـيم التميمـي يـې زنبيل ته ولېږه او پيغام يې وروړ، زموږ لښکري ستا سيمي ته نه درځي او له تا باج نه غواړي، خو که ته عبدالرحمن بن اشعث او فلامي؟ موږ تـه راولېږې. زنبيـل دوی دواړه بنـديان او يـوه کـړۍ يـې د دواړو پښـو تـه ورواچـول. عبدالرحمن بن اشعث ځان تر بام راواچاوه او فلامي هـم ورسـره راولوېـده،

---

[5] وروستی پاراگراف د يادابښتو له يوه بل مخ څخه دلته رانقل سو. که يې لـه موضوع سره ارتباط کمزوری ښکاري، پره يې پر ما بايد واچول سي (هوتک).

دواړه مړه سول. عماره یې ککری پرې کړې او دواړه ککری یې حجاج ته ور ولېږلې. د عبدالرحمن او ملګري بدنونه یې په رخج کې ښخ کړل. حجاج د اشعث د زوی ککری خلیفه ته ور ولېږله او هغه عبدالعزیز بن مروان ته، چې د مصر اموي حاکم و، واستوله. د اشعث د زوی سر په مصر کې ښخ دئ. د اشعث د زوی مرګ په ۸۵ هـ ق کې پېښ دئ. دی دوه کاله په بست کې او زاول کې و.

یوه شاعر ویلي دي :-

هیهات موضع جثه من راسها

راس بمصر و جثه بالرخج

ژباړه :-

هیهات څومره لیري دئ سر او بدن

سر په مصر کي پر رخج پاته دئ تن[۶]

**عباد بن زیاد :-** عباد بن زیاد د معاویه خوریی و. اووه کاله د سیستان والي و. د ده په وختو کي عربو کندهار ونیو. یزید بن معاویه په ۶۸۰ ع کال معزوله کړ او ده پر ځای یې د ده ورور سلم بن زیاد د سیستان او خراسان والي وټاکه[۷].

---

[۶] د شعر ژباړه ما کړېده (م. هوتک).

[۷] المنجدفي الادب والعلوم، ۳۳۱ مخ.

**زینداور :-**

د سیمي خلک دا ځای زینداور zin dawar بولي او د دغه ځای اوسېدونکي زینداوري بولي. Zin د zon ممال شکل دئ.

عربانو چي د کندهار پاچهان رتبیل بللي دي، زه (رشاد) گمان کوم رتبیل Ratbil د زن پال محرف او مصحف شکل دئ. دا تصحیف د عربوله مؤرخینو څخه پېښ بولم. د دغي کلمې لومړی جزء zan یا zon یا zin دئ، چي د لمر معنا لري او بیل د pal>pil مبدل شکل دئ.

Pat>pad>pal یوه لرغونې آریایي کلمه ده، چي د (پالونکي او پرستش کوونکي) معنا یې درلوده. آذرپات د (اور د ساتونکي) په معنا اوستایي کلمه ده په (موبد) کي هم دغه ریښه سته[1]. گرشک ته نژدې (زنبولی zonbulay) د دغي نظریې ملاتړ کوي. دغه ځای تر اوسه د (زنبولي) په نامه یادېږي.

د فرهنگ توضیحي لغات مغلق په ۱۴۸/۲ مخ کي لیکلي دي :-

زمینداور د غور د پاچهانو د ژمي پایتخت و. دا ځای یو دیني معبد و. دلته پخوا د لمر د عبادت یو لوی معبد موجود و. په زمینداور کي د لمر یو طلایي بت پیدا سو چي د خلافت دربار ته ولېږه سو.

دا نوم له دوو جزو څخه جوړ دئ. Son>zon>zamin، زون (سون) اوس هم په انگرېزي ژبه (sun) لمر بولي، (داور) جزیې د ځای معنا لري.

حافظ ابرو لیکي :-

"جبل الزور (یا جبل الزون) بین غور و اسفزار واقع است و قبر سلطان ابراهیم قتال در آنجاست".

---

[1] وگ :- فرهنگ واژه های اوستا، ۲۰۹ مخ. علامه استاد رحمة الله علیه د زینداور په باب د (سرزمینهای خلافت شرقی) د ۳۷۰ مخ حواله ورکړېده، خو ځای یې تش پرې ایښی دئ (هوتک).

د (پژوهشی در تاریخ هزاره) په ۲۷ مخ کې لیکلي دي :-

په ۳۱ هـ ق زیندا‌ور عربو ونیوه. له دواړو خواوو ډېر خلک ومړل. یوازي د عربو د لښکر مړي څلورو زرو ته رسېدل. د اسلام د لښکر مشر عبدالرحمن بن سمره و، چې تر ربیع بن زیاد حارثي وروسته د سیستان والي و. غازیانو ته ډېري اولجې په لاس ورغلې. په اولجو کې د زور له معبده څخه د سرو زرو بت هم په لاس ورغی چې د یاقوتو سترګي یې وې. په دغه وختو کې د زیندا‌ور خلکو د لمر پرستش کاوه.

بارتولد د بیهقي (۱۲۳ مخ) په حواله لیکي :-

په زمینداور کې د غوریانو د حملو د مخنیوي له پاره څه استحکامات او پوځونه اچول سوي و. سلطان محمود غزنوي له دغه ځایه له غوریانو سره جنګونه کول.

په حدود العالم کې لیکلي دي :-

زمینداور آباده سیمه ده. د غور او بست پر سرحد باندي دوه ښاره لري:-

تِل (د لومړي په کسره) او درغش. په درغش کې زعفران کېږي. د درغش سیمه د بست په درمشان پوري نښتې ده[۲].

ابو زید بلخي زمینداور د سیستان له مربوطاتو بولي (المقدسي).

اصطخري زمینداور د غور سرحد ګڼي. المقدسي زمینداور په بست پوري ګڼي.

حموي وایي :-

د سیمي خلک یې زمنداور بولي چې د (ارض داور) معنا لري. پراخ

---

[۲] په سرزمین های خلافت شرقی کې راغلي دي چې (تِل) ته نژدې د زور معبد واقع و. په قاموس جغرافیایی افغانستان و اطلس قریه های افغانستان کې (تِل) سربغني د باغران جنوب ته ښیي.

ملک دئ. ښارونه لري. اصطخري وايي :-

د سیستان له خوا د داور سرحد دئ. د غور سرحد دئ. د داور یوه شنه سیمه ده د هندمند رود پر غاړه واقع دي[۳].

دواړه د ښارونه (تل، درغور) دي. د (پښتانه کوچیان) په کتاب د (تل) په باب محمدابراهیم عطایي (۱۷۶ - ۱۷۷ مخونو) کي لیکلي دي :-

د نوموړي کلي د بغني درې د پای په برخه کي سربغنی کلی پروت دئ، د تل او گونجین کلي پراته دي. جنوب غرب ته د غرونو په کمرونو کي د منځ یو مزل لار بولي[۴].

اصطخري د تل او درغش تر منځ یو مزل لار بولي[۴].

اصطخري د عثمان رضي الله عنه په زمانه کي عبدالرحمن بن سمره بن حبیب چي د زون په غره کي سیستان ونیو، د رخج له لاري داور ته راغی. دوی یې د زون په غره کي کلابند کړل[۵]. په اتو زرو درهمو سوله وسوه. عبدالرحمن زون ته ورننوت[۶]. د زون د بت لاسونه یې ور پرې کړل او دواړه یاقوت یې له سترگو راوکښل، د داور مشر ته یې وویل ما د جواهرو او زرو په مینه کار نه دئ کړی. دا مي تا ته وښوول ستاسي داسي خدای دئ چي له ځانه دفاع نه سي کولای. تاسي ته به څه گټه در ورسوي او څه تاوان به در څخه ونیسي[۷].

---

[۳] اطلس قریه های افغانستان (ده زور - ده ظهر) د موسی کلا لوېدیز لور ته څلور پنځه کیلومتره لیري ښیي.

[۴] کېدای سي درغش (لرغانبی) وي او دا د یوه کوتل نوم وي؟

[۵] فتوح البلدان د بلاذري، ۲۷ مخ.

[۶] زون صنم من ذهب و عیناه یاقوتتان (ژباړه :- د زون بت د سرو زرو دئ او سترگي یې دوه یاقوته دي. م. هوتک).

[۷] تر دې وروسته علامه استاد رحمه الله د زمینداور په باب د عزیزاحمد پنجشیري د هغې مقالې یادونه کوي چي د کابل پوهنتون د اجتماعي علومو د مجلې د ۱۳۶۰ کال په څلورمه گڼه کي خپره سوې ده. تر یادوني وروسته یې ځای ورته تش پرې ایښی دئ (هوتک).

په صورة الارض کي ابن حوقل ليکلي دي :-

په داور کي پيداوار ډېر دي. د غور سرحد دئ. بغنين و خلج و بشلنګ د داور هغه سيمي دي چي هره سيمه حاکم لري. مهم ښارونه يې درتل و درغش دي چي د هلمند پر غاړه ودان دي. په بغنين، خلج، کابل و غور کي څه مسلمانان سته. دا سيمي سردسيري دي. له بسته څخه تر سروان پوري د داور پر لار دوه مزله دي. له سروانه څخه چي يو مزل تېر سې، بايد له هلمنده څخه پوري وزې. بيا نو درتل ته ځې. له درتله څخه تر درغش پوري تر يوه مزله زيات دئ. دواړه پر يوه غاړه (ښي غاړه) ودان دي. له درتله څخه تر بغنين پوري د يوې ورځې لار ده. د بغنين په جنوب کي بشلنګ قبيلې اوسي.

د ۱۳۲۰ کال په کلنی کې راوړي دي :-

بغنين :- شهری بوده در زمينداور مسکن خلجی ها.

دارتال (درتل) :- از مهمترين شهرهای زمينداور بوده، ارګ مستحکمی داشت. در قرن چهارم هجری اين موضع بمثابه يک نقطۀ عسکری برسر راهيکه بطرف کوههای غور ميرفت، شمرده ميشد. تخمين ميکنند که ګرشک حاليه بوده.

دارغاش (درغش) :- شهری بود در زمينداور.

شيروان :- شهری بوده بين بست و دارتال.

شورمين :- شهری در شرق غرجستان.

فرساګ :- شهری بود در اراکوزيا (قندهار).

فوکلين؟ :- شهری بود در اراکوزيا. ممکن قلات امروزی باشد[8].

---

[8] تر دې وروسته علامه استاد رحمه الله د مختصرالبلدان د تعليقاتو د ۲۰۰ مخ، د سرزمين خلافت های شرقی د ۳۶۹ - ۳۷۱ مخونو او د بلاذري د فتوح البلدان د ۳۹۴ - ۴۳۴ مخونو حوالې ورکوي او نقل قولونو ته يې ځای پرې ايښی دئ (هوتک).

په تحفة الكرام ۸۸/۲ مخ کې کښلي دي :-
"داور زمین از مضافات قندهار دارالملک سوری جد سلاطین غوری است.
طولش (قه ها = ۱۱۱) عرضش (لح ها = ۴۴) شهری بعظمت بوده در ناحیه اش گنبدی در آن دو قبر است که ایشان را شهزاده های گنبد سرباز می گویند. مکرراً سقف آن دو گنبد را پوشانیدند صباحش شکاف یافتند اصلاً از آن گل و خاک چیزی درون گنبد نیفتاده..."
په مختصرالبلدان ۲۲ مخ کې کښلي دي :-
رخج او زمین داور د سیستان ښارونه دي، دا هیواد د رستم پهلوان دئ چي کیکاوس د دغي سیمي پاچهي ورکړې وه. قرنین چي د هلمند په ناوه کي واقع دئ، په دغه ښار کي د رستم د آس اخور سته.

## سلطان محمود او د زینداور حکومت :-

سبکتگین چي د بست جنګ ته تئ، محمود نومی زوی یې، چي هغه وخت اووه کلن و، په غزني کي خپل نایب وټاکه، خو کاله وروسته یې د زینداور حکومت ورکړ.

## له زینداور څخه د غور لار :-

له موسیٰ کلا څخه د تخته پل د شرق خوا ته یا د موسیٰ کلا د رود د غرب خوا.
د رود شرقي خوا تر تخته پل وروسته پروالاخور، تر هغه وروسته باشلینګ[۹]، بیا سور کوتل، چپ لاس اخلې، پر بختک ورځې. بختک د

---

[۹] باشلینګ زوړ ښار دئ.

نوزاد مربوطه علاقه ده، پر امام رباط ورځـي تـر هغـه وروسـته پـر چرمستان پرگرز gurz له گرز[۱۰] څخه د مرغاوی پر کوتل اوړي راسته لاس تـه يـې دره ده. پر دغه ځای پرې ختمېږي. تر مرغاوی کوتل چي واوړې[۱۱] د غـور علاقـه ده. پرې دره د باغران[۱۲] په ولسوالی پوري اړه لري.

دا بله لار پر تيزني Tiznay دره ورځي. د تيزني لار پـر بختـک بانـدي ورځي.

# د زینداور نومیالي

## عباس بن محمد داوری :-

هاشم هروي په مقولاتو کي د ده يادونه کوي او وايي :-

"الحافظ المشهور متوفی ۲۷۱ ه".

ملا معين اخوند د هاشم هروي له مقولاتو څخه ليکي :-

"الفقيه الحافظ محمدالدغولي متوفي ۳۲۵ ه".

دغول بنايي درغور وي، چي د زينداوريو بنارو.

## ابي القاسم داوری :-

ابي منصور عبدالملک بن محمد بن اسـماعيل (۳۵۰ - ۴۲۹ هـ ق) په لطائف المعارف کي د هرات په فصل کي کښلي دي :-

---

[۱۰] گرز يوه ناوه ده چي يونيم زر کوره پکښې اوسي، نورزي دي.

[۱۱] د مرغاوی تر کوتل چي واوړې د پسابن (سياه بند) ولسوالي ده.

[۱۲] لوی باغران اوگردی باغران. خوديان عليزي پکښې اوسي. د بـاغران اوسـېدونکي تـر سره کوتل وروسته ټول عليزي دي.

ما احسد اهل الهراة الاعلى ثلاثه
مشهد عبدالله بن معاویه بن عبدالله بن جعفر بن ابي طالب فیهم.
و حصول شراب القشمش لهم
و مقام ابي القاسم داوری بینهم
ژباړه :-
د هرات له خلکو سره څوک حسد نه لري، مګر په دریو شیانو :-
دا چي عبدالله بن معاویه بن عبدالله بن جعفر بن ابي طالب پکښې دئ،
دا چي د کشمشو شراب پکښې موندل کیږي،
او دا چي ابي القاسم داوري پکښې اوسي[13].

## شرر زمینداوری :-

د شرر په باب د خراسان مجلې د دریم کال په یوولسمه ګڼه کي مایل
رضا هروي یو مضمون خپور کړی دئ چي لنډیزیې دا دئ[14].

## شاه حسیني زمینداوری کندهاری :-

د شرح الاسماء قادریه مؤلف دئ. د دغه کتاب یوه خطي نسخه په
ملي آرشیف کي خوندي ده.

## عبدالله بن محمدالداوري :-

د هاشم هروي په مقولاتو کي راغلي دي :-
عبدالله بن محمدالداوري له ابابکر الحسین بن علي بن احمد بن

---

[13] ژباړه یې ما پر زیاته کړه (هوتک).
[14] د لنډیز له پاره ځای خالي پرېښوول سوی دئ (هوتک).

محمد بن عبدالملک بن زياد څخه سمع کړې ده.

او په بياض المعين کې عبدالله داوري د کتاب الموضح خاوند بلل سوی دئ او وفات يې په ۳۲۴ هـ کې شوول دئ.

## حسن بن علي الداوري :-

په معجم البلدان ۴ ټوک کې راغلي دي :-

ابوالمعالي الحسن بن علي بن الحسن الداوري د منهاج العابدين په نامه يو کتاب لري، دا د مذهب يو فصيح کتاب دئ چې ځينو خدای ناترسو ابي حامد الغزالي ته منسوب کړی دئ. غزالي شعر نه وايه او دا خبره ټينګ دليل کېدلای سي چې نوموړی کتاب د بل چا تصنيف دئ ...[۱۵].




---

[۱۵] د معجم البلدان دا قول علامه استاد مرحوم په عربي رانقل کړی و. ما يې په لوستلو کې څه ستونزې درلودې ځکه مې د هغه لنډيز په پښتو واړاوه او دلته مې راووړ. امام ابي حامد الغزالي د منهاج العابدين په نامه يو کتاب لري چې علامه حبيب الله کندهاري (حبو اخوندزاده) په پښتو ژباړلی دئ. دا چې د معجم البلدان مولف يې حسن بن علي الداوري بولي، نوره څېړنه غواړي (م. هوتک).

**الرُخُج :-**

د صورة الارض په ۱۵۵ مخ کي ابوالقاسم محمد ابن حوقل، چي په ۳۳۱ هـ ق کال د سفر په نیامت وتلی دئ، د رخج په باب لیکي :-

رخج د یوې سیمي نوم دئ، پایتخت یې پنجوایي دئ، بل ښاریې کهک دئ، د بالش او داور د ملکونو تر منځ پروت دئ. اوبښان، غوایي او پسونه ډېر لري. خلک یې هوسا ژوند لري. پراخي ده پکښې[1]. بالش د یوې سیمي نوم دئ چي د حاکم ځای یې سیوی ده. والي په قصر کي کښېني. اسفنجای تر قصر لوی دئ. تر بالش پوري له پنجوایي څخه مزلونه دا دي:-

د بیابان له لاري ځي له پنجوایي څخه رباط سنګي (رباط الحجر) یو مزل تر کنکي رباط پوري، یو مزل تر رباط برکه پوري، یو مزل او اسفنجای (پښین؟) یو مزل. پنجوایي له کهکه څخه یو فرسخ فاصله لري. له پنجوایي څخه تر اسفنجای پوري درې مزله دي. قصر اسفنجای ته مخامخ واقع دئ. د اسفنجای او قصر تر منځ فاصله یو فرسخ ده. اسفنجای ښایسته کلا لري. د اسفنجای څخه تر سیوی پوري دوه مزلونه دي.



بارتولد په جغرافیای تاریخي ایران کي کښلي دي :-

په لسم عیسوي قرن کي د قندهار د سیمي نوم الرخذ یا الرخج و. دا د مارکوارت په عقیده (۳۷ مخ) د یوناني اراخوزیا څخه جوړ دئ.

د کشک نخود (کشک الرخج) پر ځای چي له بسته څخه د زمینداور او غزني خوا ته لومړی مزل قر دروند آباد و[2].

یاقوت حموي په معجم البلدان کي لیکي :-

---

[1] په نقشه کي کهک د سروان (کلا) او پنجوایي تر منځ ښیي او پنجوایي د غزني او بست په منځ کي ښیي.

[2] وګ : - اصطخري ۲۴۸ – ۲۵۰ مخونه، مارکوارت ۲۵۵ – ۲۸۸ مخونه. (د دغه یاداښت یو دوې کلمې مي ونه سوای لوستلای، هوتک).

رُخج بالتشدید خاء و اخره جیم تعریب رخو کورة (ناحیة) و مدینة من نواحی الکابل قال ابو غانم معروف بن محمد القصری شاعر متاخرین قصر کنکور :-

ورد البشیر مبشراً بحلوله
بالرخج المسعود فی استقراره

وینسب الی الرخج فرج وابنه عمر بن فرج و کانا من اعیان الکتاب فی ایام المامون الی ایام المتوکل شبیها بالوزراء و ذوی الدواوین الجلیله.

و کان عبدالصمد بن المعذل یهجو عمر بن فرج فمن قوله فیه :-

امام الهدی ادرك و ادرك ادرك
و مربدماء الرخجین نسفك
ولاتعد فیهم سنه کان سنها
ابوك ابوالاملاك فی آل برمك

و له یخطب نجاح بن سلمه :-

ابلغ نجاماً فتی الکتاب ماء لکه
تمضی بها الریح اصداراً و ایرادا
لایخرج المال عفواً من یدی العمر
او تغمد السیف فی فوئیدیه اغمادا
الرخجیون لایوفون ماوعدوا
والرخجیات لا یخلفن میعادا

د عربي جغرافیه لیکونکو په آثارو کي د قندهار نوم په دغو ځایو کي نه دئ ذکر سوی او له قندهاره څخه چي په عربي جغرافیو کي راغلی دئ، مراد هغه قندهار دئ، چي د کابل او سنده (اباسین) د رودونو په ملتقا کي واقع دئ. مګر بلاذري و یعقوبي و مسعودي قندهار په دغه اوسني نامه

بولي[3].

د يوناني مؤرخينو Arachosia، د داريوش په ډبرليک کې Harauati، د اوستا Haraxvat (لسم هيواد دئ چې اهورمزدا پيدا کړی دئ) اوسنی دهراوت؟، عربي الرخج او پهلوي Raxt (د يوې جغرافيايي سيمې نومونه دي).

په اېرانشهر کې يې ليکلي دي :-

الرخج د مقدسي په احسن التقاسيم ۷۹۲/۲ مخ کې رخوذ، د ابن رسته په اعلاق نفيسه ۱۰۵/۳ مخ کې الرخذ - الرخج او د ايزيدوخراکس په ليکنو کې Harxwat دئ.

بست او الرخج د شاه پېروز د پاچهی تر سقوط وروسته د زابلستان سره په هفتاليانو پورې وتړل سو. د شهرهای اېران (بمبئی چاپ) مؤلف ليکي:-
رخوت (رخج) د (گودرز) زوی (رهام) جوړ کړی دئ[4].

هغه کتيبې چې په نهرسويز او د نيل پر غاړو پيدا سوي دي په هغو کې د هخامنشيانو د ۲۴ تابعو ملکونو نومونه راغلي دي. په دغو کې رخج کلمه چې په زړه پاړسي هراخوتي ده، په مصري تلفظ هرخدی ضبط ده او هيروغليفي ليک يې داسي دئ :-

دلته زمری R د ږغ افاده کوي. په وروستيو هيروغليفي ايډيو ګرامونو کې (⬭) د زمري او بيا د R ږغ افاده کوي. دا د زمري خوله ده[5].

د تاريخي ابوالفداء په ۵۵/۲ مخ کې ليکلي دي :-
يعقوب ليث (۲۴۷ - ۲۶۵ هـ ق) هغه ځوک دئ چې الرخج يې ونيو، د

---

[3] وګ: مارکوارت، ۲۷۰ - ۲۷۲ مخونه.
[4] ملک الشعراء بهار د تاريخ سيستان ۳۰ مخ په حاشيه کې کښلي دي :- (ځای تش دئ، هوتک).
[5] مجلهٔ بررسی های تاریخی، ۳ گڼه، ۱۳۴۵ ش.

رخج خلک د ده پر لاس مسلمانان سول؟ د رخج پاچا د سرو زرو پر تخت کښیناست.

د یوسفزي افغان په ۲۵۵ مخ کي لیکلي دي:-

رخج د کندهار او غزني تر منځ علاقه ده او زابل د هلمند د سیند ناوه او شاخوا ته وایي[٦]، مګر بابر د غزني په جنوب کي د مقر علاقه زابل بللې ده.

## پنجوایي :-

پنجوایي د کندهار د احمدشاهي ښار لوېدیځ ته (لږ څه جنوب ته مایل) له کندهار ښار دوه کروه (۲۷ کیلومتره) لیري پروت دئ.

پنجوایي د الرخج د مرکز په توګه عربي جغرافیه لیکونکو یاد کړی دئ. ابوالفداء (په ٦٧٢ هـ ق کي په دمشق کې زېږېدلی) په تقویم البلدان کي پنجوایي د الرخج یو ښار ښیي او د پنجوایي او پنجوای په شکلونو کي يې ضبط کړی دئ. د جیهاني په المسالک والممالک او د ابن حوقل په صورت الارض کي هم د (پنجوا) یادونه سوېده او د الرخج له ښارونو څخه شمېرل سوی دئ. جیهاني کهک[٧] د پنجوایي له مربوطاتو څخه ګڼي. د پنجوایي د ښار کنډوالې اوس هم د پنجوایي په کلي کي پر یوه غونډۍ لیدل کېږي[٨]. د دغو کنډوالو پر شاوخوا یو خندق راګرزېدلی دئ. د چلغور په غونډۍ، د دیمراسي په غونډۍ او شمشېر غار کي حفریات سوي دي[٩].

---

[٦] د هلمند سیند د شاوخوا زابل څخه به مراد د ایران زابل وي؟ (هوتک).

[٧] کهک = کوهک د ارغنداو رود پر لوېدیزه څنډه پروت دئ، (م. هوتک).

[٨] دا غونډۍ د پنجوایي د کلي جنوب ختیځ لور ته پرته ده، (هوتک).

[٩] د چلغور غونډۍ د پنجوایي د لاري جنوب ته د سالهان پر برابري واقع ده او د دیمراسي غونډۍ د پنجوایي کلي جنوب ختیځ ته پرده ده، (م. هوتک).

د دیمراسي غونډۍ له پنجوایي اته کیلومتره او شمشېر غار له پنجوایي پنځه کیلومتره واټن لري.

مقدسي د احسن التقاسیم په ۳۰۵ مخ کي کښلي دي :-

تر بست لوړ، د غزني خوا ته پنجوایي پروت دئ، د ده خپل الفاظ دا دي :-

"منیعة بها جامع حسن شربها من نهر".

په سرزمین خلافت شرقي ۳۷۱ مخ کي لیکلي دي :-

پنجوایي د بست ختیځ ته څلور مزله لیري واقع دئ. له پنجوایي څخه یوه لار مخ پر شمال غزني ته ځي او دوولس مزله لار ده. بله ختیځ ته ځي پر دغه لار د سیبۍ او پنجوایي تر منځ شپږ مزله ده؟ لستریخ دا هم زیاتوي چي پنجوایي پخه کلا درلوده او یو جامع مسجد هم پکښې ودان و.

اصطخري وایي :-

"پنجوایي د پنځو رودو معنا لري". خو اوس درې روده سته : ارغند، دوری او ترنک[10].

د پنجوایي اولسوالۍ غولی ۳۹۸۹ کیلومتره مربع دئ. او د بحر له سطحي څخه ۹۵۰ متره جګوالی لري. ۲۴ زره جریبه باغونه او نوي زره جریبه یې کروندې دي. شمالي عرض البلد یې ۳۱ درجې ۳۲ دقیقې او شرقي طول البلد یې ۶۵ درجې ۶۸ دقیقې دئ. د کلیو شمېر یې ۳۷ ته رسېږي. لوی کلي یې دا دي :-

سپېروان، زنګاوات، پاشمول، تلوکان، کلک، سلوغی، نلغام، سالهان، موشان، سلوات، اشوغه، ناخونی، زله خان، دیمراسی، چلغور، قاسم رباط، اشرف، کدهل.

---

[10] له ارغنداو رود سره ارغسان رود او د کدني توی هم ګډېږي. په دې حساب د رودو شمېر پنځو ته رسېدلای سي؟ (م. هوتک).

ابن حوقل په صورت الارض کي د (الرخج) موقعیت د داور او پاشین (پښین) تر منځ ښيي او (پنجوايي) د الرخج د مرکزي ښار په نامه يادوي[11].

د پنجوايي له مرکز څخه ۲ کیلومتره لوېدیځ ته د سپېروان په سکېلچه کي د سید شېر قلندر زیارت دئ چي په ۹۳۳ هـ ق کال مړ دئ. د ده په زیارت کي په اخترو مېلې کېدلې.

د پنجوايي په کلي کي د سردار مهردل خان مشرقي د کورنۍ یوه برخه اوسي. په دوی کي سردار محمدرفیق خان د پښتو ژبي شاعر و.

## شمشېر غار :-

د کندهار – پنجوايي په لار کي د پنجوايي او سالهان تر منځ د لويي لاري شمال ته یو غر پروت دئ، چي (مارغر) يې بولي. د دغه غره په جنوبي لمن کي دوې لويي سمڅي دي. یوې ته شمشېر غار او بلي ته تور غار وايي. تور غار تر شمشېر غار څه کښته دئ. د سیمي خلکو يې خوله ورپټه کړېده. په اشوغه کي هم کندوالې سته. دغه غارونه د اوسېدلو د وختونو بقایاوي دي[12].

د سیرالمتاخرین په ۶۵/۱ مخ کي لیکلي دي :-

د کندهار له ښار څخه پنځه کروه لیري اژدرکوه (مارغر) واقع دئ. په دغه غره کي یو عجب غار دئ د جمشید غاري يې بولي. تیاره ده پکښې.

---

[11] سوبمن، نصرالله، په تاریخ او جغرافیه کي د پنجوايي مقام، ۸۳ مخ، د زرغونې یاد (د مقالو مجموعه).

[12] شمشېر غار د مار د غره په جنوبي لمن کي نه، بلکي د غرونو د دغي لړۍ په غربي خوا کي د پنجوايي او اشوغې د کلیو تر منځ د (بدوانو) سیمي ته نژدې د ارغنداو رود پر ختیځه څنډه واقع دئ. په دغه سیمه کي زه ډېر گرزېدلی یم، (م. هوتک).

څراغان چې ولګوې ښه رڼا نه کوي.

میرمعصوم د تاریخ سنده په دریم ټوک کې لیکلي دي :-

"پنجوایي د یوه ځای نوم دئ چې د قندهار لمر لوېدیز ته ۱۰ کروه لیرې پروت دئ. پنجوایي ته نژدې یو غر سته چې په هغه کې یو غار دئ. خلک چې ورننوزي، هلته رواني اوبه ویني. تراشلي ځایونه او ایوانونه هم پکښې سته. لوی لوی شوپرکان پکښې دي. وایي هلته یو طلسم موجود دئ. یو څرخ دئ تر هغه چې ورتېر سې د طلا خښتې دي. وایي بابا صاحب (بابا حسن ابدال) هلته ورغلی دئ، پر څرخ یې پوست پخته؟ واچاوه تر تېر سو. یوه خښته یې له هغه ځایه راوایستله". وایي د دې غار یوه خوله چهل زینې ته نژدې د چهل زینې په غره کې ده.

احمدعلي کهزاد وایي :-

زه یو وار په ۱۹۳۰ ع کال د موسیوهاګن سره شمشېر غار ته ولاړم. په ۱۹۵۱ ع کال له مستر دوپري (د نیویارک د طبعي تاریخ د پېژندني د موسسې کارمند) سره شمشېر غار ته ولاړو. دننه په غار کې یې کیندني وکړلې او د کوشانیانو د دورې آثار یې هلته وموندل[۱۳].

دی زیاتوي :-

شمشېر غار د پنجوایي په شمال شرق کې واقع دئ. شمشېر غار ته نژدې د بدوان په نامه کلی سته، چې د ارغنداو د رود پر ختیځه غاړه پروت دئ. شمشېر غار د ارغنداو له رود څخه تقریباً سل متره جګ واقع دئ. درې مجوفې برخې لري. لومړی جوف ۱۶ متره اوږده لري او پسور یې په ځینو ځایو کې ۱۱ مترو ته رسېږي. د غار خوله ډېره تنګه ده خو د جوف سقف (چت) تقریباً دوه نیم متره لوړ دئ. دوهم جوف ۱۷ متره اوږده او ۱۳ متره پسور لري، جګوالی به یې شپږ متره وي. دریم جوف چې تر ټولو لوی دئ،

---

[۱۳] افغانستان در پرتو تاریخ، شپږمه - اوومه مقاله، ۴۰ مخ.

۳۵ متره اوږده او ۲۵ متره پسور يې دئ. جګوالی يې لس متره دئ. د دوهم او دريم جوف تر منځ يوولس متره دهليز سته. څلورم غار د دريم غار په اندازه دئ، د پنځم غار خوله د څلورم غار د خولې څخه څلور متره جګه ده، د پنځم غار خوله ډېره تنګه ده.

## بکر آباد :-

مقدسي د احسن التقاسيم په ۳۰۵ مخ کي تر پنجوايي وروسته د بکرآباد نوم راوړی دئ. په دې ډول :-

"و بکرواذ مدينه کبيره الجامع فی السوق يشربهم من نهر".

ژباړه : بکرواذ لوی ښار دئ. په بازار کي يې جامع ده. له روده اوبه څښي[۱۴]. په بله نسخه کي بکرواذ او په بله کي تکزاواذ ليکلی دئ. ښايي تګين آباد وي.

## ګرمسير :-

په تاريخ بيهقي ۷۱ مخ کي ليکلي دي :-

"امير محمد غزنوی ګفت بوبکر دبير بسلامت رفت سوی ګرمسير تا از راه کرمان بعراق و مکه رود".

## منديش :-

بيهقي ليکي :-

"امير محمد (پسر سلطان محمود) را بامر سلطان مسعود از قلعهٔ کوهتيز (کوړک؟) تګين آباد (قندهار) به قلعهٔ منديش بردند".

---

[۱۴] ژباړه زما (هوتک) ده.

په حاشیه کې د طبقات ناصري د ۳۲ ۳۳ مخونو په حواله کښلي دي:-

"مندیش نام ولایتی بوده است در غور و این قلعه در آنجا بوده است".

بیهقي په ۷۵ مخ کې زیاتوي :-

"قلعهٔ دیدم سخت بلند و نردبان پایهای بی حد و اندازه. چنانکه بسیار رنج رسیدی تا کسی برتوانی شد ...".

شاعری درین حالت که شاه (محمد غزنوی) را بقعلت مندیش داخل میکردند، گفت :-

ای شاه چي بود این که ترا پیش آمد
دشمنت هم از پیرهن خویش آمد
از محنتها محنت تو بیش آمد
از ملك پدر بهر تو مندیش آمد

## نېش [۱۵] :-

نېش د کندهار او تیري تر منځ تیري ته نژدې پروت دئ. له اداري لحاظه اوس د روزګان په ولایت پورې اړه لري. پخوا چې روزګان ولایت سوی نه و، نېش د کندهار ولایت یوه اولسوالي وه. د نېش شمال او لوېدیځ

---

[۱۵] د نېشه په نامه په کونړ کې هم دوه کلي سته، چې یو نېشه + ګام او بل نېشه + ګروم بولي. ګام او ګروم د (ګرام) ممال شکل دئ، د کلي او سیمې معنا لري، نېشه ګام په اسمار کې د اسمار د عسکري چوني شمال لوېدیځ لور ته لس کیلومتره لیرې او نېشه ګرام د میترلام؟ د کلي شمال ته شپږ کیلومتره لیرې پروت دئ. په کانیګرام، وډه ګرام او بګرام کې دغه ظرف مکاني لاحقه سته.

د ایران د خراسان ولایت په لوېدیځه برخه کې هم د نېشه په نامه یو ښار سته چې اوس یې نیشاپور بولي. (پور) د ظرف مکان شاوندی دئ د (ځای) معنا لري. په پرشاپور، سلطانپور، شمشه پور؟، وډه پور، بهاولپور، جیپور او جودهپور کې هم دغه ظرف مکاني لاحقه سته.

ته دېراوت، ختيځ ته د دهلې اولسوالي، شمال ته يې تيري او جنوب ته يې خاکرېز پروت دئ. نېش د کندهار له ښاره څخه ۹۰ کيلومتره شمال لوېديځ ته پروت دئ. د نېش لوېديځ ته يو غر دئ چي د دغه غره يو ځای د تخت سليمان په نامه يادېږي. نېش د تيري (تيرين) له مرکز څخه تقريباً پنځلس کيلومتره جنوب غرب ته پروت دئ.

د نېش تاريخي نوم به (نيسا) وي. په حدودالعالم (د ۳۷۲ هـ ق تاليف) ۷ الف مخ کي د نيسا موقعيت د ذوس او باورد (ابيورد؟) وروسته ښيي او په ۱۹ ب مخ کي يې نيسا تر باورد دمخه راوړی او وايي د غره په لمن کي يو بانعمته ښار دئ، اوبه پکښې بهېږي، ښه هوا يې ده. جوزجاني تر باورد وروسته طوس راوړي، د نيسا ښار د نيشاپور او طوس (اوسني مشهد) تر منځ واقع و.

په نېش کي د مير بابا زيارت مشهور دئ. وايي دغه ستانه په ۱۱۷۰ هـ ق کال زېږېدلی دئ او د انورزي په وينا په ۹۵ کلني کي مړ دئ (۱۲۶۵ هـ ق)، دغه زيارت پر يوه غونډۍ باندي واقع دئ. بل زيارت د ملا شاه پسند اخوند دئ، چي په قادريه طريقه کي د سيمي د خلکو مرشد و. په ۱۲۷۰ هـ کي په نېش کي زوکړی دئ. په ۱۳۲۹ کي ومړ. دی به پښتو ژبه د زادالراحلين په نامه يوه شعري مجموعه هم لري، چي په ... کال په لاهور کي چاپ سوېده.

## غورک :-

د تاريخ سنده د ۲۷۰ مخ په تعليق کي د زين الاخبار په حواله راغلي دي :-

"بار ديگر سلطان محمود در سال ۴۱۰ باز قصد ملتان کرده و هر چه از ولايت ملتان باقی مانده بود بگرفت و قرامطۀ که آنجا بودند بيشتر ايشان

بگرفت بعضی را بکشت و بعضی را دست برید و نکال کرد و بعضی را بقلعهای باز داشتند همه اندران جای بمردند و اندرین سال داود بن نصر را بگرفت و بغزنین آورد و آنجا بقلعهٔ غورک فرستاد و تا دم مرگ اندران قلعه بود".

## والشتان :-

تاریخ بیهقي په ۷۵ مخ کي لیکلي دي :-

از کوتیزا میر (محمد غزنوی) را براندانند، چون از جنگل آباز (جنگل آباد) برداشتند نزدیک کور (والشت) رسیدند، از چپ راه قلعهٔ مندیش از دور پیدا آمد.

په حاشیه کي یې د حدودالعالم په حواله کښلي دي :-

"والشت که گاهی بالس هم نامیده میشود ناحیهٔ بوده است در حدود زمین داور و رخذ (رخج) و غور و دوبخش داشته علیا و سفلی که مجموعهٔ آن ها را والشتان مینامیدند". د متن بالشتان د حاشیې له تشریحه سره سمون نه خوري. د حاشیې والشتان بالس دئ، چي د پښین ښخه تر سیوی پوري علاقې ته ویله کېدله.

## تگین آباد :-

لوی استاد پوهاند حبیبي صاحب د افغانستان بعد از اسلام په ۱۰۹/۱ مخ کي کښلي دي :-

تگین آباد د ارغنداو او هلمند تر منځ؟ د اوسني کندهار ښار لوېدیز ته یو ښار و، چي په څلورم قرن کي یې په فارسي او عربي تاریخونو کي ډېر نوم یاد سوی دئ.

مسعود سعد سلمان (۴۳۸ - ۵۱۵ ه ق) د ملک ارسلان په ستاینه کي

ويلي دي :-

چو ابر نصرت بارید چرخ فصل خزان

بهار گشت زملك تو در تگـــین آباد

تگین په ترکي کي د مريي معنا لري، پهلوان ته هم وايي.

سدیدالدین عوفي (د ٦٣٠ هـ ق کال په شاوخوا کـي مړ) د جوامع الحکایات و لوامع الروایات په ٢٢ مخ کـي (د تگین آباد یادونـه لـري) ده لیکلي دي :-

خواجه بزرگ محمد بن عبدالحمید وویـل چـي د سلطان محمود غزنوي په زمانه کي له تگین آباد څخه کوم حاجب د دارالخلافت خوا ته راتئ خسروآباد ته چي ورسېد ...

(د خسرو آباد ذکر د تگین آباد د موقعیت په روښانولو کـي مرسته کوي). د کندهار په ارغنداو کي يو کلی اوس هم د خسرو په نامه يادېږي.

د غزني او تگین آباد تر منځ د لسو ورځو لار وه. د تاریخ بیهقي په ٥٥٨ مخ کي لیکلي دي :-

امیر مسعود رضي الله تعالی عنه از غزنین برفت روز شنبه، سه روز مانده از شوال، و هفتم ذوالقعده به تگین آباد رسید[١٦]. تگین آباد کېدای سي زنگاوات وي؟

د نزهة القلوب په ١٧٥ مخ کي کښلي دي :-

تگین آباد په دریم اقلیم کي دئ. طول البلد يې له جزائر خالدات څخه فانه = ١٣٦، عرض البلد يې له خط استوا څخه لج = ٣٣ دئ. میانه ښار دئ. هوا يې گرمی ته مايله ده. اوبه يې له شاوخوا غرونو څخه راځي. مېوه يې ډېره ده.

---

[١٦] علامه مرحوم لیکلي دي چي د تگین آباد په باب د حبیبي صاحب مقاله په آریانا مجله ج ٥ شماره ٦ کي خپره سيوېده، (هوتک).

په تاريخ بيهقي کې وايي :-

"چون امير مسعود در سال ۴۲۱ بعد از فوت پدر عزيمت بغداد کرد از سپاهان به ری از ری به نيشابور و از نيشابور بهرات رسيد باز امير علي بهمدستاني و صلاح ديگر سترگان امير محمد (غزنوی) را در قلعهٔ کوهيتز تکينا باد موقوف نمود". په حاشيه کې يې ورته کښلي دي :-

"تگين آباد شهری بوده است در محل قندهار امروزی. محمد بقصد جنگ با مسعود از غزنه بهرات می آمد و درين محل دچار شورش لشکر شد".

او زياتوي چې کوهيتز په نسخه کې هر ځای د (کوهشير) په شکل ليکل سوی دئ او ښاغلی بهار د تاريخ سيستان په حاشيو کې (کوهژ) ګڼلی دئ[۱۷].

اصطخري په ۳۴۰ هـ ق کال د خپل (المسالک الممالک) کتاب په ۲۵۰ مخ کې ليکي :-

کومه لار چې له بسته ښخه غزني ته تللې ده، د هغه ښارونه تر تګين آباد پورې دا دي :-

لومړی مزل : فيروزقند (فيروزمند)

دوهم مزل : رباط ميغون يا ميعون يا منعون يا معون يا منعور يا مغور.

دريم مزل : رباط کبير يا کير و کر

څلرم مزل : د رخج ښار چې (پنجوايي) نومي

پنځم مزل : تګين آباد

د سرزمين های خلافت شرقی په ۳۷۱ مخ کې ليکلي دي :-

له پنجوايي چې کومه لار ختيځ لور ته سيبی ته ځي د هغه لومړی مزل بکرآباد دئ، چې د اصطخري او ابن حوقل په آثارو کې تګين آباد

---

[۱۷] کوهيتز ښايي کيتول وي.

کښل سوی دئ، ښایي د کاتب تېروتنه وي. د لسم عیسوي قرن جغرافیه لیکونکي پنجوایي او تگین آباد (یو فرسخ له پنجوایي لیري د غزني پر لار) د الرخج له عمده ښارونو څخه بولي. تگین آباد د خپلي پخې کلا له امله د غزنویانو په تاریخ کي زیات اهمیت لري. اندرسون وایي تگین آباد د قندهار د ښار پر ځای ودان و.

## شهاب الدین غوري د تگین آباد والي :-

د سلطان غیاث الدین غوري (۵۵۸ - ۵۹۹ هـ ق) د پاچهی په لومړیو کلونو کي شهاب الدین له خپل مشر ورور څخه خوابدی سو، سیستان ته ولاړ او هلته یې ژمی د ملک شمس الدین سیستاني سره تېر کړ. غیاث الدین څوک ور ولېږه، پخلا یې کړ او د تگین آباد ولایت یې ده ته ورکړ[۱۸]. په دغو وختو کي غز (د لومړي په پېښ) قبیلې له ختانیانو څخه ماتې خوړلې وه او د غزني لور ته یې مخ رانیولی و او غزني یې له خسرو ملک شاه غزنوي

---

[۱۸] منهاج سراج په طبقات ناصري لومړي ټوک ۴۶۵ مخ کي لیکلي دي :- و این تگین آباد موضعی است که سبب بر افتادن آل محمود سبکتگین بمنازعت و ضبط آن شهر بوده است، بدست سلاطین غور رحمهم الله. و سلطان غازی علاوالدین رباعی گفت و نزد خسرو ملک بن بهرام شاه فرستاد :-

اول پدرت نهاد کـــین را بنیاد
تا خلق جهان جمله به بیداد افتاد
هان تاندهی زبهر یك تکـنـاباد
سر تا سر ملك آل محـــمود بباد

(د طبقات ناصري د حوالو د مخونو شمېر له کابل چاپ - ۱۳۴۲ ش، سره سر نه خوري. پورتنی مطلب د کابل چاپ په ۳۹۶/۱ مخ کي راغلی دئ. زما داسي خیال دئ، چي د علامه رشاد مرحوم حوالې به د طبقات ناصري د کویټې چاپ ته متوجه وي. دا چاپ د علامه حبیبي په خپل خط په سنگي چاپخانه کي چاپ سوی دئ، م. هوتک).

ښخه واخیست. شهاب الدین به له تګین آباد ښخه هر کال د غزني له غزانو سره جنګونه کول، ښو په ۵۶۹ هـ ق کال سلطان غیاث الدین غزانو ته ماتې ورکړله او غزني یې ښني ونیو او شهاب الدین ته یې وسپاره.

د تاریخ فرشته په ۵۶ مخ کې دغه قصه لیکلې ده :-

سلطان غیاث الدین چې پاچا سو، شهاب الدین تـه یـې تګین آباد ورکړ. ده به هر کال پر غزنـي بریـد کـاوه. پـه دغـه وخـت کـې غزنـي د آل سبکتګین پـه لاس کـې و. پـه ۵۶۷ هـ ق کـې سلطان غیـاث الـدین غزني د خسرو ملک له امیرانو ښخه ونیو سلطان معزالدین (شهاب الدین) ته یې ورکړ. په ۵۷۲ هـ ق کـال شهاب الـدین د ورور پـه حکـم پـر ملتـان بریـد وکړ.

په ۵۷۵ هـ ق کال سلطان شهاب الدین پېښور ونیـو بـل کـال لاهـور تـه ولاړ. خسرو ملک غزنوي چې د هندوستان د راجاګانو په تېره بیا د ډهلـي د راجه له لاسه د افغانانو د مخالفت په اغېزه خپلواکي نه درلوده، کلابند سو. ملک شاه خپل زوی د یرغمل په توګه او یو پیل یې د سوغات په توګه شهاب الدین ته ولېږه. روغه وسوه. خو د افغانانو د مخالفت ذکر په طبقات ناصري کې نسته.




په تاریخ سیستان کې لیکلي دي :-

پـه ۶۸۳ هـ ق کـال تګـین آبـاد او د هلمنـد د رود غـاړې د ملـک نصیرالدین پاچا تر لاس لاندې وې او په ۶۹۵ هـ ق کال لا تګین آباد ودان و[۱۹]

**درغش :-**

په تقویم البلدان ۳۴۲ مخ کې د درغش (موقعیت داسې ښوول سوی

---

[۱۹] د پنجاه مقاله د ۴۳۴ مخ په حواله.

دئ) :-[۲۰]

## سروان کلا :-

المغرب ۳۸۹ مخ د خراسان
جوزجاني د حدودالعالم من المشرق الی
د ساروان خلک یې شوخ،
په ښارونو کې پنځوسم ښار (ساروان) نوملی دئ.
جنګي او د عصبيت تښتنان بللي دي[۲۱].
په تقويم البلدان ۳۴۴ مخ کې وايي :-
سروان من آخر اقليم ثالث.
طول - س ل = ۹۰، عرض - لح که = ٦٣
زروان (فيروز قند
پوهاند حبيبي ګمان کوي د جيهاني د شمال العالم
د ابن اثير په الکامل کې
ته نژدې) په فتوح البلدان کې رزان سوی دئ.
په اطلس قريه های افغانستان
زران راغلی دئ او ساروان کلا ځني مراد ده.
کې د باغران مربوط د زروان بغنی کلی ضبط دئ.
په ګرديزي په زين الاخبار ۲۵۰ مخ کې سرابن کلمه راوړې ده.
لمنليک کې لوی استاد علامه حبيبي زياته کړېده :-
په سنسکريت کې يې sarvan بولي او د البيروني په کتاب الهند کې
شرابن ليکلی دئ.
سرابن او سراون اوس ساون بولي چې د هندوانو د کال څلورمه
مياشت ده خو د زين الاخبار په ۲۵۱ کې بت ساون هم راغلی دئ.

---

[۲۰] دلته د طول البلد او عرض البلد قيمتونه له پخواني دود سره سم په ابجدي تورو راوړل سوي دي. خو د ياداشت د مغشوش والي له امله ونه سو لوستلای ځکه يې تر راوړلو تېر سوم، (هوتک).

[۲۱] د حدودالعالم په تعليقاتو ۵۰ مخ کې بل ساروان د اصفهان په شاوخوا کې ښيي چې د کارون رود سرچينې هلته دي.

**درمشان (دروشان = دروښان) :-**

البيروني په كتاب الصيدنه في الطب ۲۸ مخ كي ليكلي دي :-

د زرو يو ډول درامشي دي (د رامش) د رخج په شاوخوا كي دئ. په حاشيه كي ورته ليكلي دي :-

درامشي درمشان ته منسوب دئ. درمشان دوه دي يو په بست او بل په جوزجان كي (حدودالعالم ۹٦ مخ) او د الصيدنې له درمشان څخه مراد د بست درمشان دئ.

# د الرُخُج نوميالي

**فرج رُخُجي :-**

د عوفي په جوامع الحكايات ولوامع الروايات ۳۴۹/۲ مخ كي راغلي دي :-

يوه ورځ مامون الرشيد عباسي پر فرج رخجي باندي په قهر سو او بندي يې كړ. دى وايي ما ټولو دوستانو او د دربار مقربينو ته سړي ولېږل چي زما شفاعت وكړي، خو هيڅوك زما مرستي ته تيار نه سول. زه چي د دوستانو او هوا خواهانو له مرستي نامېنده سوم، د خداى مرستي ته مي رجوع وكړله. په هغه شپه زما جرمي سره ورنغلې، ډېر پرېشانه وم، د سهار خوا ته پرېشانى يووړم. يو سړى مي په خوب كي وليد، چي ما ته يې ويل :-

"د خداى له فضله نامېندي نه ده په كار". زه راويښ سوم زما سترګي د دروازې لور ته كږې سوې. كه ګورم زما يو ملګرى راځغلي په كوټه راننوت او زېرى يې راباندي وكړ چي عبدالله او مسرور خادم ستا شفاعت وكړ او ته به خورا ژر له بنده ايله سې. د ده خبري لا نه وې خلاصي سوي چي د مامون

د دربار سراوس[۲۲] راغلل، زه یې جامه خانې ته بوتلم، خلاتونه یې راواغوستل او د فارس بیرغ یې راوسپاره، پنځوس زره درهمه یې د سفر خرڅ له پاره راکړل.

## ابوالحسن رخجي :-

ابوالحسن علي رخجي د حسین زوی د "احاسن المحاسن" مؤلف دئ، چي په ۱۳۰۱ ع کال چاپ سوی دئ[۲۳].

## محمد رخجي :-

د ایضاح المکنون په ... مخ کي د "الارشاد الی احکام الجرار" مؤلف محمد رخجي الشیباني الحنبلي ښوولی سوی دئ. د دغه کتاب یوه نسخه په دارالکتب شامیه کي سته.

---

[۲۲] سراوس : د دربار محافظ عسکر (م. هـ).

[۲۳] معجم المطبوعات ... مخ.

## اراکوزیا :-

سترابون د اراتوسیتین په حواله لیکي :-

اراخوتي او (مساجت) په باختر کي تر اکسوسه میشته وو. ساکان او سغدیان د هغو په مقابل کي پراته دي.

نجیب الله توروایانا لیکلي دي :-

له دې څخه معلومېږي چي اراخوتیان هم سیستاني و، چي نوري قبیلې یې سیستان ته راغلې دوی د ارغنداو سیمه ونیوله. پسله دغه څخه د ارغنداو رود اراخوتوس او د کندهار سیمه اراکوزي سوې ده چي عربانو الرخج او بلادالرخج وبلله او دا نومونه تر سترابون دمخه پر دغو سیمو اینبوول سوي وه.

سترابون لیکي :-

له اسکندریه آري (هرات؟) څخه تر تاپروفتازیا؟ پوري ۱۶۰۰ ستاده[1] او له هغه ځایه تر اراخوتي پوري ۴۱۲۰، له اراخوتیا څخه تر اورتوسپانا پوري ۲۰۰۰ ستاده له ارتوسپانا څخه د هندوستان تر سرحده پوري ۱۰۰۰ ستاده فاصله ده. د اراکوزیا په باب لیکي :-

دا ولایت د توروس په جنوب کي واقع دئ او د اندس تر رود پوري غزېدلی دئ[2].

د اراخوت په باب د (Kushanskaya Kyusarckar bakmpur Baktria) په ۹۷ مخ کي لیکلي دي :-

په ارتوسیانه (کابل) کي د باختر لویه لار پر درو برخو وېشله کېږي :-

هندوستان ته     باختر ته     کندهار ته

بیلیو وایي بطلیموس آریانا پر اوو ولایتونو وېشلې ده. شپږم ولایت یې

---

[1] ستاد د فاصلې واحد دئ، (م. ه).

[2] سترابون و آریانا ۷۵ مخ.

اراکوزیا ده، چې د غزني او د سلیمان د غرو سلسله تر اباسینه پورې پکښې شامله ده[۳]. احمدعلي کهزاد په دغه ځای کې کندهار د درنجیانا (سیستان) جزء ښوولی دئ(؟). د سترابون د جغرافیې په نهمه نقشه کې د اراکوزیا نوم راغلی دئ. غرب ته یې درنګیانه (سیستان) او شرق ته یې د سنده رود دئ. شمال ته یې اورتسپانه او جنوب ته یې Chaarene لیکلی دئ او د کندهار په ناوه کې ...[۴].

د آینهٔ عظمت هند په ۷۲ مخ کې د پلاتني له سفرنامې څخه رانقل سوي دي :-

مګر ډېر سیاحان د اټک رود د هندوستان د لویدیز ویش په توګه نه مني او څلور نورې خپلواکې پاچهۍ هم د هندوستان بولي.

(۱) ګدروسي :- په حاشیه کې کښلي دي :-

ګدروسي یا ګدروشیا زموږ په وختو کې مکران بلل کېږي. سکندر چې له هندوستانه ستنېدی، له دغې لارې ووتی.

(۲) اراکوتي :- په حاشیه کې کښلي دي :-

اراکوتي یا اراکوتیا له سلیمان غره څخه پیل کېږي، په جنوب کې ګدروسیا ته رسېږي، پایتخت یې اراکوتس و، چې د قندهار خوا ته واقع و. قندهار د ګندهار کلمې اوسنی شکل دئ.

کرنیل رایسنس وایي :-

اراکوشیا = برکه وتی = د سنسکریت سرسوتی = په عربو کې الرخج[۵]

(۳) اریایي - په حاشیه کې ورته کښلي دي :-

د هرات او مشهد تر منځ علاقه وه چې د اریانا یوه حصه وه. د بیستون

---

[۳] آریانا د احمدعلي کهزاد، ۷۳ مخ، او افغانستان در پرتو تاریخ ... مخ.

[۴] دا جمله همداسې نیمګړې پاته ده، (م. ه).

[۵] د بیستون د کتیبې هردوت د عربو الرخج دئ.

په کتیبه کې د فارس سیمه ایریا بلل سوې ده او بابلي حصه یې اري ردان بلل سوېده.

(۴) پرویمي سادي.

د Die welt Der Antike په ... مخ کې د بطلیموس نقشه راغلې ده او په هغه کې یې د اراکوزیا غرب drang (سیستان)، جنوب غرب ته یې Gedrosia (بلوچستان)، شرق یې اندس (اباسین) ښوول سوی دئ. د ملیندا پنهو د انګرېزي ترجمې د مقدمې په ۲۵ (XXV) مخ کې لیکلي دي:-

دا منل کېدای سي چې د اراکوزیا ځیني شمالي او شرقي برخې د میناندر په پاچهي (۱۴۰ – ۱۱۰ ق م) کې داخلي وې[٦]. د جیوګرافیکل ډیکشنري په ۷۰ مخ کې د Gomati رود د اراکوزیا له رودونو څخه ښوول سوی دئ.

## په اراکوزیا کې د دمیتریوس په نامه ښار :-

په دوهمه قبل المیلاد سدۍ کې ایوتیدم د باختر یوناني الاصله پاچا و. ده، چې اراکوزیا ونیوله، خپل زوی دمیتریوس یې د اراکوزیا امیر وټاکه.

---

[٦] علامه رشاد رحمة الله علیه د اراکوزیا په باب د اېران درعهد ساسانیان ۲۷ – ۲۸ مخونو او دغه راز د دغه کتاب د ۱۷۹ مخ او د کابل مجلې د ۱۳۵۹ ش کال د ۷ – ۸ ګڼې د ۳۹ مخ یادونه کوي. د دغو حوالو له پاره یې ځایونه تش پرې ایښي دي. همدا راز د کابل مجلې د لومړي کال په ۸ ګڼه کې د اراکوزیا په باب یو مضمون ته، چې غلام محمد غبار لیکلی دئ، اشاره کوي او وایي چې دا مضمون د کندهار مجلې په لومړۍ ګڼه کې پښتو سوی دئ. همدا شان په اوستا کې د اراکوزیا بیان سرلیک ته یې تش ځای پرې ایښی دئ او پر څنګ یې د اروانباد عبدالقدوس نجیب هغه کتاب ته اشاره کړېده، چې اراکوزیا نومېږي. زما (هوتک) په یاد دي چې دا کتاب د څلوېښتمو هجري شمسي کلونو په جریان کې د کندهار مجلې په ډېروګڼو کې پرله پسې چاپ سوی دئ، (م. هوتک).

او د ایوکراتید سره جنګونو ته راودانګي. خو د میناندر جنرال په رانګ هم د باختر پاچهي د دمیتریوس نصیب نه سوه. دمیتریوس، ورور او زامن چې يې ومړله د شمالي هندوستان د نیولو ځایونو پاچهي جنرال میناندر ته پاته سوه. ده د دمیتریوس یا د هغه د ورور اپولودوت له لور (اکاتیوکلیا) سره واده وکړ. د پاچهی پایتخت يې (سګالا) و او (د واکمنی) ختیځ برید يې تر متهرا رسېده. د ده په وختو کي د مګده پاچا (پوشیامیترا) و. میناندر په یوه جنګ کي سکیتا Sakita ځني ونیوله.

په هندوستان کي چي یوناني باختري پاچهان تېر سوي دي، په دوی تولو کي میناندر ډېر مشهور دئ. میناندر په هندوستان کي د ملیندا په نامه شهرد درلود. (دی) د بودایي دین پیرو سو[8]. د بودایي مبلغ ناګاسینا سره د ده پوښتني او جوابونه د یوې مجموعې په بڼه اوس هم سته، چي دا مجموعه ملینداپنهو نومېږي. د ده پر سکو (دهرمه چګر) د ده د بودائیت لویه نخښه ده. د ده د پاچهی رعیت زیاتره بودایان وو. وایي ملیندا ته د بودایي ملایانو له خوا د (ارهت) لقب ورکړه سوی و چي د لوی متبحر بودایي عالم مفهوم لري. میناندر په یوه جنګ کي چي له سره پېښ سو، وواژه سو. دی په نظامي نبوغ، عدالت او ښې اداري مشهور و.

میناندر له ۱۴۰ ق م څخه تر ۱۱۰ ق م پوري د شمالي هندوستان پاچا و. دی چي ومړ، مړی يې وسوځل سو او د بودا او آشوکا د ایرو په شان يې ایرې پر ستوپو ووېشلي سوې[9].

---

[8] د افغانستان پخوانی تاریخ، ۵۴/۲ مخ.

[9] ما (هوتک) ته د پنجوایي اولسوالی د دیمراسي په نامه کلی د دمیتریوس له نامه سره بې ارتباطه نه ښکاري.

## منډي ګک[10] :-

منډي ګک د کندهار ښار د شمال لوېديځ په ۳۰ کيلومتري کې واقع دئ. د ۱۹۵۱ او ۱۹۵۸ کلونو تر منځ دلته ... وه فرانسوي او ماندينې يې حفريات وکړل او په دغه ځای کې تر ... زر کاله وړاندې د انسانانو د ... وند نښانې وموندل سوې. په منډي ګک کې ... موندل سوي شواهد پر دې دلالت کوي چې دا ځای دې د پښتنو اصلي مسکن وي.

## سرسوتي (ارغنداو) :-

احمدعلي کهزاد د آريانا په ۲۶ مخ کې کښلي دي :-

سراسوتي د اوبو لرونکي معنا لري. ځيني کسان پر سنده (اباسين) ندي د سراسوتي ګومان کوي. مګر په ويدونو کې اباسين پخپل نامه سنده څوواره راغلی دئ چې د (س، ه) د ابدال په اغېزه هنده سوی دئ.

واله دوپوسن په ... کې ليکلي دي :-

د ريګويدا ذکر کړې سراسوتي د اراکوزيا رود دئ. ځيني ويد پژندونکي په تېره بيا هيلبرانت وايي :-

د ريګويدا سروسوتي > هراويتي بيله ارغنداو روده څخه بل رود پيداى نه سي[11]. په اوستا کې دغه (رود) هراويتي ياد سوی دئ.

## رواني :-

د کندهار د احمدشاهي ښار په جنوب او د زاړه ښار په ختيز کې يو ... لی د رواني په نامه يادېږي.

---

[10] علامه مرحوم د منډي ګک په باب د افغانستان در پرتو تاريخ څلورمي او پنځمي مقالې ته حواله ورکړېده، او ځای يې تش ورته پرې ايښی دئ. (م. هوتک).

[11] هندو اروپايي و هندو ايران، د واله دوپوسن تاليف، ۲۱۰ مخ.

د تواریخ حافظ رحمت خان د تعلیقاتو په ۵۹۱ مخ کې کښلي دي :-

رواني د یوې پښتنې قبیلې نوم دي. د دغې قبیلې څو کوره له کندهاره څخه له یوسفزیو سره پېښور ته راغلي دي او تورو شهامت پورته نژدې په مایارو کې مېشته دي. له کمالزیو سره په ونډه شریک دي. مګر ډېر رواني د جلاله په سالم کې له بابي زیو سره پراته دي او د یوې قبیلې حیثیت لري. پر دغو خېلونو وېشلي دي :- خواجه دادخېل، زید خېل، تورزي، ګوت، حسن زي، باتورخېل، حسن خېل او اتمانزي.

**پښین** Pşin :-

د جغرافیکل دکشنري په ۱۵۰ مخ کې لیکلي دي :-

د پښین نوم د Av. Kalp په ۵٦ - ۵۹ شلوکونو کې Pašańa راغلی دئ او د خواجه امران غرېې د Pašańa Parvata په نامه یاد کړی دئ.

ابن حوقل په څلورم قرن کې په صورة الارض کې اوسنی پښین د باشین په ډول لیکلی دئ، دی وايي :-

الرخج د داور (زینداور) او باشین (پښین) تر منځ پروت دئ[۱۲].

---

[۱۲] په حدودالعالم او د یاقوت حموي په معجم البلدان کې د غرستان (غرجستان) مرکزي ښار بشین لیکلی دئ. د ناصر خسرو قبادیاني (۳۹۴ - ۴۸۱ هـ ق) په یوه بیت کې راغلي دي :-

اِستاده بُدی ببامیان شیری
بنشسته بغز دربشین شاری

(وګ : شل مقالې، ۴ ټوک، ۷٦ مخ)

له شار کلمې څخه ښايي د روسي ژبې شار مراد وي چې د پاچا معنا لري.

موسٰی خورني ارمني پخپله جغرافیا کې دغه نوم بژین راوړی دئ او لیکلي یې دي چې غرجستان دوه مهم ښارونه درلودل یو یې آبشین نومېده او بل یې سورمین. آبشین - بشین یا باشین د مرغاب پر ختیځه غاړه پاندې واقع دئ. سورمین د بشین په جنوب کې له بشین څخه څلور فرسخه لیرې پروت و. له کروخه څخه یې هم څلور فرسخه واټن درلود.

## زنبیل که رتبیل :-

محمد بن وصیف سکزي چي د یعقوب لیث صفاري په ستاینه کي کومه قصیده ویلې ده، د هغې په یوه بیت کي راغلي دي :-

به لتام آمد و زنبیل لتی خورد به لنگ

لتره شد باره لشکر و هباگشت کنام[۱۳]



## رتبېل او حجاج :-

د تاریخ گزیده په ۲۷۶ مخ کي کښلي دي :-

په ۸۲ هـ ق کال عبدالرحمن بن اشعث د عبدالرحمن بن عباس بن ربیعه بن حارس بن عبدالمطلب په ملګري له حجاج سره په بصره کي وجنګېدل او په تېښته کوفې ته ولاړل. دوهم جنګ یې په جماجم نومي ځای کي وسو. دا جنګ د ۸۳ هـ ق کال د لومړۍ خور له لومړۍ ورځي څخه د وروستۍ خور تر لسمي پوري سل ورځي اوږد سو. حجاج په چل ول د عبدالرحمن د پوځ مشران د ځان کړل، عبدالرحمن ماتې وکړله. بیا خلک پر راټول سول په مسکن نومي ځای کي ۱۵ ورځي جنګ وسو. عبدالرحمن بیا ماته وکړله د کرمان له لاري سیستان ته ولاړ. هلته ګیر سو. رتبېل د کابل پاچا خلاص کړ. حجاج؟[۱۴] رتبېل تېر یوست. دی (عبدالرحمن بن اشعث) او خپلوان یې ووژل او ککرۍ یې حجاج ته واستولې.

## پر رتبېل باندي د یعقوب لیث صفاري حمله :-

عوفي د جامع الحکایات په ۱/۱۵۰ مخ کي لیکلي دي :-

---

[۱۳] افغانستان، ۳۱۷ مخ.

[۱۴] په دغه وخت کي یزید بن مهلب د خراسان امیر و.

صالح بن نصر چي د يعقوب ليث له بېرې رخج ته وتښتېد او رتبېل ته يې پناه يووړله، رتبېل يې د يعقوب ليث جنگ ته ولمساوه، هغه هم لښکري راټولي کړلې او پر يعقوب باندي د بريد په نيامت مخ پر سيستان رهي سو. يعقوب ليث له زرو سپرو سره د ده د مخنيوي له پاره ځان بست تـه ورساوه. خلکو به د ده پر لښکر خندل او[15].

## د افغانستان پاچهان تر اسلام دمخه :-

- سکندر
- يونانو باختري کورنی. ايوکراتيدس – هليوکس
- لومړي کوشانيان. کوجولا کدفيزيس – يما کدفيزيس
- دوهم کوشانيان. لومړی کنيشکا، هوويشکا، واسرديوا. کوچني کوشانيان (د کابل)
- يفتليان. ايتالي توپه په ۴۲۵ ع کال په تخار کي پاچا سو
- ترکشاهان (د کابل) برهاتگين، کنک، لک تورمان
- هندوشاهان (برهمن شاهان) د کابل، لليه شه، سامند (سمند)، کملو، بهيم، جيپال، انندپال، تروجنپال.

## گندهارا[16] :-

د اټک د رود غربي څنډه پخوا گندهارا بلله کېده او په لرغونو آثارو

---

[15] متن پر همدې ځای نيمگړی پاته دئ (هوتک).

[16] گندهارا د دې کتاب تر بحث وتلې موضوع ده او دا عنوان علامه رشاد مرحوم په هغه فهرست کي نه دئ راوړی، چي د دغه کتاب له پاره يې جوړ کړی دئ. خو يادابنتونه يې بيا د کتاب په پاڼو کي خوندي کړي دي. څرنگه چي گندهارا د ځينو ساکي شاهانو پـه وخـت کـي د-اراکوزيا تر اداري لاندي وه، ځکه يې نو دلته راوړل بې ارتباطه راته ښکاره نه سول (هوتک).

کې دا نوم ډېر لیدل کېږي. یونانیانو دا نوم گنداریا Gandaria ضبط کړی دی. گندهارا سیمه له یوې خوا له النگو سیند څخه تر اټک رود پورې او له بلې خوا له سپین غره څخه د کوهاټ تر غرو پورې پرته وه. یا په بل عبارت پېښور، مردان، کوهاټ، مهمند، باجوړ، سوات او بونیر پکښې شامل وو. کله تکسیلا هم پکښې لیدله کېږي. دا صوبه که به آزاده که به محکومه وه، د یوې مستقلې صوبې حیثیت یې درلود او په بېلو بېلو وختو کې چارسده، پېښور، هند او نور، چې هغه وخت په دغو نومونو نه بلل کېدل، د دې سیمې د دارالسلطنه په حیث مشهور وو.

اېرانیانو چې پر یونان حمله کوله د دوی په لښکر کې گندهاري هم څکه شامل وو، چې په دغه وخت کې گندهارا د اېران د پاچهۍ تر حمایت لاندې وه. هیروډوت په دغه جنگ کې د گندهاریو خاص ذکر کړی دئ[۱۷].

په پخوانیو متونو کې GANDHARA او KASMIR وروستي توري په حرکت ضبط دي اوس دغه وروستی حرکت غورځېدلی دئ. د حرکت د دې اسقاط یا اسکان نور مثالونه هم سته، لکه :-

Beas = VIPAsa (سیند)

په پالي عباراتو کې KASHMIRA او گندهاراه د -Gandhara vishaya په نامه گډ بنوول سوي دي. رای چودهري د ۴۰۶ جاتکا په حواله لیکي چې کشمیر د گندهار په پاچاهي پورې متعلق نه و، د جاتکا ځیني برخې دا ښیي، چې کشمیر او گندهار دوې بېلې سیمې دي خو د یوه پاچا تابعیت یې درلود. د گندهارا یا گندهاروا Gandharava سیمه د اباسین دواړو غاړو ته شامله وه. د پوري خوا اندوس اساسي او رسمي ښار پشکلاوتي UTPALAVATI و، چې اوس پړانگ چارسده بلله کېږي او له

---

(۱۷) یوسفزی افغان، ۸۱ مخ.

پېښوره ۱۷ میله لیرې شمال شرقي خوا ته د سوات پر سین باندې واقع ده.

ټکسیلا چې په پنجاب کې واقع ده، یو مرکزي ښار و[۱۸]. د اباسین د دې خوا سیمې د کندهارا ...[۱۹] هیون څانګ د سلیمان د غرو او د اندوس تر منځ ګندهارا د پاچهۍ پایتخت پشاور ښوولی دئ. د اشوکا په وختو کې د اباسین د دواړو خواوو ګندهارا د ده په پاچهي کې مستقیماً داخله او تر شهبازګړۍ او مانسرې لوړې شمالي برخې په نیم آزاد ډول د آشوکا تر لاس لاندې وې[۲۰].

د ګندهارا د ښار د ودانولو کیسه شري والمیک جي پخپل راماین کې داسې راوړې ده[۲۱] :-

ترجمه :- پرون د ګندهربون پر سنتهولو باندې د کیکیې غښتلې زوی بهرت په کندهار دېش کې دوه ښارونه ودان کړل. په تکش شلا کې یې (تکش) او په پشکلاوت کې یې (پشکل) ... د ګندهربون دېش د سنده پر غاړه واقع و.

د هیون څانګ په سفرنامه کې پشکلاوتي ښار د پېښور په شمال کې تر یوه رود په ها خوا ښوول سوی دئ[۲۲]. د کننګهم په انشنټ جیوګرافي آف انډیا ۴۱ مخ کې لیکلي دي :-

د ګندهارا پخوانی پایتخت پشکلاواتي Pushkalavati و. وایي دا ښار

---

[۱۸] د اوسنی ټکسیلا نوم په پالي کې ضبط دئ او په سنسکریت کې به وي. وګ : ASOKA AND HIS INSCRIPTIONS - ۹۳ مخ.

[۱۹] دا برخه لوېدلې ده (م. ه).

[۲۰] وګ : پورتنی اثر، ۹۳ مخ.

[۲۱] علامه رشاد رحمة الله علیه د راماین د دغې برخې د یوناګري ثبت راوړی دئ، چې زه یې د ټایپي مشکلاتو له اسیته نه سم راوړلای. (هوتک).

[۲۲] د هیون څانګ ژوند، ۶۴ مخ.

پوشکر Pushkara ودان کړی و. پوشکر د بهیرت زوی د رام ... [۲۳] جوړ کړی دئ [۲۴]. د دې ښار لرغونتوب منلی دئ. اسکندر چې حمله کوله دغه د گندهارا پایتخت و او یوناني مورخینو Pukkelaot لیکلی دئ. دی دغه راز زیاتوي چې د گندهار د ناوې نوم د سکندر مقدوني د زمانې مورخینو نه دئ راوړي او سترابون د گندهارا لیتیس په نامه یاد کړی دئ ... چینایي زایرینو دغه ناوه د Kiento-lo په نامه یاده کړې ده او د اندوس په لوېدیز کې یې ښوولې ده او پایتخت یې پولوشاپولو (د نورو Purosapura) لیکلی دئ. دوی د دغه دارالحکومت فاصله له اندوس څخه د دریو یا څلورو ورځو مزل ښوولی دئ.

د پشکلاوتي بالاحصار اوس هم د چارسدې جنوب ته یو میل لیري واقع دئ. بالاحصاریې بولي. د سکندر د حملې په وخت کې یوناني مورخینو د گندهارا د برنی برخې پایتخت ضبط کړی دئ چې وروستیو محققینو چارسده بللې ده [۲۵]. د مهابهارته د ۱۲ ټوک په ۲۰۷ مخ کې د سکندر د حملې په وخت کې KAMBOJA – YAUNA [۲۶] او گندهارا د اتراپاته UTTARAPATHA په واقعي خلکو کې شمېرلي دي.

د صولت افغاني په ۳۵ مخ کې لیکلي دي :-

په دگهوبېس نومي کتاب کې چې په لرغونې شاستري ژبه لیکلی دئ، راج بهرت (د رام چندر مېرېزی وروړ) او د ده د مور کیکنی د اباسین پر غاړه یو ښار پخپل نامه ودان کړ. د یورپ خلک دا مني چې د راماین کتاب

---

[۲۳] دلته یو توری ما ونه سو لوستلای، (م. ه).

[۲۴] وگ : ویشنوپران Visnopurana د ویلسن ژباړه د Hall ایډیټ څلورم باب او څلورم چند.

[۲۵] یوسفزی افغان، ۲۱۳ مخ.

[۲۶] زما په خیال اوسنی کمبات چې په دیر کې واقع دئ یا کامدېش - کاتوز - کامه.

بالميک شاعر د رام چندر په زمانه يا لږ وروسته ليکلی دئ او رامايڼ تر عيسی عليه السلام ۱۲۰۰ کاله پخوا ليکل سوی دئ. دغه ډول د اټک په غربي غرو کې د يوې زړې کلا کنډوالې سته، چې د پانډوانو د وختو ګڼله کېږي. په ميان والا کې د سيکسر په غره کې کنډوالې د پانډوګانو پايتخت بلل کېږي. د پانډو او کرول نکل تر رام چندر ۴۰۰ کاله وروسته دئ. په مهابهارت کې ليکلي دي چې د دريو دهن کرول مور ګندهارۍ نومېدله او دا د کندهار د پاچا لور وه.

د کورو او پانډوانو په جنګ کې د ګندهارا د پوځ مشر شکوني او د هغه زوی چې په دغه جنګ کې ګډون درلود، (الوک) نومېدی، چې په پارسي ترجمه کې په غلطه سره (الوب) ضبط سوی دئ[۲۷].

د آشوک په کتيبو کې چې پايتخت يې ټکسيلا وه چې هلته يو شهزاده اوسېد ...[۲۸].

په ويدا کې ليکلي دي چې د کبها رود جنوب ته د سنده رود په دهانه کې يوه لويه قبيله اوسېدله چې ګندهاري نومېدله. په آتهارا ويدا کې بيا راوړي دي چې ګندهاريان (موجاوانت)، (آنګا) او (ماګاده) قومونو سره متحد وو. ماګادهانو او آنګاهانو د مقبوضاتو ختيز سرحدونه او ګندهاريو او موجاوانتانو يې شمال لوېديز سرحدونه جوړول.

مجاوت (مېچن خېل؟)، ماګده (منګل؟) آنګا (د انګو په نامه سړي سته).

---

[۲۷] وګ : د مهابهارت د کرن پرب فصل. فارسي ژباړه، ۹۱ مخ. د دغه کتاب په يوولسم مخ کې ليکلي دي : کرن هغه ځوک و، چې د دريو دهن له پاره د کامبوج امېښت، کيکی او کهتوت کچ اېل کړل. په پارسي ژباړه کي د ګهتوت کچ پر ځای د ګندهارا نوم راغلی دئ. د ککي په نامه يوه قبيله په پښتنو کې سته.

[۲۸] د دغه نقل قول په فوټوکاپي کې درې کرښې مغشوشي دي (هوتک).

## د ساکانو پاچهي په کندهار کي :-

د رهنمای ټکسیلا په ۱۸ مخ کي لیکلي دي :-

ساکان په سیستان کي اوسېدل. د دوی یوې قبیلې چي له سیستانه ښخه مخ پر شرق هڅه وکړله او اراکوزیا یې خپله کړه، د مشر نوم یې ونونیس vonones و. څه موده وروسته تر اټک پوري وتل او پنجاب یې ونیو. د دغي قبیلې د سردار نوم Maues و. داسي معلومېږي چي دغه سردار په ۹۵ ق م کي په اراکوزیا کي پاچا سوی دئ. لس یا پنځلس کاله یې د اراکوزیا پاچهي کړېده، بیا یې نو د ټکسلا یونانی پاچهي رنګه کړې او ټکسیلا یې د اراکوزیا په پاچهی پوري نښلولې ده.

د ۵۸ ق م په شاوخوا کي Azes د ده پر ځای پاچا سوی دئ. دغه پاچا په تاریخ کي د لومړي Azes په نامه یادېږي. دی د vonones له نژدې خپلوانو ښخه و، ډېره موده یې پاچهي کړې ده او د ده په پاچهي کي خلک آرام او خوشحاله وه. په ساکا کورنی کي دی لومړی پاچا دئ چي پاچهي یې د جمنا رود تر غاړې پوري ورسوله، ده په هره سیمه کي والیان مقرر کړل.

تر لومړي Azes وروسته Azilises پاچا سو. تر Azilises وروسته پاچهي دوهم Azes ته ورسېدله. دی تقریباً په ۵ ق م کي پاچا سوی دئ[۲۹]. د Maues او لومړي Azes سکې د رهنمای ټکسیلا په ۳۸ مخ کي سته، د لومړي ایزیس اته پیسې د سرکپ له ستوپو ښخه لاس ته راغلي دي[۳۰]. د ټکسیلا په ستوپو کي یوه ستوپه چي ساکا پاچهانو ته منسوبه ده[۳۱]، پر طاقچو باندي یې د یوه مرغه جوله سته چي عقاب (ګوربت) ته

---

[۲۹] وګ : رهنمای ټکسیلا، ۲۹ مخ.

[۳۰] رهنمای ټکسیلا، ۹۸ مخ.

[۳۱] علامه بابا رحمه الله د یادابښتو په ۴۷۸ مخ کي د ساکانو په باب د "افغانستان در پرتو تاریخ" ۶۶ مقالې ته اشاره کړېده، (م. هوتک).

ورته دئ او عجبه دا ده چي په يوه طاقچه کي د دوه سري عقاب جوله ليدله کېږي. تر ټولو لومړی د دوه سري ګوربت جولې په خطيمي او بابلي انځورونو (نقشونو) کي ليدل سوي دي، چي په غربي (لوېديزه) ايشيا پوري اړه لري. سربېره پر دي د مساحت د زمانې د عاج پر يوه لويه ټوټه باندي هم دغه د دوه سري عقاب نقش (انځور) سته. داسي معلومېږي، چي څه موده پس ساکانو دغه نښان خپل کړی دئ او موږ په تينګه ويلای سو چي دا انځور ساکانو په ټکسيلا کي باب کړی دئ.
دغه نښان له ټکسيلا څخه د بجي نګراولنکا پاچهيو ته رسېدلی دئ او د لنکا د ګانډي ښار د سردارانو پر توغونو اوس هم دغه نښان سته. يو وخت دا نښان په اروپا کي د روس او جرمني پر پاچاهي بيرغونو هم ليدل کېده.

## ګندوفار د اراکوزيا پاچا او د غربي پنجاب نيول :-

د رهنمای ټکسيلا په ۱۹ مخ کي ليکلي دي :-

د عيسوي سنې په دريمه عشره (لسيزه) کي يعني له ۲۰ څخه تر ۳۰ کال پوري، Gandopharis پارتي پاچا ټکسيلا (شمال غربي پنجاب) ونيوله او له اراکوزيا سره يې ونښلوله. داسي معلومېږي چي دغه نښلونه (الحاق) بې جنګه سوې ده. ګندوفار خورا باوقعته (دروند) او زبردست (پياوړی) پاچا و. د ده نوم تر يوره پېه تللی و او په زړو اروپايي تصنيفاتو کي يې يادونه سوې ده. په ۴۰ عيسوي کال کي تامس حواري د ؟ له خوا د ده دربار ته د سفير په توګه را استول سوی و.

داسي معلومېږي چي د ټکسيلا تر نيولو وروسته ګندوفار په ۳۵ ع کال د کابل د سيمي نيولو ته هڅه کړېده. په دغه وخت کي هلته د يونانيانو يو کوچنی دولت واکمن و. ګندوفار د کابل سيمه له کوشانيو (؟) څخه ونيوله

او غالباً کوشانیو تر دغه اقدام دمخه د یونانیو واکمني هلته له منځه وړې وه.

ګندوفار د ۵۰ - ۶۰ عیسوي سنې تر منځ ومړ او پراخ ملک یې د دوستانو او جنرالانو په منځ کي وویشل سو. پنجاب د ګندوفار خوریي ابدګاسیس Abdagases خپل کړ، Arthagnes ارتهي ګنیز او تر هغه وروسته Pakores پکوریز د اراکوزیا او سنده واکمنان سول. نور ملک یې نورو کوچنیو حکمرانانو ته پاته سو، چي په دغو کي د ساسس Sases، سپیدن Spaden او ستاوستر Satavastar سکې لومړی وار په تکسیلا کي موندلي سوي دي. دا سکې د تکسیلا د سرکپ ښار له ستوپو څخه لاس ته راغلي دي. یو طلایي ځنځیر او څو دیشب[۳۲] او عقیق غمي هم ورسره وه. د سرکپ څلورم ښار غالباً د لومړي ایزیس په وختو کي جوړ سوی دئ[۳۳]. دا ځکه چي د ده د سکو څو کوچني خزانې د ودانیو په تلي کي موندلي سوي دي[۳۴].

## د کندهار ځیني کلي او سیمي چي نومونه یې پخواني معلومېږي :-

اِلبکان (IlBakan) :- له کندهار چي پر زړه لار تیري ته ځي، واقع دئ.

ویان (Wayan) :- په مهابهارت کي (راغلی دئ). د دهلې په سر کي واقع دئ.

---

[۳۲] یو راز شنه وشمه قیمتي ډبره ده. له ځینو خلکو څخه مي دا نوم (یشم) هم اورېدلی دئ. (هوتک).

[۳۳] رهنما تکسیلا، ۱۱۰ مخ.

[۳۴] د ګندوفار د سکو عکسونه د رهنمای تکسیلا په ۳۸ مخ کي سته.

باختو[۳۵] :-

چنارتو[۳۶] :-

چکتو[۳۷] (Cakatu) :-

ورگچ (Wargac)[۳۸] :-

**ډبرۍ :- حجریه، رباط الحجاره.**

له کندهار ښاره څخه چي کوتي ته ځې، لومړی مزل ذاکر، دوهم مزل تخته پل، دریم مزل د میل مانده، او څلورم مزل د ډبرۍ په نامه یادېږي، چي په پسې مزل سپین بولدک دئ.

ډبرۍ د افغانستان بعد از اسلام د ۱۴۶ مخ پـه نقشه کـي د حجریـه پـه نامه ښوول سوې ده. د حجریه موقعیت په دغه نشقه کي د پښین او کندهار په نیمایي لار کي دئ. د نومړوي کتاب په ۵۶۲ مخ کي دغه ځای د رباط حجریه په نامه یاد سوی دئ.

تلوکان :- قدیمو جغرافیه نگارانو او مؤرخینو دغه ځای د طالقان په شکل کښلی دئ. ابوالفضل بیهقي ۲۰۳ مخ کي لیکلي دي :-

"در آنوقت که امیر سبکتگین رضي الله عنه بست بگرفت و بابتوزیان

---

(۳۵) (۳۶) د ارغنداو پر رود باندي چي کوم بند (کاسه) جوړه سوېده، دا سیمه د دهلې (دالې) په نامه یادېږي. دهله د شاه ولیکوټ ولسوالۍ مربوط کلی دئ. د شاولیکوټ ولسوالۍ څخه مخ پر ختیځ د موټرو یو خامه سړک وتلی دئ، چي ویل کېږي اوس یې د پخولو کار روان دئ. دا سړک، چي د کاسې (بند) پر سر راتاو سي، لومړی کلی (ویان) نومېږي. وروسې (باختو) او بیا (چنارتو) کلي مخي ته راځي. په دې کلیو کي د انځرو پرېمانه باغونه سته او د سیمي اکثریت اوسېدونکي یې توخي دي. په خاص روزگان کي هم د (چنارتو) په نامه یو کلی سته. د روزگان چنارتو د ترینگوټ ولسوالۍ مربوط کلی دئ، (م. هوتک).

(۳۷) (۳۸) د (چکتو) او (ورکچ) کلي هم ما ته د دغي سیمي مربوط کلي ښکاري، خو دقیق موقعیت یې راته معلوم نه دئ، (م. هوتک).

بر افتادند زعیمی بود بناحیه طالقان، که ویرا احمد بوعمر گفتندی. مردی بود پیر و سدید و توانگر".

تر بیهقي دمخه مقدسي په احسن التقاسیم ۳۹۷ مخ کې طالقان د بست په توابعو کې راوړي. په طالقان رسم الخط دا پنځم طالقان دئ.

۱. د عراق طالقان
۲. د اصفهان طالقان
۳. د قندز طالقان (قطغن)
۴. د شبرغان طالقان
۵. د بست (کندهار) طالقان[۳۹]

پنجوایي :- په احسن التقاسیم (۳۷۵ هـ تالیف)، د اصطخري په المسالک والممالک کې (۳۴۰ هـ تالیف)[۴۰].

سروان (کلا) :- د اصطخري په المسالک والممالک کې[۴۱]

چَنګُل : په ارغنداو کې

ماشور[۴۲] :-

نوزاد :- احسن التقاسیم

داور :- ارض داور احسن التقاسیم[۴۳]

بغنین :- د اصطخري په المسالک والممالک کې[۴۴]

---

[۳۹] د تلوکان په نامه یو کلی د پنجوایي په ولسوالی کې سته. په دغه کلي کې د ملا حسن اخوند زیارت مشهور دئ. ملاحسن اخوند د پښتو او فارسي ژبو شاعر و. (م. هوتک).

[۴۰] د پنجوایي بحث د همدې اثر د لومړي ټوک په ۵۵ - ۵۶ مخونو کې راغلی دئ. (م. هوتک).

[۴۱] وګ : د همدې اثر لومړی ټوک، ۶۷ مخ، (م. هوتک).

[۴۲] د ماشور کلی د احمدشاهي کندهار په جنوب لوېدیځ کې واقع دئ، (م. هوتک).

[۴۳] وګ : د همدې اثر لومړی ټوک، مخ، (م. هوتک).

[۴۴] وګ : د همدې اثر لومړی ټوک، مخ، (م. هوتک).

د ۱۳۲۰ کال په کلنۍ کې کښلي دي :-

"بغنين شهرى بود در زميندا ور مسكن اصلی خلجی ها".

## هندوسکای کورنۍ :-

دغه کورنۍ یونانیانو د Indoschytia په نامه یاده کړېده. ځينو مؤرخينو د هندوپارتي په نامه هم یاده کړېده. په چيني آثارو کې کښلي دي دغه کورنۍ، چې په کومه سيمه کې پاچهي کوله هغه سيمه د کې پين[۴۵] په نامه يادېدله، چې د ارغنداو ناوه او د سندھ کښتنۍ برخه پکښې شامله وه. د کابل ناوې ته يې هم د تسلط لاسونه ورسېدل. د يونانو باختري دولتو (چې په بلخ او هند کې يې پاچهي کوله) په ځنګ کې دغه پاچهي د سکايي يا پارتي په نومو يادېدله. د دوی سکې په غربي پنجاب، پېښوراو باميان کې پيدا سوي دي.

د دغې پاچهۍ بنياد ايښوونکی د ۶۹ ق م په حدودو کې (موئس) دئ. سکې يې په ټکسيلا کې پيدا سوي دي. پر يوه خوا يې دغه مطلب کښلی دئ :-

"د موګا لوی پاچا".

د سکې پر بله خوا په خروشتي خط په پراکراتي ژبه کښلي دي :-

"راجاتی راجا ساماهاتاساموا سا".

د ټکسيلا په يوه مسي کتيبه کې کښلي دي مائوس کندهار فتحه کړ (بنايي ګندهارا وي) او د ټکسيلا په مغرب کې تر پشکلاوتي پوري وړاندي ولاړ. تر موئس وروسته د ۵۸ ق م په حدودو کې آزس پر تخت کښېنوست. د کابل له ناوې څخه تر پنجابه پوري يې حکومت درلود. تر آزس وروسته ازيلي زس په ۵۵ ق م کې پاچا سو، تر ۴۰ ق م پوري يې ۱۵ کاله پاچهي

---

[۴۵] بنايي کپوبهن = کابل وي.

وکړه.

دغه سکایان د ۱۲۸ ق م په حدودو کي زرنګ ته راغلل او دغه سیمه يې پخپل نامه سکستان – سجستان – سیستان ونومله. بیا اشکانیانو اراکوزیا ځني ونیوله او د دوی پاچهي یوازي په سیستان کي پاته سوه. د ماوس په باب ځیني وایي ایرانی دئ، ځیني وایي له ساکانو (ترک + ایرانی) دئ.

په ۲۰ ق م کي چي یوچیانو (yuch – ehi) د هرات له لاري پر سیستان او بیا پر پنجاب برید وکړ په دغه وخت کي ماوس د سیستان له مشرانو څخه و. دی هم له یوچیانو سره د هندوستان خوا ته ولاړ او په پشکلاوتي کي يې د خپلي کورنۍ د پاچهۍ تادا و کښېښود.

مګر په رهنمای ټکسیلا ۱۸ مخ کې لیکلي دي :-

ساکان چي له سکستان (سیستان) څخه راووتل پر اراکوزیا يې برید وکړ هلته يې پاچهي جوړه کړله. د دغو ساکانو یو پاچا Maus دئ چي په ۹۵ ق م کي په اراکوزیا کي پاچهي ته ورسېد. لس پنځلس کاله پس يې پر ټکسیلا برید وکړ. ټکسیلا يې ونیوله د ۵۸ ق م په شاوخوا کي ازیز د ماوس پر ځای کښېنوست (لومړی ازیز).

د مسو پر یوه تخته باندي چي په ټکسیلا کي پیدا سوې ده، ماوس ته يې مهارای او کال يې ۷۸ لیکلی دئ خو معلومه نه ده چي دا کومه سنه ده او په سکو کي يې د شهنشاه اعظم لقب لیدل کېږي. د ګندهارا او د هغه شاوخوا سیمي د ده تر حکم لاندي وې.

میناندر چي له ۱۴۰ ق م څخه تر ۱۱۰ ق م پوري د پنجاب، سنده او کابل پاچا و، د ده تر مرګ وروسته ماوس ساکي سنده ونیو. یونانیان يې له پنجابه وشړل[۳۶].

د ساکايي پاچهانو سلسله داسي ده :-

---

[۳۶] جیوګرافیکل ډکشنري، ۱۸۶ مخ.

ماوس Maues یا ماوه[۳۷]

ازس Azaes د ماوس زوی[۳۸]

ازي لي سز Azilises د ازس زوی[۳۹]

دوهم ازس Azaes II

ونونس Vonones په اوستا کي Vanana

سپالریزس Spalirises په اوستا کي Asparayisa د ونونس ورور او Spalahora وي.

جانشین و. Spalaheres چي باید په زړه پارسي کي

هراوس Heraus

هرکودس Hyrcodes

رنحه بولا Rangubula

خراوشته Kharaoshta[۵۰]

ځیني مؤرخین وایي Spalarises ،Vonones او Spahalores د اشکانیانو له کورنۍ څخه وو. ازس په کندهار (اراکوزیا) کي پاچهي کوله. په لومړي مېلادي سدۍ کي یې د ماوس له کورنۍ سره خپلوي پیدا سوله، شمالي هندوستان ته ولاړل. بنایي لومړی ازس له ماوس کورنۍ او دوهم ازس د ونونس له کورنۍ وي. سکې یې سته[۵۱].

تر ماوس کورنۍ وروسته پاچهي گندوفار (۵۰ تر ۶۰ ع پوري مړ) ته

---

[۳۷] ماوس چي کومه سکه وهلې ده، په هغه کي یې داسي لیکلي دي :- شهنشاه لوی ماوس Rajadhi Rajasa Mahasta Maosa.

په فارسي [illegible] (ایاز؟) د ماوس جانشین تر جلال اباده ملکونه ونیول. ده په ټکسیلا کي پاچهي جوړه کړې وه. سکه یې پخپل نامه کړله.

[۳۹] کابل یې ونیو د ماوس سکه ده بیا ژوندۍ کړه. په ۴۵ – ۴۰ ق م کي تر پلار وروسته پاچا سو. تر ده وروسته یې زوی دوهم ازس پاچا سو. (قدیم هندوستان کې تاریخ، ۲۴۸ مخ).

[۵۰] ایران نامه، ۳۲۵/۲ مخ.

[۵۱] ایران نامه، ۳۲۷/۲ مخ.

ورسېده[۵۲]. د ګندوفار په باب د رهنمای ټکسیلا په ۱۹ مخ کې لیکلي دي :-

تقریباً د عیسوي سنې په دریمه لسیزه کې پهلوي پاچا Gondophores د اراکوزیا او ټکسیلا دواړو پاچا سو. په ۲۰ - ۳۰ ع کلوکې دا خورا باوقار او زبردست پاچا و. د ده شهرت تر اروپا پوري هم رسېدلی و. له زړو عیسايي کتابو څخه معلومېږي چې د ده دربار ته طامس حواري رالېږل سوی و (۴۰ ع کال). د ټکسیلا تر نیولو وروسته ګندوفار په ۳۵ ع کال د کابل پر ناوه برید وکړ. هلته يوه کوچنۍ یوناني پاچهي وه. د کوشانیانو د بقایاوو کمبله ده پسې تولـه کړله، ګندوفار چې مړ سو په هره سیمه کې د خپلواکۍ چیغي پورته سوې.

## د پارتیانو او سکایانو اړیکی :-

پارتیان د هلمند په ناوه او سیستان کې تیت و پرک اوسېدل. سکایان چې راغلل له هغو سره ګډ سول او یو ملت یې جوړ کړ. کله چې دیارلسم اشک (ارد) خپل پایتخت له خراسانه څخه تیسفون ته نقل کړ، دغه سکايي پارتي ملت فرصت ومووند او په سیستان او رخج کې یې یوه پاچهي جوړه کړله. د دې پاچهۍ جوړوونکی د ۱۲۰ ق م په حدودو کې (ونـنس) و[۵۳]. د ونس په ځینو سکو کې چې په یوناني او خروشتي کښل سوي دي، له ده سره د ده د ورور او وراره اسپالاهورا[۵۴] او اسپالاګادمه[۵۵] نومونه هم سته.

ترونس وروسته یې ورور اسپالي ایزس پاچا سو[۵۶]. پایتخت یې په

---

[۵۲] رهنمای ټکسیلا، ۲۹ مخ.

[۵۳] ښايي ونج وایي (پنجوایي) له دغه نامه سره اړیکي ولري.

[۵۴] ښايي سپېروان د ده په نامه وي؟

[۵۵] ښايي زنګاوات له دغه نامه سره ارتباط ولري؟

[۵۶] د دارو نیکه په اسلافو کې د سیپل نوم سته. له دغه اسپالي کورنۍ سره لفظي مشابهت لري. د سالهان او سلاوات کلمې هم له دغې ریښې سره بې اړیکي نه ښکاري.

اراکوزیا کي و. د هندوستان ځیني سیمي يې ونیولې او هلته يې د شهنشاه لقب وموند، چي پر سکو باندي يې په خروشتي خط سره ایاس کښلی دئ، چي ځینو کسانو دغه لیکنه ایزس لوستې ده.

د دې کورنۍ مشهور پاچا گندو فارس دئ چي له ۴۸ ق م څخه تر ۱۹ ق م (؟) پوري پاچا و. ده له اشکانیانو څخه ځان مستقل کړ. سکې يې په هرات، کندهار، سیستان او پېښور کي پیدا سوي دي. د ده یوه کتیبه د پېښور د مردان په تخت بهایي کي سته. دا سکه د ده د پاچهۍ په ۲۶ کال وهلې سوېده. د کندهار د ښار ودانۍ ده ته منسوبوي. د پاچهۍ په لومړیو کلو کي یو بل پاچا، چي گودا نومېد، هم په پاچهي کي ورسره شریک و. په ۱۹ ق م کي گندوفار پنجاب ته ولاړ. د ده پر ځینو سکو د ده د ورور او وراره ابداگاسه نومونه هم سته. تر گندوفار وروسته د دغي کورنۍ درې پاچهان نور هم تېر سوي دي :-

ابداگاسا - د گندوفار وراره.

اورتاگانس - چي لقب يې فېروز و[57]

پاراکوراوی (۶۰ - ۷۵ م).

## کجولاکدفیزس :-

د کندهار د زاړه ښار د غره په جنوبي څکه (ورڅک - پوزه) کي يو طاق (دلانچه) او تنگاچه (صفه) سته، چي د کوجولا په نامه اوس هم یادېږي. د زله خان، ماهي، ماشور، ناخوني او د سیمي د نورو نژدو کلیو خلک يې د کوجولا غار بولي. کجولا قدفیزس په افغانستان کي د کیوشوانگ (کوشاني) کورنۍ د پاچاهۍ تاداو ایښوونکی دئ. دی په ۴۰ ع کال په باختر کي پاچا سوی او تر ۳۸ کالو پاچهۍ وروسته په ۷۸ ع کال

---

[57] بنايي فېروز کهندږ ده ته منسوب وي.

مړ دئ. ده په ۶۰ – ۶۵ ع کې کابل ونیوه او د کندهار او تکسیلا پاچهي یې بیا سره یوه کړله[۵۸]. دلته د کندهار له کلمې څخه ښایي د مؤلف مراد د پېښور ناوه وي. د کجولاکدفیزیس د شهانشاه لوی کنیشکا ور نیکه (غور نیکه) و. د کوجولا د غار مخي ته د کوجولا کدفیزیس ناستي به د ۵۰ – ۷۰ ع کلونو تر منځ وي.

## تر سکندر مقدوني وروسته کندهار :-

مقدوني سکندر چي په ۳۲۳ ق م په بابل کي ومړ، لویه پاچهي د ده جنرالانو په خپلو منځو کي ووېشله. د آراکوزیا او گدروزیا واک Sibyr Tias سیبرتیاس ته ورسېد. د پاروپامیزاد او کابل واکمن د سکندر د مایني رخشانې پلار Oxeareis هوخارس سو، د هرات ناوه او درنگیانه (سیستان د Stasandar په برخه ورسېد. د باکتریا (بلخ) او سغدیانې پاچهي Stasanor ستاسانور ته ورسېدله.

په هندوستان کي د سکندر تر مرگ یو کال دمخه د چندراگوپتا موریه پاچهي جوړه سوه او تر ۳۰۰ ق م پوري وپاېدله. چندراگوپتا، چي پایتخت یې پاتهلي پوترا (اوسنی پټنه) وه، خپله پاچهي تر اباسینه پوري راوغزوله.

د بابل واکمني، چي سلوکیس نیکاتور ته رسېدلې وه، د ختیځ لور ته یې لښکري راوایستلې د پارس او د پارتیانو دولتونه یې خپل کړل. په ۳۱۱ ق م کي یې هریوا او باکتریا هم ونیوله. په ۳۰۵ ق م کي یې د کابل له لاري د اباسین ختیځي خوا ته ځان ورساوه او هلته د چندراگوپتا له مقابلې او مدافعې سره مخامخ سو. روغه وسوه، د پنځوسو پیلانو په بدل کي د یونانو باکتریا پوځونو د اراکوزیا، گندهارا، گدروزیا او پاروپامیزاد سیمي چندراگوپتا ته ورخوشي کړلې او په بخدي کي یې واک د یودوتس ته

---

[۵۸] رهنمای تکسیلا، ۲۹ مخ.

له ده څخه پیل سوې ده.

وسپاره. د دیودوت یوناني باکتري پاچهي

## کورنګ شاه زابلی او د هغه کورنۍ :-

احمدعلي کهزاد د آریانا په ٦٤ مخ کي کښلي دي :-

د اسفندیار (سپنتوداتا) تر مرګ وروسته د بلخ د اسپه کورنۍ دبدبه کرار کرار لوېدله او ځای ځای کوچنۍ پاچهۍ منځته راغلې. په دغو کوچنیو پاچهیو یا ملوک الطوافیو کي یوه پاچهي د کورنګ شاه زابلي ده چي له نیمروزه څخه تر کابله پوري یې پاچهي وه.

په دغو نومونو یاد سوي دي :-

د دغي کورنۍ پاچهان

شیدسپ



تور

تورک

شم

اطرط

ګرشاسپ

## پر کندهار د ساسانیانو بریدونه :-

په ٢٢٥ میلادي کال لومړی اردشیر، د دریمي عیسوي سدۍ په دوهمه نیمایي کي لومړي شاپور او په څلورمه عیسوي سدۍ کي دوهم شاپور پر کندهار بریدونه وکړل.

## د عبدالله خان ازبک حملې :-

په نامهٔ خسروان ١٠٠ مخ درېیمه نامه کي لیکلي دي :-

"باز عبدالله خان ازبک بخراسان لشکر کشید و در آن سامان تاخت و

تاز بسیار کرد. شاه طهماسب ناچار لشکر فراهم آورده، بخراسان رفت دست ازبکان را از آن کشور کوتاه کرد. در آن هنگام آوازه که سیلمان شاه عثمانی از طرف ترک بایران (لشکر کشیده)، شنید. کشور بسام میرزا برادر خود داده بعراق آمد، با سلیمان شاه چندین بار جنگیده سرانجام سلمان شاه بکشور خویش (ترکیه) باز گشت. شاه طهماسب و لشکریان هنوز از خستگی پیکار نیاسوده بودند که داستان رفتن سام میرزا بقندهار بی حرمانی پادشاه و شکست و پریشانی لشکر او رسید و باز آمدن عبدالله خان ازبک بخراسان و بیدادگری آن مردمان بآن سامان گوشزد شاه شد ناچار از هر کشور سپاهی گردآورد رو بسوی خراسان نهاد. ازبکان همینکه آوازۀ آمدن شاه را شنیدند، خراسان را تهی کرده بکشور خویش گریخته شاه طهماسب بخراسان و هرات آمده برای گوشمال افغانان روی بقندهار آورده پس از کوشش بسیار آن شهر را بگرفت و یکی از بزرگان قاجار را در آنجا فرمانروا کرد. این بار عبدالله خان که از چندین بار تاخت ایران جز زیان سودی نداشت پیکی بقندهار نزد شاه فرستاد خواهان آشتی شد. پادشاه نیز آشتی کرد بایران باز گردید".

## مهراب پاچا (د کابل) :-

مهراب په ؟ کال کي د بست تولواک، غبتلی او ستر پاچا و. زابل، کابل او سیستان يې خوړ او د ایران د منوچهر نامي پاچا معاصر و. مهراب د هغه سهاک (ضحاک تازي) له پښته څخه و، چي باميان يې پلازمېنی و او پر جمشید يې یرغل ور ووړ او له تخته يې کوز کړ.

د مهراب په زمانه کي د ماوراء النهر د تورکانو له خوا پر پښتونخوا کلک بریدونه وسول. توراني پاچا پیلا دېرش زره لښکر د پهلوان شاماسي (شاماس) او پهلوان خزوران تر مشرتابه لاندي د هيرمند غاړو ته راولېږل.

مهراب، زال رز له کابلـه پـه ېږه راوغوښت. زال رز چـې راورسېد تورانیو لښکرو ته یې ماته ورکړه. د مهراب سپهسالار داستاني سام (زال رز) دئ چې د ده له خوا د کابل واکمن و، او رودابه د مهراب لـوریـې ماندینـه وه، چې رستم یـې زوی دئ. پـه دغـو وختـو کـي د هلمنـد غـاړي ډېـري ودانـي او سمسوري وې او د گرشک له سیمو څخه د هامون تر ډنډي پوري پـه هلمند کي ېږی چلېدې. رستم په خپله د سیستان، کندهار، غزني او کابل پاچا و.

## پر بست او رخذ باندي د تمیم بن سعید حمله :-

د افغانستان بعد از اسلام په ۳۳۵/۱ مخ کي کښلي دي :-

په ۱٦٦ هـ ق کال خراسانیان عباسي والي منیب بن زهیر ته، چې مرکز یې مرو و، پورته سول. المهدي عباسي خلیفه (۱۵۸ - ۱٦۹ هـ ق) چې خبر سو، فضل بن سلیمان طوسي یې د خراسان والي وټاکه او سیستان یې هم د ده تر حکم لاندي کړ. ده له خپلي خـوا څخـه تمیم بـن سـعید د سیستان حاکم مقرر کړ او هغه د ۱٦۹ هـ ق کال د صفري پـه دوه ویشتمه د شنبې پـه ورځ د سیستان مرکز زرنج ته ورسېد. څو موده پس یې پر بست او رخـذ برید وکړ، له رتبېل سره وجنگېد او د رتبېـل وروریـې بنـدي کـړ او عـراق تـه یـې واستاوه.

## براهویان او کندهار :-

د جنـرال سرپرسـي سـایکس (۱۸٦۷ - ۱۹۴۵ ع) د سـفرنامې د اردو ترجمې[۵۹] په ۱۴۳ مخ کې کښلي دي :-

په ۱۸۸۱ ع کال په افغانستان کي د گرمسیر د هغې برخي اوسېدونکي

---

[۵۹] دوهم چاپ، د حسین سعادت ژباړه.

براهويان، چي د هلمند منتهي اليه بلل کېږي، اېران ته واوښتل او د تهران تر شاوخوا پوري يې دغه سيمي چور و چپاو کړلې. ډېري اولجې يې په لاس ورغلې او بيا دلوت په صحرا کي پټ سول. د ابراهيم خان زوی سعدالله د دوی د ځبلو په هڅه کي سو، مگر په يوه جنگ کي سعدالله ماته وکړه او د ده د لښکرو وسلې او سامانونه د براهويانو په لاس کښېوتل.

## د يعقوب ليث حمله پر کندهار باندي :-

د زين الاخبار په ۱۳۹ مخ کي کښلي دي :-

يعقوب ليث له سيستانه څخه بست ته راغی، بست يې ونيو او د هغه ځايه پنجوايي و تگين آباد ته راغی له زنبيل سره وجنگېد، په چم يې زنبيل وواژه پنجوايي (رخود) يې ونيو. له هغه ځايه غزني ته ولاړ او زابلستان يې ونيو. گردېز ته ولاړ له ابو منصور افلح بن خاقان؟ سره يې جنگ وکړ. پای ته د کاله په لس زره درهمه خراج سوله وسوه چي د سيستان دربار ته به يې ورکوي.

بلخ و باميان يې په ۲۵۶ هـ ق کال ونيول. د بلخ نوشار يې وران کړ. کابل ته راستون سو. د کابل تر نيولو وروسته بست ته ولاړ. دی د بست له خلکو څخه خوابدی و. د بست پر خلکو يې درانه خراجونه کښېښوول، بيا نو سيستان ته ولاړ.

په تاريخ سيستان ۲۲۸ - ۲۳۳ مخونو کي کښلي دي :-

په ۲۵۸ هـ ق کال معتمدبالله عباسي خليفه (۲۵۶ - ۲۷۹ هـ ق) خپل ورور ابو احمد الموفق له اسماعيل بن اسحاق قاضي او ابو سعيد انصاري سره د يعقوب ليث دربار ته د سفير په توگه ولېږه. د بلخ، تخارستان، پارس، کرمان، سجستان او سنده د حکومت فرمان، بيرغ او عهدنامه يې ورته راولېږله. يعقوب دغه هيئت ښه ونازاوه.

(۲۳۷ - ۲۶۵) وکړه پاچهي وکړه (۲۳۷ ۲۶۵)
یعقوب لیث اووه لس کاله نهه میاشتي پاچهي وکړه
خراسان، سیستان، کابل، سنده، هندوستان، فارس او کرمان یې تر لاس لاندي وو. په ۲۶۵ ه ق کال چي دی ومړ، معتمدبالله د دغو ملکو فرمان د ده ورور عمرولیث ته ورکړ.

## پر سیستان باندي د درهم بن نصر بستي حمله :-

د یعقوب لیث ماما کثیر بن رقاق و. په قفیل (Qofil) نومي کلا کي خوارج پر راتول سول. خوریان یې دیعقوب له دریو ورونو طاهر، علي، عمرو سره بست ته ځني وتښتېدل. هلته د خوارجو پر ضد خلک پر درهم بن نصر راتول سوي وو. دوی څلور سره ورونه درهم ته ورغلل. درهم پر سیستان برید وکړ. د سیستان والي د طاهریانو له خوا ابراهیم بن الحسین و. درهم چي د سیستان د ښار (زرنج) دروازې ته ورسېدی، ابراهیم کلا وتړله د جنګ توان یې نه درلود. خلک چي خبر سول درهم د خوارجو جنګ ته راغلی دئ، د ښار دروازې یې خلاصي کړلې دی یې ښار ته ننه یوست. ابراهیم له ښاره ووت. درهم له خوارجو سره جنګ پیل کړ د خوارجو مشر عمار بن یاسر و. یعقوب لیث د درهم له خوا د هغه جنګ ته ورغی. په جنګ کي عمار وواژه سو. سوکه سوکه د یعقوب د توري ږغ ولاړ. خلکو مخه ورته وکړله د درهم پر ځای دی د دغه لښکر سپهسالار سو. درهم هم په دغه لښکر کي و. یعقوب په درناوي ورته وکتل. څو موده پس د یعقوب په اجازه د حج په نیامت بغداد ته ولاړ. هلته د بغداد څخه خلیفه د استاځي په توګه یعقوب لیث ته ولېږه، او د یعقوب په امر وواژه سو. درهم او ورور یې صالح د نصر زامن د زنبیلانو د کورنۍ وه.

## په کندهار کي له عربو سره د ۷۰ هق جنګ :-

په تحفة الکرام کي کښلي دي :-

په ۳۰۴ هق کال د کندهار ښاريو برج ونړېدی، ... ککرۍ پيدا سوې چي يو له بله تړلي وې. د نهه ويشتو ککريو په غوږو رقعې ځړېدلې پر هغو رقعو د هر يوه نوم کښلی و. د ځينو نومونه دا دي :-

شريح بن سنان، حسان بن يزيد، خليل بن موسیٰ. په رقعو کي راوړې نېټه ۷۰ ه (سبعين هجري) ليک وه[٦٠]

دغه پېښه موسيوفرير Ferrier په نولسمه عيسوي سدۍ کي د Her Belot هربيلوټ د وينا په استناد نقل کړې ده، چي هربيلوټ د اخوان الملک په حواله ليکلې ده[٦١]

---

[٦٠] علامه استاد رحمه الله عليه دغه مطلب يو بل ځای د غلام صديق حسن خان بهوپالي له خولې د رياض المرتاض په حواله هم راوړی دئ. وګ : د همدې کتاب ۲۳ مخ، (م. هوتک).

[٦١] آريانا دائرة المعارف، ۵۸۴۷/۷ مخ.

# د کندهار

## زوړ ښار

## د کندهار زوړ ښار :-

د کندهار زوړ ښار د احمدشاهي کندهاره څخه دوه میله لیري د لوېدیز خوا ته د لکه غره په لمن کي واقع دئ. خورا تینګه کلا یې وه، دا ښار پر دریو برخو وېشلی و :-

1. یوه دفاعي څوکی، چي د غره په یوه لوړه برخه کي جوړ سوې. دا د لکه په نامه یادېدله.
2. اصل کلا[1] تر هغه کښته وه، د دولت آباد په نامه یادېدله.
3. ښار او بازار تر دولت آباد کښته و، یوه کلا پر راګرځېدلې وه.

د ښار جنوب، شرق او غرب ته تر څو مزلو پوري باغونه او کښتونه وه. شمال ته یې لکه ولاړ و. د کندهار د زاړه ښار کلا درې یو په بل پسې دېوالونه درلودل. د دغو دېوالو تر منځ د پوځ د خېمو له پاره کافي ګنجایش و. دېوالونه یې په پخسه (دای) وهل سوي وو. په تادای کي د کلا د دېوالونو پسور لس ګزه و. د دېوالونو پخوالی تر دې اندازې و، چي په ۱۸۷۸ ع کال یوه انګرېزي منصبدار د تفنګچې واری پر وکړ. ګولۍ دغونه (دومره) په دېوال ننه وتله، چي په ګوتو یې بیرته راوکښله. دغه انګرېز افسر کښلي دي که زموږ د وختو (د نولسمي عیسوي سدۍ په اواخرو کي) توپونه پر دغه کلا ګولۍ واوروي، هم به دا کلا ونه نړولای سي او ګولۍ به تر ونه وزي.

میرزا محمدخلیل مرعشي صفوي د دولسمي هجري سدۍ په پیل کي د میرزا طاهر وحید د تاریخ عباسي، د شاهجهان نامې او تاریخ وقایع قندهار (د میرزا بدیع تالیف، چي په رشید خان مهابت خاني مشهور و)، په استناد لیکلي دي :-

---

[1] د کندهار د کلا په باب د تاریخ افغانستان در عصر ګورګانیان هند په ۲۰۵ مخ کي هم یادونه سته.

زاړه کندهار اووه کلاوي درلودې. د کلا غربي څنډه د لکي پر غوره بنا وه، چې د هند خلک یې (کوه لکه) بولي. لکي غر ډېر لوړ (جگ) دي. د دغي کلا بالاحصار د زمردشاه باختر ارگ یا قیتول بولي. د بالاحصار کلا یې لوړه او پلنه وه. جگواله یې شپږ گزه دئ. پر دغه کلا یوه بله کلا راڅرخېدلې ده. د دغي کلا په منځ کي پر یوه غونډۍ حاکم نشین عمارت جوړ سوی دئ ارگ یې بولي. د ارگ کلا شمال ته بله کلا سته چي سنگ انداز و کنگره، فصیل و خندق لري. خندق یې ډېر پسره ور دئ. د دغه دېوال پای ته دوه دېوالونه نور سته یو یې شېرازه او بل یې بدن بولي. دا دېوالونه یو د بل مقابل ته پراته دي او خورا تینگ دي. د کلا د دېوال شرق ته یو خورا پلن خندق سته او له غربي څنډي څخه د ښار جنوب ته دغسي یو دېوال سته. د ښار غربي خوا ته چي د لکي غر واقع دئ، درې دېواله یې ډېر تینگ او پلن، یو د بل مقابل ته آباد دي. د دغه دوو دېوالو تر منځ یو بل ښار ودان دئ. جنوبي دېوال یې د لکي غره سر ته ختلی دئ. په دې ډول نو اووه کلاوي خورا پخې او تینگي ودانې سوي دي، چې په یو بل پوري نښتي دي.

په هره کلا کي حوضونه او د اوبو تالاوونه سته، چې خلک تږي نه سي. خلکو چي ما ته بیان کړی دئ، کندهار اووه پخې او جگې تینگي کلاوي لري:-

۱. شېر حاجي – شېرازه
۲. دولت آباد (د هندوستانیانو په قول). اېرانیان یې قلعهٔ بدن بولي.
۳. قلعهٔ مندوی
۴. قلعهٔ ارگ

۸. قلعه قیتول [۲]

۶. د علي مردان کلا

۷. د چهل زینې د غره کلا

علیمردان چې د کندهار کلا گورگانیانو ته وسپارله، قلیچ خان د شاه جهان په امر د چهل زینې د غره پر شاوخوا یوه کلا جوړه کړه.

د ښار دروازې پنځه وې :-

۱. د ماشوري دروازې غرب ته خلاصیږي؟

۲. باباولي دروازه شرق ته

۳. د خواجه ویس دروازه شمال ته

۴. علي قاپي دروازه

۵. د خواجه خضر دروازه جنوب ته

ښار درې برجه لري :-

۱. د مجنون قتال د زیارت برج

---

[۲] د قیتول نوم په مصطلحات الشعراء ۳۱۸ مخ کې (قیتول زمردشاه) کښلی دئ. اصل مضمون داسي دئ :-

"قیتول زمردشاه قلعه ایست در حوالی قندهار بنا کردهٔ زمردشاه نام پادشاهی که دعوای خدایی داشته العیاذبالله. الحال ویران است و آثار آن پیداست". سعید اشرف ویلي دي :-

دشت از لاله چو قنطورهٔ سرخ عیار

کوه از سبزه چو قیتول زمردشاهی

(وگ : چراغ هدایت)

وارسته دا هم زیاته کړېده، چې د تاریخ په کتابونو لکه د شرف الدین علي یزدي ظفرنامه او نگارستان کې قیتول د مطلقي کلا په نامه راغلی دي. جلال الدین سیوطي (۸۴۹ - ۹۱۱ هـ ق) د المزهر په ۱۶۳ مخ کې قیتول رومي کلمه بللې ده او په (بیت الشتوي) یې معنا کړېده، چې د ژمي د تېرولو خوني ته ویل کېږي او ترکان یې قیتس لاق (قتله) بولي. د عبدالرحیم هوتک په مهاجرتنامه کې (لکه) راغلی دئ او د سرپوزې غر یې پرسلا غر بللی دئ؟ ارلاکوه یې هم یاد کړی دئ. د قیطول زمردشاه یادونه یې هم کړېده.

۲. د ایرو (خاکستر) برج

۳. د ډېي برج. دا برج تر ټولو کښته برج دئ.

د کندهار د اوو کلاوو برجان تر ۵۰ زیات دي. نور يې نوموونه نه لري[۳].

د کندهار د زاړه ښار د دروازو تفصیل داسې دئ:-

۱. د ښار شمالي خوا ته د ګوندګان دروازه او د بابا ولي دروازه. د بابا ولي دروازه په نادرنامه کې د باباولي دروازې په نامه یاده کړېده، خو ابوالفضل د شیخ ولي په نامه راوړې ده.

۲. د جنوب خوا ته د ماشور دروازه.

۳. ختیځې خوا ته نوې دروازه – د سلطان ویس دروازه؟

۴. خضري دروازه، د خواجه خضر زیارت یا چینې په نامه نومول سوې ده. دغه زیارت د ښار شرقي خوا ته اوس هم سته.

۵. د علي قاپي دروازه، قیتول ته نژدې.

دغه دروازې علامي ابوالفضل ناګوري (۱۰۱۱ هـ ق مړ) راوړي دي.

صمصام الدوله یوه بله دروازه د ویس قرن د دروازې په نامه یادوي. د سلطان ویس په نامه اوس هم د زاړه ښار شرقي خوا ته یو زیارت سته[۴].

معین الدین محمد زمچي اسفزاري هروي (۹۱۵ هـ ق مړ؟) په روضات الجنات في اوصاف مدینة الهرات کې ۳۴۰ – ۳۵۴ مخونه، چې د ۸۹۷ – ۸۹۹ هـ ق تالیف دئ، د کندهار په باب داسې کښلي دي:-

"د غره په لمنه کې ښار ودان دئ. خورا ټینګه کلا پې ده. هوا يې بده

---

[۳] وګ: مجمع التواریخ، ۱۱ – ۱۲ مخونه، ۱۳۲۸ هـ ق طبع تهران.

[۴] تر دې کرښې وروسته راغلي مطالب د علامه رشاد رحمة الله علیه له هغې مقالې اخیستل سوي دي، چې د (کندهار د تاریخ په اوږدو کښې) سیمینار له پاره يې لیکلې وه او د دغه سیمینار د مقالو په ټولګه (۱ – ۵ مخونو) کې چاپ سوېده. دا سیمینار د ۱۳۸۳ ش کال د غبرګولي پر ۲۷ مه په کندهار کې جوړ سو او دوې ورځې يې دوام وکړ، د سیمینار د غونډو مشري د علامه رشاد مرحوم پر غاړه وه. (هوتک).

ده مسافران چي ورسي، ناروغه کېږي، په تېره بيا په مني کي (چي د ژړيو تبو وخت دئ). وايي په کندهار کي يو راز انګور سته چي هغه څوک وخوري، تبه يې نيسي. خو په شاوخوا کي يې داسي ځايونه سته ي ښه هوا لري. په کلا کي دننه يو څاه دئ، په وچه پربشه کي کيندلی، ځينو کسانو ويلي دي چي د دغه څاه په تل کي جاري اوبه ليدل سوي دي. اوبه چي ځني راوکاږي کله کله د ونو پاڼي پکښې وي.

د دغه ښار په شاوخوا کي اوغانان اوسي. کندهار ته څرمه ګرمسير واقع دئ. يو ښاريې زمينداور دئ چي د غور د پاچهانو د نيکه سلطان سوري پايتخت و. د بست ښار خورا مهم دئ. د باران په وخت کي خلک د بست زاړه ښار ته ځي او هلته سکې او ګېنې په لاس ورځي".

د مکتوبات سعدالله خان په ۵۵ مخ کي کښلي دي :-

"از تقرير احديانی ظاهر گرديد که عرض ديوار قندهار در بعض مواضع شانزده ذراع [5] است سه و نيم گز تا چهار گز. از اندرون بيرون جراست و ميانش خاکريز".

مير معصوم بهکري (۱۰۱۹ هـ ق مړ) پخپل تاريخ سندهـ (د ۱۰۰۹ هـ ق کال تاليف) کي د پير يکشنبې زيارت د لکي غره په لمن کي ښيي او دا زياتوي چي د کندهار خلک د يکشنبې په شپه په دغه زيارت کي ډېرې ډېوې لګوي ... د لکي غره لمن تر ګرېوانه په تاريخي آبداتو ډکه ده.

**چهل ځينه (زينه) :-**

په شمالي ورسک کي واقع ده. بابر مغول چي د ۹۲۱ هـ ق کال د کوچني اختر د مياشتي په ديرلسمه روځ د کندهار ښار ونيوه، د چهل ځينې دالان د ده په امر په نهو کالو کي جوړ سو او د بابر د کارنامو په باب هم د

---

[5] ذراغ : له څنګل څخه د لاس د منځوی ګوتي تر څوکي پوري.

دغه دالان په ډبرین دېوال کي لیکني وکیندل سوې. په ۱۰۰۴ هـ ق کال چي میر معصوم بهکري له هندوستانه څخه کندهار ته راغی څه نور کاریې په چهل ځینه کي وکړ او په دغه ډبرلیک کي یې د نوموړي بابر د مشر زوی همایون (۹۳۷ - ۹۴۷ هـ ق) او لمسي جلال الدین اکبر (۹۰۳ - ۱۰۱۴ هـ ق) نومونه او د نوموړي اکبر مغول د نیولو ملکونو نومونه زیات کړل ... میر معصوم لیکي :-

چهل زینه د بابر بادشاه په امر د ده د زامنو میرزا عسکري، میرزا کامران او میرزا هندال په توجه او اهتمام په نهو کلو کي هره ورځ د اتیا سنگتراشو په زیار په هغه غره کي چي په سرپوزه مشهور دئ، کیندل سوې ده. هلته یې یوه کتابه د بابر، میرزا کامران، میرزا عسکري او میرزا هندال په نامه لیکلې وه او قلمرو یې هم یوازي کندهار لیکلی و[6]، ځکه چي د همایون او اکبر نوم، چي د کندهار او کابل غوندي په زرو ښارونه یې تر تصرف لاندي وه، ثبت سوی نه و، نو ما خوشنویسان او سنگتراشان له بهکره راوغوښتل. کتیبه مي هلته ولیکل چي په هغه کي د همایون، اکبر او د ده د قلمرو اکثر ښارونه له بنگال څخه تر روهړي[7] او له کابل څخه تر دکن پوري پکښې ثبت کړه سول. څلور کاله مو کار پر وکړ[8]

هغه لیکني چي موهن لال په ۱۲۴۸ هـ ق کال ځني ضبط کړي دي، دا دي[9] :-

---

[6] وگ : تاریخ معصومي، ۲۸۰ مخ.

[7] روهړي د بحیرهٔ عرب پر غاړه د کراچي ختیځ ته پرته وه.

[8] تاریخ سندهـ، ۱۳۲ مخ.

[9] د کتیبو د نقل د یادانبتو په لوستلو کي ما خپل دقت کړی دئ. کوم ځایونه چي د (...) نخښه لري، معنا یې دا ده چي ما یې په لوستلو کي ستونزه درلوده. که تېروتلی وم، هیله ده لوستونکي مي تېروتني ته متوجه کړي. (هوتک).

## (۱) د میرزا کامران او میرزا عسکري کتیبه :-

"در تاریخ ۱۳ شهر شوال سال ۹۲۸ اعلیحضرت گردون سلطنت مملکت پناه معدلت شعار مکرمت آثار... بزرگ کامگار اعتضاد سلاطین گردون اقتدار ملاذ مناصر گیتی دار شهسوار مضمار عدل و احسان اعدال اگاهی زمین و زمان المنصور با انظار عنایت الله ابو الغازي ظهیرالدین محمد بابر بادشاه خلدالله ملکه و سلطنته فتح قندهار نمود و در همین سال امر عالی به بنای این رواق جهان نمایکه سر رفعتش به مهادات ایوان کیوان رسیده شرف نفاذ یافت و تمام آنرا به اهتمام فرزند همایونش محمد کامران بهادر که شرفات کاخ عدالتش ازین نه طاق درگذشته مفوض گردید در حسب اشارات علیه بی توقف مهندسان صاحب هنر و استادان ماهر دانشور در ساعت حسنه و طالع فرخنده اساس آن را انداخته و عمله و اهل کاران چابکدست که هر یک سرآمد کشوری و یگانهٔ مملکتی بودند وفاق صداقت و مهارت در احداث آن بظهور رسانیدند، چون شاهزادهٔ مشار الیه ایالت و مملکت قندهار را به برادر ارجمند سعادت یار مرحمت آثار معدلت شعار محمد عسکری بهادر طول عمره و افاض علی العالمین یده و احسانه تفویض نمود در ایام ایالت این شهزادهٔ عالیشان در نهصد و سی ... و از سپاس الطاف شهزادهٔ فیروز بخت که خیر منیرش مطرح انوار ابهت است در نهصد و پنجاه و سه این عمارت سپهر فرسا به اتمام رسید".

## (۲) د محمداکبر پادشاه کتیبه :-

"منقوش مرات ضمیر ارباب دانش میگرداند که مملکت قندهار در قبضهٔ تصرف آمای بندگان حضرت شهنشاه جم جاه فلک بارگاه خلافت پناه ظل الله جلال الدین محمد اکبر پادشاه غازی خلدالله ملکه بود، در حینکیه رایات کشورستانی جنت آشیانی محمد همایون بادشاه غازی طیب

الله ثراه و جعل جنت مثواه بمیامن توفیقات ربانی و تائیدات سبحانی تسخیر دهلی نمود دیار قندهار از تصرف این دودمان بیرون رفت و چون اقبال دولت شاهنشاهی اکثر اقالیم ربع مسکون را که طول آن از حدود سر اندیب و اړیسه و بندرگوراگات و گوربنگاله تا تهته و بندر لهري و هرمز؟ که مسافت آن قریب بدو سال راه میشود و عرض آن از کابل و کشمیر تا سرحد دکن که قریب یکنیم سال راه باشد مسخر گردانید در سنه هزار و دو (بست و قندهار) در حیطهٔ تصرف غلامان درگاه خلایق پناه در آمد امید که عنقریب اکثر اکناف عالم را از تائید بخت و اقبال حضرت ظل الهی و شاهزادهٔ کامگار گردون اقتدار شاه سلیم و شاه مراد و شاه دانیال و خسرو شاه و پرویز شاه مسخر اولیای یزدان گردد آمین یا رب العالمین. تمت فی سنه ۱۰۰۷ پرسیده نماند که در زمانیکه اعلیحضرت خاقانی حکومت قندهار را بنواب نامدارشاه بیگ خان کابلی مفوض فرموده بودند بندهٔ درگاه محمدمعصوم بن سید صفایی و بن سید شیر قلندر بن سید حسین زنجیرپا بن بابا حسن ابدال ...."

د چهل زینې رواق درې متره اوږده، چارپاک کم دوه متره بر او دوه نیم متره لوړواله لري. د رواق مخ د دواړو پایو پر برابري د دوو زمريو مجسمې پرتې دي چې له همغې غرنۍ توري ډبرې څخه جوړې سوي دي، او د دواړو سرونه وروسته ځني پرې کړه سوي دي. ۴۵ ځینې (زینې) لري. د منځ ځینې یې له چارپاک باندي یو متر څخه تر یو نیم متر پوري او د پای او سر دا یې تر چارپاک کم دوو متر پوري اوږدوالی لري. د ځینو (زینو) لوړواله تر نیم متر زیات دي. د زینو دواړو خواوو ته یې د اوسپني سیخان پورته سوي دي چې خلک ورپوري لاسونه نیسي. دا سیخان د اعلیحضرت امان الله خان په امر په ... کې جوړ سوي دي.

د قیتول د غره د آتشکدې یادونه میر معصوم په تاریخ سندھ کې کړې

ده. دغه آتشکده د لکي غره د قیتول پر سر ودانه وه او میر معصوم په (۱۰۰۹ هـ ق) کال کي وايي :-

"اوس لا هم دغه آتشکده ودانه پاته ده، دا آتشکده له خورا پلنو اومو خښتو څخه جوړه ده[۱۰]. د خښتو بر او اوږده یې دوه ګزه دي، یوه یوه لوېشت پنډي دي، په دې ودانۍ کي هیڅ ورانی پېښ سوی نه دئ، په دغه غره کي مخلصه (یو ډول کوچنی بوټی دئ چي نازکي پاڼي، سره او ژېړ بخون ګلان او سمي ضد خاصیت لري) کېږي".

ما (رشاد) چي دغه آتشکده درې شپېته کاله پخوا لیدلې ده، رشتیا هم یې دهلېزیې په پلنو اومو خښتو پوښلی و، خو د آتشکدې څه آثار چي پاته وه په هغو کي پخې خښتي کار سوي وې، دغه آتشکده د کندهار په دولتي کورنۍ کي د زردشتي دین جریان ښیي. د لکي غره په لمن کي د زاړه ښار جنوب لوېدیځ لور ته یو څاه سته چي په وچه تیږه کي کیندل سوی دئ.

په تحفة الکرام کي لیکلي دي :-

"له دغه څاه څخه کله کله له اوبو سره د ونو تازه پاڼي هم راخېژي او خلک ګمان کوي چي د دغه څاه پای له بهاندو اوبو سره اړیکي لري. دغه څاه ته چي زه (رشاد) ورغلی وم، چا ډبره ور وغورځوله، دوې دقیقې وروسته یې د مځکي سره د نښتلو ږغ زموږ تر غوږ سو. د لکي غره په لمن کي

---

[۱۰] په دې برخه کي علامه استاد رحمة الله علیه د کندهار مجلې د ۱۳۵۴ کال د سرطان - اسد د ګڼي د اتم مخ حواله ورکړېده، خو ځای یې تش دئ. ما ته اوس د دغه مجلې تر لاسه کول میسر نه دي، (م. هوتک).

علامه رشاد رحمة الله علیه د کندهار د زاړه ښار په باب د لوی استاد علامه حبیبي د هغو مقالو یادونه کړېده، چي د ۱۳۵۶ ش کال د زېري جریدې په ۱۲ - ۱۹ ګڼو کي خپرې سوي دي. دغه رازیې په همدې باب د لوی استاد هغه مضمون ته هم اشاره کړېده چي د ۱۳۲۲ هـ ش کال د کابل مجلې د عقرب په ګڼه کي خپور سوی دئ. دې ماخذنو ته اوس زما لاس نه رسېږي، (م. هوتک).

د زاړه ښار په لوېديځه برخه کي د باران د اوبو د ذخيرې له پاره دوه لوی پاخه حوضونه هم سته. يو چي ډک سي اوبه يې بل ته راځي. د زاړه ښار د نارنج مانۍ هم له تاريخي بناوو څخه ده چي کنډوالي يې اوس له خطره سره مخامخ دي.

د قيتول جنوب ته د لخشک لاندي د سيد حسن زنجيرپا د زيارت په شاوخوا کي شپږ اووه ډېرليکونه سته چي له (۱۰۰۴ هـ ق) کال څخه تر (۱۰۰۷ هـ ق) کال پوري د مير معصوم په امر کيندل سوي دي.

د يوناني مدنيت زاړه شيان د کندهار د زاړه ښار له کيندلو څخه په لاس راغلي دي.

## د کندهار ډبريني کتيبې :-

د کندهار د زاړه ښار جنوبي ډډي ته د غره په لمن کي سوری تيږي ته نژدې د سيد حسين زنجيرپا رحمة الله عليه له هديرې څخه تقريباً سل گامه لوړ په غره کي د دوو خونو (يا دوې صفې) دېوالونه ولاړ دي. د دې خونو براوا اوږده تقريباً اووه گامه دي، په لوړه (لومړۍ) خونه کي يوه کتيبه د غره پر ډبره ليکل سوې ده، داسي :-

"قال امير المؤمنين رضي الله عنه ... جل من لا يموت (منه) ذكر الموت جلا القلب ليس الشيب في العمر بقية العمر لا قيمت لها لا غم للقانع

دنيا است مثال رنگ و بويى
کس را نرسد جـــز آرزويى
تو بى اثرى زدرو چـــون کـوه
و زدرد منم چو کـــوه انـدوه

بتاريخ روز عيد قربان تعمير اين بناء نمود سيادت پناه مير محمد معصوم نامى بن سيد صفايى ترمذى سنه ۱۰۰۵ هـ".

په دوهمه خونه کې چې لږ کښته واقع ده، پنځه کتیبې لیکلې دي :-

لومړۍ کتیبه :-

قال عیسی علیه السلام : (الدنیا قنطره فاعبرو ولاتعمروها) قال امیر المؤمنین رضي الله عنه من اکثر ذکر الموت رضي من الدنیا بالیسر (منه) العاجز من عجز عن سیاست نفسه المدح ذبح (قیل) الدنیا ساعه فاجعلها طاعه (قیل) غفلته الاحیا اکثر ام حسره الاموات (قیل) عجبت لمن جرا من مجاری البول کیف یتکبر (قیل) الادب یسترقبح النسب.

در عهد بندگان حضرت خلافت پناهی شهنشای ظل الهی جلال الدین محمد اکبر پادشاه غازی خلدالله ملکه ابدا ایالت قندهار بنواب شجاعت شعار شاه بیگ کابلی مفوض شود اینجا تعمیر نموده شد :-

نامی بکشا چشم بصیرت دریاب
بنیاد زمانه همچو نقش است بر آب
با تو گویم که حاصل دنیا چیست؟
بیداری یك زمان و باقی همه خواب

فی سنه ۱۰۰٦ میمنت تحریر یافت"

**دوهمه کتیبه :-**

قال علی رضی الله عنه : طاعة الله غنیمه (منه) خیر المال مانفق فی سبیل الله (منه) غنم من سلم (منه) عقیب کل یومٍ لیل (منه) رسول الموت ولاده.

(نامی) زفلك دوش دلم کرد سوال
کز رفته و آینده بیان کن احوال
گفتا چه خبر زرفتگان نیست اثر
آینده چو رفته دان چی می پرسی حال؟

بفرمودهٔ سیادت پناه میر معصوم بن سید صفایی اباً و بن میر سید شیر قلندر ابن سید حسین زنجیرپا جداً رحم الله ...

**در پیمه کتیبه :-**

جام از می عیش تلخکام افتاده
این مجلس باده ناتمام افتـــاده
بنگر ز حریفان می و جام افتاده
..............................

قایله و کاتبه محمد معصوم بن سید صفایی بن سید مرتضی بن[11] سید ... بن میر سید علی بن میر سید عماد بن میر بزرگ بن[12] سید ... الترمذی اصلاً و البکری موطناً و ان
در حینی که بکومک قندهار تعین شد.

**څلرمه کتیبه[13] :-**

خدمت حقایق پناه معارف دستگاه میر سـید حسین زنجیرپـا صاحب کشف و کرامت بوده و نسبت اراده و خـواهر زادگی بقطـب الاقطاب بابا حسن ابدال رحمة الله علیه داشت مرقد معطر ایشان در جوار بابا بـوده، بمرور ایام مقبرهٔ ایشان ... مرخلایق واقع شد، گوئیا ازین امر متاذی؟ شده ... بنا بران ازان مکان باین سرمنزل انتقال واقع شده.

---

[11] امام الدین (تاریخ سنده مقدمه).

[12] بن سید محمد بزرگ، (تاریخ سنده – مقدمه).

[13] څلرمه او پنځمه کتیبه د سید حسین زنجیرپا په شرح حال کي هم ثبت سوي دي.

## پنځمه کتیبه :-

"این مزار فایض الانوار میر سید حسین زنجیرپا ابن سید عین ابن میر شمس الدین بن سید علاوالدین بن سید حسن بن سید حسین بن سید رضایی بن سید محمد بن سید احمد بن سید علی بن سید حسین بن سید محمد بن سید هارون بن سید محمد بن سید جعفر بن سید محمد بن سید احمد بن سید هارون بن سید موسی کاظم بن امام جعفر صادق رحمة الله علیه بن امام زین العابدین بن امام حسین بن حضرت علي رضي الله عنه".

د سید حسین زنجیرپا د زیارت شمالي طرف ته تقریباً پنځوس گامه لیري یو ووړ مسجد هم سته. د محراب کښته نیمی یې له یوې کیندلي ډبرې څخه جوړ سوی دئ. پر دې ډبره هم لیکني سته. گمان کاوه سي چې دا مسجد هم د میر معصوم له ودانیو څخه به وي.

## د نارنج ماڼی :-

د اقبال نامۀ جهانگیری په ۱۷ مخ کې لیکلي دي :-

په ۱۰۱۵ هـ ق کال چې حسین شاملو د هرات صفوي حاکم د فراه او سیستان د حاکمانو په مرسته پر کندهار یرغل وکړ، د کندهار حاکم شاه بېگ کلابند سو. د کندهار په ارگ کې چې غلیم د کلا له دباندي څخه لید، د خپلي ناستي له پاره یې ځای ترتیب کړ.

## سلطان ویس :-

د کندهار مشاهیر په کتاب کې د تاریخ افغانستان در عصر گورگانیان هند ۲۰۶ مخ په حواله لیکلي دي :-

"علاوه بر دروازه هاییکه ابوالفضل ذکر میکنند نواب صمصام الدوله دروازۀ دیگری را هم بنام (ویس قرن) نام میبرد. در سال ۱۰۵۸ هـ که قشون

ایران قندهار را محاصره کرد شادی خان محافظ این دروازه بود (مآثرالامراء ۲/۶۶۱ مخ)، چون تاکنون هم متصل طرف شرقی شهر کهنه قندهار مزاری بنام (سلطان ویس) موجود است ...".

د سلطان ویس خانقاه د زاړه ښار ختیځ لورته واقع وه چې اخلاص مندانو یې ښه زیارت پر جوړ کړ او ډېرین تاریخي لوښي یې پکښې کښېښوول. وایي دا ډېګونه د امیر امان الله په وخت کې د کابل موزیم ته انتقال سول. د سلطان ویس د ژوند زمانه د غزنویانو دوره ښوول سوې ده[۱۴].

## د کندهار ډبرین دېګ[۱۵] :-

هغه ډبرین دېګ چې د سلطان ویس بابا پر زیارت پروت و[۱۶]. په ۱۳۰۶ هـ ش کال کې اعلیحضرت امان الله شاه غازي د کابل موزیم ته د احمدشاه بابا د مقبرې له غالیو سره واستول.

د دې دېګ شکل مجوفه نیم کره ده. چې له دننه څخه مستدیره او له دباندې څخه مضلع ده. د دېګ له ژیو څخه تر (۶) انچو پورې ۲۴ ضلعې لري. کښتنی برخه یې څه اوږده کې ده. پر دباندني برخه یې په شپږو منطقو کې دا لیکلي دي :-

د دېګ د ژۍ پر دایره په ثلث خط لیکلې دي :-

... علیه الصلوه و افضل من التحیات ... در ایام خجسته فرجام ...

---

[۱۳] د کندهار مشاهیر، ۹۶ مخ. په یاداښتو کې علامه رشاد مرحوم د سلطان ویس حواله پر نوموړي ماخذ ورکړې ده. ما له دغه ماخذ څخه پخپله تاکنه دغه مطالب رانقل کړل. (هوتک).

[۱۵] د ډبرین دېګ په باب مطالب د یاداښتو له دوهم توک ۲۲۶ ۲۳۱ مخونو څخه رانقل سول. (هوتک).

[۱۶] د کندهار د زاړه ښار یوه دروازه د ویس قرن په نامه وه، (مآثرالامراء، ۲/۶۶۰ مخ).

توفیق عالی یافت ... جمال سلطنت و مملکت ... افضل الاهالی مرجع الاکابر والاعالی ... شجاع ...

## لومړی منطقه :-

... حضرت باری خواجه ایوب انصاری و بعد ازانکه حضرت واقف مذکور ... من له الولایت ... این را ساخته و هم از برای اولاد وقف نموده ... متوالی و ... ظر ... آنحضرت وقف کرد حیرت واقف بربقاع مذکوره و بر مدرسه که والد واقف مذکور بنا نموده و محاذی این مدرسه مذکوره وقف لازم کرد ... واقع در ولایت قندهار موسوم به (سنگحصار) در حالی که حق و ملک وی بود به بیع صحیح شرعی خریده بود از اولاد جناب امیر مرحوم نظام الدین حینیکه سلطان ملازم مغفور شاهرخ میرزا بمبلغ هزار و پانصد مثقال نقرهٔ سره مضروبه - همگی و تمامی قریه واقع در ولایت مذکور موسوم به (ده روح آباد) جناب واقف مذکور ... به بیع صحیح ... مثقال نقره ازوجه حلال ضرب کرده ... بعضی آن ... همگی و تمامی (خنجکک).

## منطقهٔ دوم :-

که ازهمین نهر مذکور جناب واقف مذکور آب بدانجا برده احیا نموده وهمگی و تمامی (منکلجه)[۱۷] که جناب واقف مذکور از ورثهٔ امیر جلال الدین فیروزشاه که ملازم آستان آنحضرت مغفور مذکور[۱۸] بوده به بیع صحیح شرعی خریده.

همگی و تمامی این ده قناتی موسوم به (دهک) واقع در میانهٔ میمند

---

[۱۷] بنايي سكلچه (سكيلچه) وي.

[۱۸] مطلب يې بنايي شاهرخ ميرزا وي.

و کوشک نخود

همگی و تمامی قنات چهل گزی که قریب کوشک نخود واقع است

همگی و تمامی اعتاقات چهار قطعه باغ در کل این قریه قطعه (اعلصر) و قطعه (ده زنگی آباد) و قطعه (ده میخوش) و قطعه (در هموال)

و همگی و تمامی اعتاقات که واقف مذکور بنا کرده - هشتاد و شش در دوکان وقاع در بازار "اوشوری" بدرون بلدهٔ قندهار بقرب مدرسهٔ مذکور جانب جنوبی مدرسه -

و منجمله شانزده باب دکان متصل راهگذر و دیگر جانب غربی بازار مذکور - و هفت در دکان جانب شرقی بازار مذکور و بیست و هفت در جانب غربی بازار مذکور بر بیست و چهار در و نوزده ستون

همگی و تمامی اعتاقات حمامی واقع در چهار سوق بازار مذکور و همگی و تمامی کاروانسرای واقع در اندرون بلدهٔ مذکوره - حدود جمله موقوفات و موقوف علیها در وقفیه مسطور است و جمیع آنچه از موقوفات باید شمرد از حدود مرافق و حقوق و آداب مرکبه حمام مذکور و کل از قبیل موقوف فیها وقفی صحیح و صادق و جازم بحیثیت که قیراط و حبه از او...

## منطقهٔ سوم :-

بخشیده نشود که بهیچ وجهی او وجوه ملک کسی نشود و جناب واقف مذکور خزاین وقف را از برای فقراء و مسلمانان کرده اند و شرط کرده اند واقف مذکور که متولی بقاع موقوف علیها و این موقوفات مذکوره خود باشد علی سبیل الاستقلال تا مادام الحیواة هر نوع تصرفی خواهد کند و شرط کرد جناب واقف مذکور که بعد از وفات وی از اولاد ذکور وی بطناً بعد از بطن هر کدام اعلم و اصلح باشند - متولی این موقوفات وی باشد. اگر در علم و صلاح متساوی باشند اسن متولی باشد اگر از اولاد ذکور وی

هیچ بطن نماند از اولاد اناث بهمین قانون متولی باشند - و اگر از اولاد جناب واقف کسی نماند هر کس مدرس مدرسه باشد متولی باشد - و چون متولی را اولاد باشد حق المونه عشر گیرد و از غیر اولاد بقدر اجرت عمل گیرد و شرط کرد جناب واقف مذکور که موقوفات را باجازت بمیغلیه؟ بدهند و انچه ازین موقوفات حاصل شود اولاً بعمل ضروریه و مرمت این موقوفات و موقوف علیها باشد از حصیر و فرش و روشنایی و غیر ذلک و انچه ازین وجوه فاضل آید از انچه متولی برین نماید اذن برای آن هر پنج دینار بوزن یکمثقال سکه نقره باشد.

**منطقهٔ ۴ :-**

وگندم سفید آب تیر ماهی کشت جید بسنگ بازار قندهار هر خرواری چهل من بر آید باوظایف اخند دیندار و مدرس عالم که در هر هفته پنج روز اول بدرس و مذاکره علوم شرعیه و مقدمات آن اشتغال نماید هر مدرس هر ساله نقد دو هزار و حنطه چهل خروار و شعیر بیست خروار و در معید هر معیدی نقره چهار صد و هشتاد دینار و حنطه پانزده خروار اجورهٔ درس دوازده نفر اعلی آن چهار نفری هر نفری نقده سیصد و شصت دینار و حنطه ده خرورا و اوسط هر نفری نقده دویست و چهل دینار و حنطه هفت خروار و ادنی چهار نفر آن هر نفری نقده یکصد و هشتاد دینار و حنطه پنج خروار و یک امام عامل صالح که در مدرسه بامامت صلوه خمسه قیام نماید هر ساله سیصد و شصت دینار و گندم ده خروار یک موذن عالم اوقات صلوه نقد یکصد و هشتاد دینار و گندم پنج خروار این وظایف مدرسه بر والد حضرت واقف مذکور اول یک مدرس و طلبه معید و یک خادم به ... در مدرسه حاضر باشند و بهمان دستور وظیفه گیرند و وظایف ارباب وظایف مقبره مصدر شود - حفاظ و امام هفتصد و بیست دینار و حنطه هشت خروار...

پنج نفر هر نفری نقده چهار صد و هشتاد دینار حنطه چهار خروار و موذن
نقده صد و بیست دینار حنطه سه خروار

**منطقهٔ ۵ :-**

شرط کرد حضرت واقف مذکور که یکنفر از طلبه مدرسه خاصةً کتابدار
مدرسه مذکوره بوده باشد و وظیفه بدستور دیگر طلبه بگیرد - و هر کس از
طلبه ها باید بیتوته کند و هر کس بیتوته نکند مدرس مدرسه بقدر آنچه
بیتوته نکرده از وظیفه وی کسر نماید

وظیفه خادمی که در سقاوه مدرسه مذکوره بآب کشی قیام نماید
بدستور خادم مدرسه مذکوره باشد

وظیفه رواتب غلور خانه برین موجب است :-

وظیفه یکنفر شیخ صالح متدین که از غلور خانه خبردار بوده
بمستحقان برساند هر ساله نقده سه صد و شصت، غله ده خروار وظیفه طباخ
دویست و چهل دینار - وظیفه یکنفر مرد خادم سیصد دینار رواتب غلوریکه
در شش ماه زمستان خواهد بود بهاء :-

هر روز گندم یک خروار - گوشت چهار من - نمک دو من - بصل دو
من حمص دو من - جذر و شلجم دو من

و در شش ماه تابستان ... هر روز یک خروار نان به مستحقان
برساند و هیمه آنچه باید بخرند - و در هر سه ماه پنج من دوشاو
یکمن روغن و یکمن ارد حلوا پزند و ده من ارد نان پخته بمستحقان
رسانند".

په دېگ کي دننه ژی ته نژدې یو ځای دا کیندل سوي دي :-

کرد این چشمه پر ز شربت قند
حضرت شهریار خضر مآب

ساخت تاریخ آن بدین تقریب

کاتب العبد (جای شربت آب)

۹۱۹ ھ[۱۹]

## د اشوکا کتیبه په کندهار کې :-

د زاړه ښار په غره کې چهل زینې ته نژدې پر یوه دبره باندې د اشوکا (۲۷۰ — ۲۳۲ ق م) د هندوستان د موریایې پاچا یو فرمان په دوو ژبو یونانې او آرامې او دوو رسم الخطونو (یونانې ژبه او لیکدود، آرامې ژبه او لیکدود) کښلی دئ. یونانې برخه یې چې لوړه لیکلې ده دیارلس نیمې لیکې (کرښې) ده او آرامې برخه یې تر هغه لاندې اووه نیمې لیکې ده. دا کتیبه په ۱۳۳۷ ھ ش کال پیدا سوې ده. د کتیبې اوږده ۵۵ سانتې متره او برېیې له ۴۵ څخه تر ۵۰ سانتې مترو پورې دئ. په دغه کتیبه کې د پیوداسس لقب چې د آشوک لقب و راغلی دئ. د دې کتیبې مضمون اخلاقې دئ. نصیحت دئ. د ښکاریانو څخه غوښتنه سوې ده چې د حیواناتو له آزار او وژلو څخه لاس واخلې. د دغې کتیبې ... برخه هرماته لوستې ده او دی وایې :-

دا خورا فصیحه کتیبه ده.

علامه حبیبې لیکې :-

غالباً دا کتیبه په ۲۵ ق م کې لیکل سوېده.

د دې کتیبې د یونانې برخې ژباړه داسې سوېده :-

"پیوداسس پاچا لس کاله کېږي زیار ویوست چې سړیو ته اخلاقې اصول وروښیې او له هغه وخته راهسې یې د نړۍ خلک لا نېکمرغه او لا دینداره کړل، پاچا د حیواناتو له وژلو ډډه وکړه، نور خلک یې هم د

---

[۱۹] شمارهٔ ۵۴ سال ششم، طلوع افغان، تاریخ ۱۴ جوزا ۱۳۰۶ ش.

حیواناتو او ماهیانو له ښکاره راگرزول. خلکو د مور و پلار او مشرانو درناوی وکړئ او په دغه کړو به تر دې وروسته د لا ښه ژوند تبنتنان سئ[۲۰].

میخائیل بگلوبوف د کندهار د آرامي کتیبې تر عنوان لاندي د آسیا او افریقا د هیوادو ژبپوهنه او تاریخ نومې رساله کي لیکلي دي :-

په ۱۹۵۸ ع کال په افغانستان کي کندهار ته نژدې یوه کتیبه پیدا سوله چي په دوو ژبو یوناني او آرامي پر یوه پرښه لیکلې سوې ده، یوناني متن په څورلسو او آرامي متن په اتو لیکو (کرښو) کي ځای سوی دئ. آرامي متن یې (لیوی دیولاوید) او (التخوم دیاپون سومیر) ولوست او اېرانی کلمې یې بنونیست وڅېړلې. د دې کتیبې د آرامي متن لومړی لیکه داسي ده :-

Snn X ptytw ‘byd zy mr’n prydras ‘mlk qsyt’ mhqst

د کندهار کتیبه لومړی کتیبه ده چي په افغانستان کي په یوناني او آرامي لیک پیدا سوېده[۲۱].

آشوکه د بندوسار (۲۹۸ – ۲۷۴ ق م) زوی د چندراگوپتا موریا (۳۲۲– ۲۹۸ ق م) لمسی و. د ده لقب پیاداسي (پریه درشن) و. دا لقب د چندراگوپتا له زمانې څخه په دغه کورنی کي باب و. د پیاداسي معنا (نېکدل) ده. په اشوک اعظم کي یې لیکلي دي چي اشوکه په ۲۷۰ ق م کي پاچا سوی او په ۲۳۲ ق م کي مړ دئ خو په تاریخ مگدهه ۳۹ مخ کي یې بیا د اشوکا د پاچا کېدلو کال ۲۷۱ ق م ښوولی دئ. د موریاانا نوم یې موریا و.

د بودهیایي مبلغینو څخه مجهان تکه کشمیر او گندهارا ته ولېږل سو چي اتیا زره تنه یې بودایان کړل او د هرم له کشیته د هندوستان د پولي

---

[۲۰] تاریخ مختصر افغانستان، ۱/۵۱ مخ.

[۲۱] افغانستان در پرتو تاریخ، ۱۰۱ مخ.

لوېديز ملکو ته ولېږل سو چي اووه دېرش زره تنه يې بودايان کړل. کندهار غالباً د دهرم له کشيته د تبليغ په ساحه کي و[۲۲]. په کندهار کي د آشوکا لومړی ډبرليک په ۱۹۳۷ ع کال موندلی سوی دئ. د کندهار مجلې د ۱۳۵۱ هـ ش کال د غبرګولي په ګڼه ۳ مخ کي يې ليکلي دي :-

ختيځ پوه دانيال شلوم بورژې په يوه ځانګړې رساله کي په کندهار کي د آشوکا د دوهم ډبرليک متن ژباړلی دئ. دی وايي :-

د کندهار په زاړه ښار کي د آشوکا (۲۷۰ – ۲۳۲ ق م) دوهمه کتيبه په ۱۹۵۴ ع کال موندل سوېده، ۲۲ ليکي ده. خو افسوس چي د سر او پای له خوا نيمګړې ده. دا کتيبه د دوولسم فرمان له منځه څخه پيل او په ديرلسم فرمان پای ته رسېږي. په دې ډبرليک کي د کالنګا د جنګ قصه او د بودايي دين پندونه راغلي دي.

د آشوکا دغه دوهمه کتيبه د کابل ملي موزيم ته راوړل سوېده او دلته خوندي ده. د کالنګا د جنګ په باب په دغه کتيبه کي ليکل سوي دي :-

د کالنګا جنګ زما د پاچهی په اتم کال پېښ سو. په دغه جنګ کي پنځلس لکه کسه ونيول سول. يو لک تنه ووژل سول.

په هندوستان، پاکستان او پښتونستان کي د اشوکا مهاراجا (۲۷۰- ۲۳۲ ق م) څورلس کتيبې پيدا سوي دي.

۱ - ۷ - ۸ - ۱۱ - ۱۳ په شهبازګړی (پښتونستان) کي.

۲ - ۳ - ۴ - ٦ - ۱۲ - ۱۴ په ګرنار کي.

۵ په مانسهره (اوسني پاکستان) کي.

۹ - ۱۰ په کالسي کي.

د آشوکا دوې کتيبې چي په کندهار کي پيدا سوي دي، له دغو دوو کتيبو سره د اشوکا د موندل سوو کتيبو شمېر ۱٦ ته رسېږي. د آشوکا نوري کوچني

---

[۲۲] اشوک اعظم، ۴۸ مخ.

کتیبې هم سته. د هند په کلنګ نومي ځای کې هم دوې کتیبې سته:-

الف – په دهاولي کې.

ب په جوګهر کې.

## د غارو کتیبې :-

۱. نګرود
۲. کهالاتینکا
۳. کهالاتینکا

## کوچنی دبرلیکونه :-

۱. برهماګرهی
۲. سهسرام
۳. روپ ناتهه
۴. بهیرو

## کوچنی ستوني کتیبې :-

۱. رمنی دي
۲. نګلوا
۳. سارناتهه
۴. سانچی
۵. اله آباد
۶. اله آباد[۲۳]

---

[۲۳] د یادابنتو دغه برخه علامه مرحوم د ژوند په وروستیو شپو ورځو کې کښلې ده، په دغه وخت کې یې د سترګو دید ېخي کمزوری و. ځکه نو توري یو د بل پر سر ځني لیکل سوي دي. که د نومونو په ثبت کې تېروتلی یم، هیله ده لوستونکي مي وبخښي، (هوتک).

## نادر آباد :-

افشار نادر چي په ۱۱۵۰ هـ ق کال د کندهار زوړ ښار کلابند کړ دا کلابندي یو کال اوږده سوله. په دغه موده کي نادر د کندهار د زاړه ښار ختیز لور ته یوه کلا په بندیانو او بېګار ودانه کړله چي نادر آباد نومېدله.

په ۱۱۵۱ هـ ق کي چي يې د کندهار زوړ ښار ونیو کلا او ودانی يې ونړولې او خلک يې نادرآباد ته راوکوچول. د نادر د ودان کړي ښار د کلا د دېوالو خورا لوړي نخښي د شیر سرخ په باغونو کي پاته دي. دا ښار له ۱۱۵۱ څخه تر ۱۱۶۹ هـ ق پوري اتلس کاله ودان و. احمدشاهي ښار چي ودان سو، نادرآباد د پښتنو د قهر په لمبو کي لولپه سو او د نادر د ظلمونو کسات يې د ده له ودان کړي ښاره څخه واخیست.

د کندهار د زاړه ښار د کلا په باب د بیان واقع مولف کښلي دي :-

الحق (قندهار) عجب حصن حصینی داشته است که در هنگام تسخیر آن حسب الامر سلطان (نادر) مسمار گردیده و ویرانهٔ مطلق ساخته اند و در جنب آن حصار گلین [۲۴] بنا نهاده موسوم به نادرآباد.

یعنی عوض مصـــــحف بر بط
سگ نشیند بجای کیمیایی [۲۵]

---

[۲۴] گلین = (د خټو).

[۲۵] وګ : بیان واقع، ۵۸ مخ.

علامه رشاد رحمة الله علیه د زاړه ښار د افغانستان د لرغون پېژندني د لومړي کال په دوهمه ګڼه کي د (تحقیقات باستانشناسی در شهر کهنهٔ کندهار) په نامه د سید اکبر سکندرپور مضمون ته حواله ورکړېده او ځای يې تش پرې ایښی دئ. دغه ماخذ ته زما لاس اوس نه رسېږي، (م. هوتک).

## احمدشاهي ښار :-

د کندهار د احمدشاهي ښار تاداو د ۱۱۶۹ هـ ق کال د دوهمې خور په اوله د یکشنبې په ورځ د لوی احمدشاه بابا رحمة الله علیه په لاس اېښوول سوی دئ[1]. د احمدشاهي ښار کلا مستطیل شکل لري، لنډې خواوې یې (چې شمال او جنوب ته پرتې دي) هره ضلعه یو زرو سل متره اوږده وه او اوږدې ضلعې یې (چې شرق و غرب ته پرتې دي) هره ضلعه یو زر و اته سوه متره کېدله چې تووله محیط یې پنځه زره اته سوه متره سي[2].

پخوانیو مساحان د احمدشاهي کندهار ساحه دوولس غولبې بلله، د دوی په حساب په هره غولبه کي دوولس خرواره تخم کرل کېدی او جریب پنځه منه تخمرېز و. د دغه حساب له مخي نو د احمدشاهي کلا پر دوو زرو اتو سوو اتیا جریبو ځمکي غېږ راګرزولې وه.

د احمدشاهي کلا دېوال اته متر لوړ و. د کلا د دېوال پسور په تاداو کي شپږ متره او د دېواله پر سر ۴،۲ متره و.

د آریانا دائرة المعارف د اووم ټوک په پنځه زره اته سوه څلور څلوېښتم مخ کي یې کښلي دي :-

د کندهار د احمدشاهي ښار د کلا دېوال په پساره پنځه متره او په جګواله له اوو څخه تر لسو مترو پوري و. د کلا پر شاوخوا خندق راګرزېدلی

---

[1] تاریخ احمدشاهی ۵۴۸/۱ مخ. په ځینو کتابو کي چي د کندهار د احمدشاهي ښار بنسټ اېښوول په ۱۱۷۴ هـ ق کال بلل سوي دي، سمه خبره نه ده. یوه ښتانه شاعر د دغه تاداو اېښوولو تاریخ ماده داسي موندلې ده : "دا ښار احمدشاهي کندهار دئ" = ۱۱۶۹. ما (هوتک) ته دغه ښتون شاعر پخپله علامه رشاد رحمة الله علیه ښکاري.

[2] د کندهار د پخواني ښاروال لعل محمد خان کاکړ یادابښت : د "ایمپایر درانیه" په ۵۶ مخ کي د احمدشاهي کندهار د کلا محیط پنځه نیم کیلومتره، د G.Firster د A Journy ... په ۱۰۲/۲ مخ او د Charles Masson د Narrative of ... په ۲۷۸ مخ کي درې میله، د موهن لال کشمیري د Travels in ... په ۳۰۲ مخ کي نه زره ګامه کښلې دئ.

و، چې درې متره ژور و[3]. ښار مستطيل شکل لري، چې اوږده يې شمالاً جنوباً ۲۱۳۳ متره او پسور يې شرقاً غرباً ۱۳۸۷ متره ده. ساحه يې تقريباً ۲۹۵۸،۵ مربعو کيلومترو په اندازه ده.

خليل الله خان د (بناى شهراحمدشاهى قندهار) تر عنوان لاندې د آريانا مجلې د دوهم کال په يوولسمه گڼه لسم مخ کې کښلي دي :-

د احمدشاهي ښار د جوړولو پيل د ۱۱۶۹ هـ ق کال د برات په مياشت کې وسو او د ښار د کلا اوږده ۱۹۱۵ گزه او پسور يې ۱۰۶۰ گزه و. د کلا جگوالى له مځکې څخه تر کنگرې پورې لس گزه، د کلا محيط ۶۳۲۵ گزه و. خليلي خپل ماخذ نه دئ ښوولی.

دغه ښار شپږ دروازې درلودې :- (تر ټولو کوچنۍ او مستقيمه)

۱. د عيدگاه دروازه. د شمال لوري ته

۲. توپخانې دروازه او هرات دروازه د غرب لوري ته

۳. ښکاپر دروازه د جنوب لوري ته

۴. کابل دروازه او برو دروازه د شرق لوري ته

۵. هرات دروازه

۶. د برو دروازه

په (بيان قندهار امان الديار) ۱۰ مخ کې د کندهار د احمدشاهي ښار په باب ليکلي دي :-

شرقي طول البلد ۶۵ درجې او ۴۳ دقيقې.

شمالي عرض البلد ۳۱ درجې او ۳۷ دقيقې.

ښار تقريباً مربع دئ او فصيل يې څلور ميله لري. لوړوالى يې دېرش، پلنوالى يې پنځلس او ژوروالى يې د خندق لس فوټه دئ. څلور بازاره په

---

[3] مگر زما (رشاد) په ياد دي، چې دغه خندق د توپخانې شابرج په برخه کې تر پنځو شپږو مترو زيات ژور و.

منځ کي د ښار یو و بل سره پرې کوي په موضع د تقاطع گنبده ولاړه ده، دا پراخ بازارونه چي دواړو خواته ونې لري ښار په څلورو محلو وېشي، دراني، غلزيايي وکاکړي او پاړسيوان. حصار او استحکامات يې د ختهو جوړ سوي دي او دخول په ... له څلورو دروازو کېږي. کابلي، هراتي، ښکارپوري او عيدگاه. څلور بازارونه سم پر دې ورو تېرېږي. دوه نور کوچني ورونه هم سته، توپخانه او بر دراني چي په نيمه مغرب کي د ښار واقع دي ...[۴].

محمدحيات خان په حيات افغاني کي د کندهار د ښار په باب ليکلي دي :-

کندهار په سنسکريت کي گندهارا نومېده له کابله تقريباً ۲۰۰ ميله ليري دئ، جنوب ختيز خواته. د سمندر له سطحي څخه درې نيم زره فوته جگ دئ اومه کلا او خندق يې پر ښار راگرزېدلې ده. تقريباً شپېته زره تنه پکښې اوسي. د ارگ کلا د ښار په شمالي برخه کي ځای لري. چارسويې د پنځوسو گزو په پلنوالي پوښلی دئ، کانونه يې :-

(۱) د سرو زرو کان :- د کوتل مورچې او شاه مقصود تر منځ. ډېره اعلی طلا يې ده. خو توليد يې لږ دئ[۵].

(۲) د پادزهر کان :- په خاکرېز کي د شاه مقصود د زيارت ... خوا ته واقع دئ. شاه مقصودي تسپې له دغي ډبري څخه جوړېږي.

د کندهار د احمدشاهي ښار په باب الفنسټون پخپل کتاب د کابل سلطنت بيان ۱۱۶/۲ مخ کي ليکلي دي :-

"د کندهار اوسنی ښار احمدشاه دراني په ۱۷۵۳ يا ۱۷۵۴ کي جوړ کړ. احمدشاهي ښار يې ونومه او د اشرف البلاد لقب يې پر کښېښوو. په رسمي

---

[۴] د (بيان قندهار امان الديار) خطي نسخه د علامه رشاد رحمة الله عليه په کتابتون کي خوندي ده او علامه مرحوم د کندهار مجلې د ... کال په ... گڼه کي معرفي کړېده، (م. هوتک).

[۵] په دې برخه کي وگورئ د همدې اثر د "کان طلا" تر عنوان لاندي مضمون.

دفتروکي او د دربار په ژبه دغه ښار تر اوسه هم په همدغه لقب يادېږي، خو په خلکو کي د کندهار نوم ډېر ويل کېږي. که څه هم د دارالقرار په اضافه توب سره يې خپل وزن يو څه بايللی دئ".

که دا د الفنستون خپل نظر نه وي نو د دارالقرار نوم تر اشرف البلاد دمخه دئ. د دارالقرار لقب ميرزا وحيد قزويني (۱۱۲۹ هـ ق مړ) په عباس نامه کي له قندهار سره راوړی دئ.

په تاريخ احمدشاه (د رضواني منتخبات ۳ مخ) کې کښلي دي :-

بابا پخپله زمانه کي د کندهار نوم اشرف البلاد احمدشاهي کښښوو. ډېر يې آباد کړ د گدۍ ځای يې و.

د کندهار له پاره د دارالامان لقب فقط په يوه کتاب کي ما ليدلی دئ چي په ۱۳۰۴ هـ ق کال د کندهار په باب د يوه نامعلوم مولف لخوا ليکل سوی دئ.

د کندهار د وورښت اندازه د کاله ۱۵ سانتي متره، په دوبي کي تودوخه کله کله د سانتي گراډ تر ۴۵ درجو پوري رسېږي. په ژمي کي د حرارت درجه کله کله تحت الصفر ته هم راکښته کېږي.

## میر معصوم بهکري کندهاري :-

د میر معصوم بهکري الحسیني تخلص (نامي) دئ، د سید صفایي زوی د سید مرتضی لمسی دئ، د سید شیر قلندر کورنۍ ته یې نسبت کېږي. نامي د پارسي ژبي ښه شاعر او لیکوال و. پر شاعرۍ سربېره ښه خطاط، کتیبه لیکونکی، منشي او مؤرخ هم و. په طب کي یې هم مطالعه درلوده او مؤلفات پکښې لري. د دوی اصلي وطن د کندهار ښار په درې کروهي کي واقع دئ او د شېر قلندر د زیارت تولی د نورو سیدانو په ګډون د دوی د کورنۍ په لاس کي ده. د میر معصوم نیکه سید مرتضی هم په کندهار کي ښخ دئ. سید صفایي له کندهاره بهکر ته ولاړ. د بهکر حاکم سلطان محمود ونازاوه او هلته یې مېشت کړ او د سیوڼ له سیدانو سره یې خپښي ور وکړه. درې زامن یې پیدا سوه چي میر معصوم یو له هغو څخه دئ. بل یې میر ابوالقاسم دئ چي میر شجاع یې زوی دئ او بل یې میر محمدفاضل دئ، چي یوه لور یې پاته سوه، میر شجاع د ده زوم و. میر محمد فاضل په هندي ژبه اشعار ویل او د خلکو ډېر خوښ وه. د سکهر په کلي کي یې د خپل کور مخي ته مسجد جامع جوړه کړې ده چي لوړه ګنبده لري.

میر معصوم د ۹۴۴ هـ ق کال د روژې پر اوومه د سنده په بهکر کي زېږېدلی دئ[1]. د زوکړې تاریخ یې په دې بیت کي راغلی دئ :-

بود تاریخ تولد ، هفتم لیل و دوشنبه از صیام
سال نهصد و چل ازوی زواید چاردان

نامي د ۷۵ کالو په عمر د (۱۰۱۹ هـ ق) کال د لوی اختر د میاشتي په شپږمه په بهکر کي مړ او د سنده په سکهر نومي ښار کي پر یوه غونډۍ ښخ

---

[1] بهکر د سکهر ښار پر برابري د سنده په رود کي د یوه تاپو نوم دي. د سنده رود پښتانه (اباسین) بولي. د بهکر کلا شاه بېګ ارغون جوړه کړېده. شاه بېګ په ۹۲۸ هـ ق کال په بهکر کي مړ سوی دئ. یو کال د بهکر (سنده) واکمن و.

دئ. د ګور څلی يې د ډهلي د قطب منار ته ورته او جګه مناره لري چي له شلو کروهو څخه ښکاري. د دغه څلي ودانی، چي ۸۴ فوټه جګه ده، په (۱۰۰۳ ه ق) کال مير معصوم پخپله پيل کړې وه. د ده د مريني تاريخ د ده د ګور پر شنخته داسي ليکلی دئ:-

مير معصوم آن مه برج شرف
آفتاب شرع دين، فخر زمن
روز جمعه سادس ذوالحجه گشت
عازم جنت په امر ذوالمنن
سال فوتش از خرد جستم بگفت
"بوده نامی صاحب ملك سخن"
(۱۰۱۹)

نامي د پلار تر مرګ وروسته صرف و نحو و نظم و نثر له ملا محمد څخه ولوستل. ملا محمد د کنکري اوسېدونکی و، چي د بهکر په شاوخوا کي واقع دئ. د مير معصوم ښکار ډېر خوښ و، څو کروه به پلي په ښکار پسي تی. د پلار تر مرګ وروسته ډېره تنګدستي پر راغله. له څو ملګرو سره پلي ګجرات ته رهي سو. په دغه وخت کي د ګجرات والي شهاب الدين احمدخان نيشابوري او مستوفي يې نظام الدين هراتي (د طبقات اکبري مؤلف) و، او د ذخيرة الخوانين د مؤلف ماما شيخ اسحق فاروقي د نظام الدين هراتي وکيل و، او دغه شيخ اسحق د مير معصوم سره په بهکر کي سبقي و. شيخ اسحق چي مير معصوم وليد ډېر په خوشحاله سو او په ډېره درنه سترګه يې ورته وکتل. له والي او مستوفي سره يې د ده معرفي وکړه او له هغو څخه يې منصب ور واخيست. په دغه وخت کي خواجه نظام الدين هراتي د طبقات اکبري په ليکلو بوخت و. ځکه چي مير معصوم په تاريخ کي ښه لاس درلود نو د دواړو تر منځ ډېره مينه پيدا سوه او د نظام الدين

له مصاحبينو څخه سو. پای ته يې د زرو سرو منصب وموند او پر اکبر مغل ډېر گران سو.

مير معصوم د دوستانو او اشنايانو په پالنه کې نوم درلود. هندوستان ته چې به ولاړ، ټولو ته به يې سوغاتونه راليږل. ډېر ديندار و. د تهجد لمونځ يې نه و قضا کړی. ډېر سخي و. شعر يې وايه. دېوان نامي، تاريخ سنده او معدن افکار (د مخزن اسرار په جواب) کي، اکبرنامه، پري صورت، خمسهٔ متحيره او حسن ناز د ده تصنيفونه دي. دی پنځه مثنويات[۲] او دوې ساقي نامې هم لري. دوه کتابه يې په طب کي کښلي دي. يو يې (مفردات معصومي) او بل يې (طب نامي) نومېږي. د مفردات معصومي يوه خطي نسخه د بنگال د ايشيا ټيک سوسايټي په لايبريري کي خوندي ده. دی خوش خطه او کتيبه نويس و. له ايروان، نخجوان، تبريز، اصفهان، کندهار، کابل، کشمير او هندوستان دکن کي هر ځای ته، چي دی ورغلی دئ، کتيبې يې ليکلي دي. د اکبر آباد د کلا پر سر د فتحپور سکهري په مسجد جامع کي د ده اشعار په ډېره کي کيندل سوي دي. په ډېرو ځايو کي يې رباطونه، پلان، حوضونه، او څهان جوړ کړي دي په تېره بيا په سکهر کي، چي خپل وطن يې دئ. ډېري ښې ودانۍ يې جوړي کړي دي او وني يې ايښي دي. د سنده په رود کي يې يو عمارت د ميناسر په نامه جوړ کړی دئ، چي پر مخ د مځکي نسته. د بناء تاريخ

---

[۲] د تاريخ طاهري د ضميمې په ۲۹۶ مخ کي هغه کتيبه چي د مير معصوم زوی مير بزرگ په ۱۰۱۲ هـ ق کال په ناگور کي نجتې ده، له هغه څخه معلومېږي چي پلار يې يوه خمسيه کښلې ده، چي لاندي پنځه مثنويات پکښې وه :-

(۱) معدن افکار، (۲) حسن و ناز (د سسي و پنوي؟ قصه يې د راشدي په قول تر ۱۰۰۲ هـ ق کال پخوا نظم کړېده). (۳) اکبر نامه، (۴) پري صورت، (۵) خمسهٔ متحيره.

راشدي وايي :- د دغي خمسيې څلور کتابه (بېله حسن و ناز مثنوي څخه) د ۱۰۰۵ هـ ق او ۱۰۱۳ هـ ق کلو تر منځ نظم سوي دي.

تقي کاشي ويلي دي :- دغه پنځه سره مثنوي په لس زره بيته کي دي.

يې (گنبد دریایی = ۱۰۰۲ هـ ق) دئ.

میر معصوم په ۱۰۱۵ هـ ق کال چې د ډهلي له درباره څخه د خپل وطن بهکر امین الملک سو، خلک څه ځنې آزار سول. د ده عیب دا و چې چغلګران پر ګران وو، او بل په دښمني کې شترکینه و. نوريې خورا ښه عادتونه درلودل. په ۱۰۱۹ هـ ق کال ومړ.

د تاریخ طاهري[۳] د ضمیمې په ۲۹۵ مخ کې کښلي دي:-

د میر معصوم په باب په ډېرو تذکرو او تاریخونو کې بیانونه سته. خو په (نشتر عشق) نومې تذکره کې يې حال په تفصیل راغلی دئ[۴]. هلته يې کښلي دي:-

میر معصوم د سید صفایي زوی و. تخلص يې نامي و. په ۱۰۱۵ هـ ق کال مړ دئ. د متداولو علومو او طب تر تحصیل وروسته د اکبر دربار ته ولاړ او د دربار په ندیمانو کې شامل سو او پر اکبر ډېر ګران و.

په ۱۰۱۲ هـ ق کال د اکبر له خوا د اېران د پاچا شاه عباس صفوي دربار ته د ایلچي په توګه ولاړ. په تبرېز کې يې پاچا ولید. د راستنېدلو په لاره کې چې اصفهان ته ورسېد، هلته يې له حکیم شقایي، محمد رضا فکري او تقي اوحدي سره مشاعره وکړه. چې دهلي ته راستون سو پر اکبر نور هم ګران سو او منصب يې ور زیات کړ. د جهانګیر په پاچهۍ کې هم پر پاچا ګران و. د تذکرهٔ مورخین په ٦٦ مخ کې کښلي دي:-

میر معصوم ته د جهانګیر له خوا د امین الملک خطاب ورکړه سو.

د ده له رباعیاتو څخه دي:-

نامی زغم فراق محـزون می گشت

در بادیهٔ کـه. بار مجنون می گشت

---

[۳] سید محمد نسیاني د تاریخ طاهري مؤلف دئ.

[۴] د نشتر عشق د تذکرې یوه قلمي نسخه د رامپور په رضا لایبریري کې خوندي ده.

خورشـــيد اگـــر پای نهادی آنجا
سر تا بقدم آبله و خون می گشت

در عشق بتان مشق جنون باید کرد
جـــان را بفراق رهنمون باید کـرد
چون شیشه تمام پر زخون باید شد
وآنگـــه زره دیده بیرون باید کـرد

**میر بزرگ :-**
شیخ فرید بهکري د ذخیرة الخوانین د دوهم ټوک په ۳۹۳ مخ کي ليکلي دي :-

میر بزرگ د میر معصوم نامی بهکـري زوی و. په کندهار کي د میرزا غازي بیګ ترخان (۱۰۲۱ هـ ق وژلی)، سردار خان، قزاق خان، بهادر خان ابوالهی په حکمرانیو کي د کندهار بخشي و. بیا په دکن کي مقرر سو. هلته يې له رسمي نوکرۍ څخه استعفا وکړه، بهکر ته راغی او په ۱۰۴۴ هـ ق کال په بهکر کي مړ سو.

د کندهار د شاه مسعود د زیارت په یوه ډبرلیک کي د دغه میر بـزرگ نوم راغلی دئ. میر بزرگ د پارسي ژبي شاعر و، بنه نثريې هم ليکه او بنه خطاط هم و. په سکهر کي د میر معصوم د زیارت د ځلي په دروازه کي ليکلي دي :-

میـر معصـوم آن رفیـع القـدر — که ازو کار دین بـه آئین است
کـرد طـرح منـار تـا گوینـد — کـاین پی یادگـار دیرین است
پیـر چـرخ از بـرای تـاریخش — طاق عرش برین بگفت این است

قائله میر بزرگ بن سیادت پناه میر معصوم[۵]

د تاریخ سندھ په تعلیقاتو کې یې کښلي دي :-

میر بزرگ د میر معصوم زوی چې په ۱۰۴۶ هـ ق کې ومړ د مغول جهانګیر له خوا د کندهار (بخشي ګري) مقرر سو. ډېر وخت یې هوړې تېر کړ. د پلار دنیا یې چې ډېرش څلوېښت لکه روپۍ کېدلې، په اسراف سره خرڅوله. غرور او لويي واخیست د صوبې له هیڅ واکمن سره نه چلېدی. ډېره ارګاه و برګاه یې وه[۶].

د میر بزرګ اولاده اوس هم په بسکهر کې سته او د معصومي سیدانو په نامه یادېږي. د مآثرالامراء په دریم ټوک کې د میر بزرګ د مرګ کال ۱۰۴۲ هـ ق لیکلی دئ چې له ۱۶۳۲ - ۱۶۳۳ ع کال سره برابر دئ.

## سید شېر قلندر رحمة الله علیه :-

میر معصوم د تاریخ سندھ په ۱۳۷ مخ کې لیکلي دي :-

سید شېر قلندر د سید حسین زنجیر پا زوی دئ[۷]. له وړکیني په سیر و

---

[۵] حل : طاق (۱۱۰) + عرش (۵۷۰) + برین (۲۶۲) = ۱۰۰۳. دا څلی په ۱۰۰۳ هـ ق کال میر معصوم پیل کړ او په ۱۰۲۶ هـ ق کال میر بزرګ د پلار تر مرګ ۷ کاله وروسته پای ته رسولی دئ.

[۶] تاریخ سندھ، ۱۲۱ مخ.

[۷] د قیتول په دوهمه کتیبه کې سید شېر قلندر د سید حسین زنجیرپا زوی بلل سوی دئ. د میر معصوم په یوه لیکلې کتیبه کې چې د شاه سلیم چشتي د زیارت د لویې دروازې خنګ ته نصب ده. د سید شېر قلندر پلار بابا حسن ابدال ښوول سوی دئ. ده لیکلي دي:-

قائله و کاتبه محمدمعصوم نامی ابن سید صفایي الترمذی اصلاً ... انتسب الی سید شیر قلندر بن بابا حسن ابدال السبزواری مولداً و موطناً قندهاری. (وګ : صنادید سندھ، ۶۲ مخ).

سلوک او ریاضت بوخت و. لوړو مقاماتو ته ورسېد، ارشاد یې کاوه. نوم یې سید محمد دئ. د ذوالنون او شاه بېگ ارغون معاصر و. د ۹۳۳ هـ ق کال د عاشورې په ورځ ومړ. د کندهار ښار لمر لوېدیز پلو ته لس کروه لیرې په اشکلچه (سکېلچه) کې ښخ سو. د کندهار شاوخوا او زمینداور خلک یې خورا ډېر زیارت ته دروړونه وروړي. لنګر یې تل چلېږي. ټول هزاره جات او کندهاریې مریدان دي.

خوارقایې :-

وایي کله چې له زمینداوره ساروان کلا ته راورسېد. غوښتل یې چې د هغه ځای د بزګرانو کره غرمه تېره کړي. هغوی ځای ورنه کړ. فقیران خوابدي قلندر ته راغلل. ده رحمة الله علیه وفرمایل تښتئ چې دلته به یو خورا لوی اور ولګېږي. چې څه پر مخ تېر سول، اور ولګېد او هغه کلی یې لولپه کړ. وایي د حال په ابتداء کې د کندهار او هزاره ډېرو خلکو مخ ورته راوګرزاوه دروړونه به ورته راتلل. سید قشغه نومي د کندهار حاکم امیر ذوالنون ورته ولمساوه. سید شېر یې راوغوښت. د جمعې په ورځ سید شېر د سکېلچې په جامع مسجد کې له ذوالنون سره ولیدل.

میر ذوالنون خو تنه وګمارل چې سید شېر بندي کړي، پخپله کورته ولاړ. هلته بیرته پښېمانه سو او خو ښانکه ډوډۍ یې د ورتېرو سړیو په لاس سید شېر ته ورولېږله. دوی چې هغې خوني ته کوم چې سید شېر پکښې بندي کړه سوی و، ورغلل که ګوري بې له یوه زمري چې پر کراسته رغړي، نور هیڅ څه په خونه کې نه لیدل کېږي. په تراټ میر ذوالنون ته راغلل. میر ذوالنون ویل دوی بېرېدلي دي. دوه تنه نور خورا ور تېر سړي یې وګمارل. دوی هغه ولیدل او میر ذوالنون ته یې هغه وویل. نو میر ذوالنون له خپلي کورنۍ سره هغې خوني ته ورغی او څه چې یې سړو (سړیو) ورته ویلي وو، پخپلو سترګو یې هغه ولیدل. میر ذوالنون یې په پښو کې ور ولوېد.

سید شېر بیرته پخپله اصلي بڼه سو. له دغي ورځي ښخه یې په سید شېر شهرت وموند.

وایي :- سلطان علي قورچي، چي په لق و دق مشهور دئ، د حال په شروع کي د سید شېر له کلکو منکرینو ښخه و. یوه ورځ د ازمویني له پاره مجلس ته ورغی او په خورا بې ادبی کښېنوست. سید شېر چي په جلال ورته وکتل، وغورځېد، کالي یې وغورځول، ږیري و برېتونه یې وخریل. څو عمر لڅ لغړ گرزېدی څو بیچه حبیب؟ خور او مسلم کوکلتاش اخښي یې له سید شېر ښخه معافي وغوښتل او سید شېر خپل د اوداسه څه اوبه د څښلو له پاره ورکړې. دستي ښه سو. د سید شېر مرید سو او د ژوند تر پایه یې د سید شېر د مطبع له پاره بوټي پر سر راچلول.

همدغه سلطان علي نقل کا :- په یوه خورا سړه شپه کي شېر قلندر رحمة الله علیه ته د غسل ضرورت پېښ سو. یخی یې مات کړ، ولې (ویالې) ته ولوېد. زه له ساړو ښخه رېږدېدلم. قلندر چي ما ته وکتل وروې بللم او وې فرمایل:-

"راسه د خدای د مېړونو اسرار وگوره". زه هم ور ولوېدلم. اوبه خورا تودې وې. صورت مي په تود سو. د دوی سره چي له اوبو راوختلم د ساړو اغېزه ماته وه.

خواجه شهاب الدین سفیدرواني وایي :-

یوه ورځ هوا خورا توده وه. سید شېر سفېد روان[8] ته راغی زه ور وړاندي سوم، ورته ومي ویل :-

هوا توده ده د یوه گړي له پاره به زما په باغ کي ساه واچوې. ده هم ومنل. زه د ځای د ترتیب له پاره باغ ته ولاړم. د حوض پر ژۍ مي ځای جوړ کړ. فکر مي کاوه چي د باغ ور (دروازه) ووړ دئ، آس نه سي په

---

[8] د سپېروان په نامه یو کلی د پنجوایي تر کلي کښته جنوب ختیځ لور ته پروت دئ. دفتري میرزایانو له هغه ښخه (سفیدروان) جوړ کړی دئ (م. هوتک).

رانئوتلای. د سید شیر رحمة الله علیه آس به دباندي ترونې لاندې وترړم. که مې کتل چې قلندر پر آس سپور د حوض غاړې ته راورسېد. ما وويل تر هغې وړې دروازې څنګه (څرنګه) رانئوتلاست. ده وفرمايل :- دا آسانه کار دئ. ورسه هغه دوې ټوکرۍ مېوه چې سهار دې چا ته د استولو له پاره ډکې کړې دي، راوړه. هغه ته به بيا نورې ډکې کړې. حيران پاته سوم ځکه چې ما سهار د دفتريانو له پاره رشتيا هم دوې ټوکرۍ له ميوې ډکې ايښې وې[9].

د کندهار مشاهير نومي کتاب په ۹۸ مخ کې کښلي دي :-

مير معصوم د سپېروان د غره په کتيبه کي د خپل نيکه له پاره کښلي دي :-

| | |
|---|---|
| اگر مردی منه دل یکسر مو | درین آرامگاه بی ره و رو |
| ترا آن جمله در رفتن وکیل اند | ازین منزل که یاران در رحیل اند |
| هم آخر جای تو زیر زمین است | ترا گر آسمان منزل نشین است |
| زمانی بر مزار خود بگرییم | بیا "تامی" بکار خود بگرییم |

د شېر قلندر زيارت له پنجوايي څخه لوېديزې خوا ته دوه کيلومتره ليرې پروت دئ.

## بابا حسن ابدال (بابا صاحب) :-

بابا حسن ابدال د نقشبندي سلسلې د منسوب اليه حضرت محمد بهاوالدين نقشبندي (۷۹۱ هـ ق مړ) معاصر او د سبزوار له صحيح النسبو سيدانو څخه دي. د حال په پيل کي حجاز ته پردېس سو. د حرمينو شريفينو او د شام و روم د مقدسه ځايو زيارت يې وکا، څو کلونه هلته پاته سو. د تيمور زوی شاهرخ ميرزا (۸۰۷ - ۸۵۰ هـ ق)[10] په پاچهي کي سبزوار

---

[9] تاريخ سنده، ۱۳۷ مخ.

[10] شاهرخ په ۷۹۹ هـ ق کي د پلار په ژوند د خراسان واکمن سو.

ته راستون سو. پاچا يې مريد سو او د هند په سفر کې يې له ځانه سره راووست. له هنده چې هرات ته ستنېدل، د کندهار په (لنګر) نومي ځای کې يې واړول[11] مريدانو ته يې وفرمايل :-

"له دې ځايه د ميني بوی راځي". دی تر مرګه هلته واوسېد او هلته پر يوه غونډۍ ښخ سو. د جمعې په ورځ يې مزار ته د کندهار نر و ښځې، لوی و کوچني ورځي.

خوارق يې :-

د ده آستانې ته نژدې يوه جګه مخروطي ګنبده له ناتراشو ډبرو څخه چې هره ډبره يې د کندهار پنځه منه راځي. بې ګچه او بې اهاکو يا بې خټو ولاړه ده. وايي دا د بابا صاحب چله خانه وه چې په يوه شپه يې يوازي د يوه خادم په مرسته ودانه کړې ده. په دې ګنبده چې ورننوزې د ډبرو تر پيوستو رڼا او لمر ښکاري، اما د باران په وخت کې يو څاڅکی او به هم نه ور څاڅي[12].

وايي د کندهار مشايخو او علماوو چې واورېدل د بابا صاحب خوريې راغلی دئ. يوه ورځ يې ډېر خلک ليدو ته راغلل. سيد حسين ته بابا صاحب وفرمايل :-

مېلمنو ته "بغرا" پخه کړه. سيد حسين د کندهار په تول پنځه سېره[13] غوښې او لس سېره اوړه پاخه کړل او له دغه واړه دېګ څخه يې ۱۵۰ ښانکه ډوډۍ وکښله اما کټو لا هغسې ډکه وه.

وايي :- يو سهار بابا صاحب ته وجد حاصل سو، وې فرمايل :-

نن د داسي يو چا بوی راځي چې په ليدلو به يې زړه پر کراره سي.

---

[11] دا کلی اوس هم په دغه نامه د ارغنداو د شنې شيلې په سر کې سته.

[12] تاريخ سنده، ۱۳۴ مخ.

[13] سېر په کندهار کې (خورد) ته وايي. يو کندهاری من څلوېښت سېره کېږي (هوتک).

مخې تې ور ووزي. مريدان چې څه لاړ ولاړل، سيد حسين زنجيرپا پر پېښ سو، په ګډه بابا صاحب ته راغلل.

## شرر کندهاري :-

ميرزا کلبعلي خان شرر کندهاري د جعفر علي خان بيات کندهاري زوی و. ده د وزير فتح خان په دربار کي د دبيرۍ رسمي شغل درلود. لوی ديوان ترې پاته دئ.

د کلام نمونه :-

| | |
|---|---|
| نه بهر دل نه بهر ديده درآ | ای بت ديده درآ ديده درآ |
| از پی دل چه درآيی جګرم | مردمی کن زدوديده درآ |
| ديده بردار قدم، ديده برو | جان من ديده برا، ديد درآ |
| هر دل و ديده بفکر و نظريست | نه بهر دل نه بهر ديده درآ |
| چشم زخمی است بهر چشم ګرت | چشمه مهر بود ديده درآ |
| بوفای تو که جز مهر توام | نيست در قلب جفا ديده درآ |
| دل اګر يافتی انديشه مکن | همچو غواص ګهر ديده درآ |
| شوخ چشماز سياهی رم کن | همچو آهوی سيه ديده درآ |

در حريم حرم دوست شرر
وادی عشق نور ديده درآ

د شرر ورور حسن علي خان (حسن)[۱۴] هم د ديوان تښتن دئ[۱۵].

## سيد حسين زنجيرپا :-

د سبزوار له سيدانو څخه دئ. پر نونسم امام موسی کاظم ته رسيږي. د

---

[۱۴] دا نوم د بحث په سر کي راغلی و، بايد د بحث په پای کي راغلی وای، (م. هوتک).
[۱۵] کابل مجله، څلورم کال، دوهمه ګنه، ۶۸ مخ او تاريخ ادبيات افغانستان، ۳۳۸ مخ.

بابا صاحب خوریی دئ. د پلار نوم یې سید عین الدین او د مور نوم یې فاطمه دئ. بابا صاحب رحمة الله علیه چي له حجازه راستون سو خپله خوریې سید عین الدین ته ورکړه، نونس کاله پس سید حسین وزیږېد. اووه کلن و، چي ورک سو. هر څه چي پسي وګرځېدل مونده نه سو. اووه کاله پس کور ته راغئ، پلار و مور ته یې د خپل لید نوی ژوند وباخښه. د ورکېدو تفصیل چي یې ځني وپوښتېد، جواب ورکا :-

"زه د بابا صاحب رحمة الله علیه په امر ده ته د پېریانو یوې مسلماني ډلې هند ته بوتلم. یو کال له ده سره وم، بیا یې هغو پېریانو ته وسپارلم، هغو د فقیرانو خانقاه ته راوستلم. شپږ کلونه مي له هغو څخه اسلامي تعلیمات زده کړل".

سید حسین څو کاله پس په سلوک کي داخل سو. د کامل مرشد پلټنه یې کړله. دوري هوري ګرزېد، څو په پای کي مُلهم سو، چي خپل ماما (بابا صاحب) ته ورسي او کمالات ځني حاصل کړي.

خوارق : راوړي یوه ورځ سید حسین د لنګر په کلي کي ناست و، یوه سړي پر اوښ یو څه رابار کړي وو، ښار ته یې وړل. سید حسین وپوښتېد، څه دي رابار کړي دي؟

ده ورته وویل :- (ډبري).

سید حسین وفرمایل :- "دغسي به سي".

سړي چي پر مزله بار واړاوه، کې کتل د پوڅي غټي ټولي ډبري سوي دي. سړی ډېر پښېمانه سو. هغه ډبري یې د سید حسین آستانې ته راوړې او تراوسه (۱۰۰۴ ه) پوري یې پر زیارت پرتې دي[۱۶].

**سلسلة النسب او مزار یې :-**

فاروق انصاري د کندهار په ۱۷۹ مخ کي د سید حسین زنجیرپا قبر د

---

[۱۶] تاریخ سنده، ۱۸۶ مخ.

بابا ولي صاحب تر ګور څه لوړ د شاه حسيني قبر بولي.

د کندهار د زاړه ښار جنوبي پلو ته د سوري تیږي څنګ ته نږدې څو قبره سته چي د قبر وضعیت او ترتیب د منځ یوه قبر ته امتیاز بخښي. خلک یې ډېر زیارت ته ورځي. له دغي ورې هدیرې څخه تقریباً سل ګامه لوړ په غره کي د دوو خونو دېوالونه ولاړ دي. په دغو خونو کي چي یوه لوړه او بله څه کښته واقع ده. په لومړۍ کي یوه کتیبه او په دوهمه کي د زنجیرپا بابا د لمسي میر معصوم بهکري په لیک او هدایت پنځه کتیبې د غره پر ډبره په ۱۰۰۵ – او ۱۰۰٦ هـ ق کي لیکلي سوي دي. پر پنځمه کتیبه دا مضمون لیکلی دئ :-

"این مزار فایض الانوار میر سید حسین زنجیرپا ابن سید عین ابن میر شمس الدین بن سید علاوالدین بن سید حسن بن سید حسین بن سید رضایی بن سید محمد بن سید احمد بن سید علی بن سید حسین بن سید محمد بن سید هارون بن سید محمد بن سید جعفر بن سید محمد بن سید احمد بن سید هارون بن سید موسیٰ کاظم بن امام جعفر صادق رحمة الله علیه بن امام زین العابدین بن امام حسین بن حضرت علي رضي الله عنه".

په څلرمه کتیبه کي کښلي دي :-

خدمت حقایق پناه معارف دستګاه میر سید حسین زنجیرپا صاحب کشف و کرامت بوده و نسبت اراده و خواهرزادګي که بقطب الاقطاب بابا حسن ابدال رحمة الله علیه داشت مرقد معطر ایشان در جوار بابا بوده ... بمرور ایام مقبرهٔ ایشان ... مر خلایق واقع شده ګوئیا ازین امر متاذی؟ شده بنا بران ازان مکان باین سر منزل انتقال واقع شده.

**شاه مسعود ابدال :-**

میر معصوم لیکلي دي :-

د کندهار د صاحب کراماتو زیارتو څخه دي. په هغه غره کي چي د ده مبارک مزار موجود دئ، خودرویه انگور، سیب، بهي، انار او نوري میوې کېږي د اوبو چینې هم پکښي سته. دا خاصیت یوازي د همدغه غره مخصوص دئ. شاه مسعود صاحب پخپل وخت کي یو تاک ایښی دئ، چي زموږ تر زمانې (۱۰۰۴ هـ ق) پوري لا سته. دې غره ته نژدې یوه مځکه ده چي (تنبل، یا نبتل یا تنبیل یا بیشل) نومي. ښې هندوانې او خټکي پکښي کېږي. په کاریزیې اوبوي. غیر له تنبله چي هر ځای خټکي وکرې چینجن کېږي [۱۷].

## سردار علي رضا قزلباش :-

سردار علي خان قزلباش مغول د کندهار اوسېدونکی و. انگرېزانو چي لومړی ځل کندهار ونیو، دی یې د کندهار نائب الحکومه کړ. د کابل په لومړي جنگ کي د سردار علي خان زامنو د انگرېزانو ښه مرسته وکړه.

انگرېزان چي هندوستان ته ستانه سول د فتحعلي خان زوی علي رضا خان هم ورسره ولاړ. انگرېزانو ۸۰۰ روپۍ د میاشتي تنخواه ورته وټاکله. په ۱۸۰۹ ع کال یې د ډهلي او کاس گنج په جنگو کي د ملیونو پر ضد د انگرېزانو ملا وتړله او د دغه خدمت په صله کي د اوده په بهرایچ سیمه کي د چروې د ریاست نواب گنج سیمه ورکړه سوه. د علیرضا خان زوی او جانشین نوازش علي خان و، چي په ۱۸۶۶ ع کال یې د نوابۍ لقب وموند [۱۸].

---

[۱۷] تاریخ سنده، ۱۳۳ مخ.

[۱۸] صحیفهٔ زرین، یوپې، ۲۲۸ مخ.

## حاجي محمد محسن شباب :-

شباب یې تخلص و. په ۱۳۰۰ هـ ق کال له کندهاره هندوستان ته تللی و. د خپل شعر دېوان یې په ۱۳۲۲ هـ ق کال تدوین کړ او په ۱۳۲۸ هـ ق کال په پټیاله کې چاپ سو[۱۹]. د کلام نمونه یې دا ده :-

### واللیل والضحیٰ

دردا که دوش دلبر نا مهربان ما
شد شمع بزم غیر، زد آتش بجان ما
صد مرغ دل به ناوك مژگان کشد بخون
از هر نگاه آن بت، ابرو کمان ما
تاراج ناز و غمزه و زلف و رخی شده
کالای صبر و طاقت و تاب و توان ما
چون درد دل تو هیچ ندارد اثر چه سود
گیرم که آب شد دل سنگ از فغان ما
شبها به یاد زلف و رخی تا سحر "شباب"
واللیل والضحی شده ورد زبان ما

## حاجي محمدعارف کندهاری :-

حاجي محمدعارف اصلاً د کندهار دئ[۲۰]. بایزید بیات یې حاجي عارف بولي[۲۱] او په تاریخ فرشته کې د حاجي محمد قندهاري په نامه یاد سوی دئ.

---

[۱۹] پېښې لیک، ۲۲۰ مخ.

[۲۰] وګ : مآثر رحیمی، ۱/۳۸ – ۶۲ مخونه.

[۲۱] تذکرهٔ همایون و اکبر، ۱۸۶ مخ.

حاجي محمدعارف کندهاري پخپل تاريخ کي عربي عبارات او پارسي بيتونه ډېر راوړي دي. له دې څخه معلومېږي، چي په عربي او پارسي ادب کي يې مهارت درلود. بيرم خان چي د کهمبايت په پټن کي د مبارک خان لواني له لاسه وواژه سو، دی د بيرم خان په رکاب کي ملګری و. مآثر رحيمي ليکي چي د خان خانان مير سامان و. په کندهار کي چي کوم وخت بيرم خان والي و، د حاجي محمد عارف او بيرم خان پېژندګلوي او اړيکي پيدا سوي دي. د خان خانان تر مرګ وروسته چي د نوموړي لښکر چور سو. حاجي محمد عارف د ده د زوی عبدالرحيم خان سره د ګجرات مرکز احمد آباد ته ولاړ او له هغه ځايه په کښتۍ کي جدې ته وخوځېد. د دوی کښتۍ تر يوه سخت توپان وروسته د هُرمُز و ساحل ته وختله او د لار، بصرې، بغداد او شام له لاري حج ته ولاړ. له حجه چي راستون سو، له مظفرخان تربتي سره نوکر سو (تر ۹۸۲ هـ ق دمخه). په ۹۸۵ هـ ق له مظفر خان سره اکرې ته راغی.

**تاريخ اکبري**[۲۲] :-

لکه چي په مقدمه کي يې ليکلي دي، د دې کتاب نوم، مولف مقطع ايښی دئ.

سخن را زمطلع به مقطع رساندم

که مقطع ازين نام خوشتر نباشد

مقطع پر مقدمه، مقصد و خاتمه وېشلې ده. مقدمه يې د اکبر مغول په باب ده او مقصد و خاتمه يې د رضا لايبريرۍ او د کيمبريج د کتابخانې په دواړو نسخو کي نسته. د دې کتاب نوم مظفرنامه و. غالباً د مظفرخان تر

---

(۲۲) دا برخه علام استاد رشاد رحمة الله عليه په همدغه ځای کي راوړېده. ما ته دا خبره معلومه نه ده چي تاريخ اکبري د حاجي محمدعارف کندهاري له نامه سره څه ارتباط لري، (م. هوتک).

مرگ وروسته يې تاريخ اکبري نوم پر ايښی دئ. دا کتاب غالباً تر ۹۸۸ هـ ق کال وروته او تر ۹۹۲ هـ ق دمخه پای ته رسېدلی دئ، څکه کابل ته د حکيم ميرزا د ستنېدلو بيان پکښې سته.

## ولي رام کندهاری :-

احمدشاه بابا رحمة الله عليه په لوی تولواک لوی احمدشاه بابا په يو هندو شاعر دئ، چي د ستر تولواک لوی احمدشاه بابا په زمانه کي يې په کندهار کي ژوند کاوه. تخلص يې (ولي) و. په پارسويې شعر وايه ديوان يې درلود. په قلمي ديوان کي يې ۳۴ غزلي، ۲۰۰ رباعی، يو ۱۱ بنده ترجيع بند او ۱۱۸ مثنوي بيتونه سته. دغه ديوان يې د سردار محمدامين خان له پاره د ده د درباريوه منشي (گربخش) په ۱۲۹۳ هـ ق کال د صفري په ۲۲ بيا ليکلی دئ[۲۳]. ولي رام که څه هم هندو دئ اما له اشعارو څخه يې د توحيد، عرفان او سلوک مطالب څرگندېږي. د کلام نمونه يې :-

کو محرم اسرار نهانی جز دل
کو مظهر شان بی نشانی جز دل
در ملك وحدت ای ولی کيست بگو
رهبر مکان بی مکانی جز دل



| | |
|---|---|
| صدف سينه تا شگافته ايم | گوهر بی نظير يافته ايم |
| نور خورشيد تا هويدا شد | طلعت ليل تن ته پا شد |
| زان اضافات و رسم دور شده | خانهٔ ما محل نور شده |

---

[۲۳] کابل مجله، څلورم کال. دوهمه گنه ۵۱ -۵۲ مخونه.

رف در خـود تمـام آب بـود | بـرف بـی آب چـون سراب بـود
را گـر ز بـرف خـود دانـی | لـیس فـی حسـب غیـر دانـی
کـه از خـود خـلاص میگـردد | مطلـب عـام و خـاص میگـردد
ـت او بـدل بـه نـور شـود | همچو خورشید در ظهور شود
د در حلقـه چـون خـزان باشـی | در تـه بـار دیگـران باشـی
ـی زادهٔ چـو شیـر بیـا | انـدرین معرکـه دلیـر بیـا [۲۴]

## ـمدخان کندهاري :-

د مظهر اسرارالحق په ۳۱۳ مخ کي کښلي دي :-

مولوي محمد خان د عبدالرحمن خـان زوی د حـاجي محمدیوسف ـان کنـدهاري لمسـی دئ. نیکـه یې لـه کنـدهاره لکنهـو تـه راغـی او د ـدالرحمن خان کندهاري په رساله کي نوکر سو او په کاس گنج کي میشت .

مولوي محمد خان په ... هـ ق کال پـه دغـه کـاس گـنج کـي زیږېدلی ئ. کتابونه یې له مولوي محمد حیات گوپاموي، مولوي سید یوسفعلي او والبرکـات حـاجي تـراب علـي ښخـه ولوسـتل. پـه طریقـت کـي د شـاه ـدالرحمن چشتي لکنهوي (۱۱۶۰ - ۱۲۴۵ هـ ق) مرید و. د لکنهو پـه بیت وزارت کي یې د انشاء وظیفه هم درلوده.

د شـرح محمـدي پـه نامـه یـې یـوکتـاب کښلـی دئ چـي د اهـل ـنتو عقایـد، روژه او لمـونځ یـې پکښـې شـرحه کـړي دي. دا کتـاب د ـانپور پـه نولکشـور مطبـع کـي تـر ۱۲۹۲ هـ ق = ۱۸۷۶ ع پخـوا چـاپ سـوی ئ.

## انوار کندهاری :-

د مقالات الشعراء په ۱۵ مخ کې کښلي دي :-

محمدانوار نومی کندهاری الاصله سړی و. د سنده په کاهان نومي ځای کې يې له مخدوم عبدالعزيز محدث ابهري څخه علم زده کړ، هند ته ولاړ او د بابر مغول د دربار له منسوبينو څخه و. د بابر تر مرګ (۹۳۷ هـ ق) وروسته د همايون د دربار له منسوبينو څخه سو. په ۹۴۷ هـ ق کال چې د شېرشاه پښتانه له لاسه همايون د هندوستان له پاچهی څخه سنده ته وتښتېد، انوار ورسره و. په ۹۵۰ هـ ق کال چې همايون له سنده څخه کندهار ته رهي کېدی، دی ځني جلا سو او حج ته ولاړ. انوار شاعر و. دا بيتونه د ده دي :-

ای آنکه بچـــاه ابتلا در مـــاندی
دردشت جـنون پای سـر بر راندی
زنهار که از کف ندهی دامـــن غم
از دوست بود هر آنچه ديګر خواندی

## فطرت کندهاری :-

د مقالات الشعراء په ۴۹۷ مخ کي يې کښلي دي :-

محمد حسن کندهاری، چي (فطرت) يې تخلص و، سنده ته راغلی و. د کابل او کندهار خلک پر راټول وو. سنده ته د تجارت په صورت تلی و راتلی. شاعر و. دا بيت د ده دئ :-

يار راګـــر روی ياری ديدمی
دل به پيشش آئينه سان چيدمی

## جمال کندهاری :-

د مقالات الشعراء مولف علیشېر قانع (متوفی ۱۲۰۳ هـ ق) کښلي دي:-
جمال اصلاً د کندهار اوسېدونکی و. څو کاله پخوا سنده ته راغی.
شاعر و. دا بیت د ده دئ :-

زیبتابی به یاد آتشین رو
برنگ شعله ... زارم [۲۵]

## پیر یکشنبې :-

قبر یې د (لکه) غره په لمن کې دئ. کندهاریانو التزام نیولی دئ، چي د یکشنبې په شپه به یې پر هدیره ډېوې لګوي. د څراغانو شمېر خامخا یو سل و شلو ته رسېږي [۲۶].

## قدوة الواصلین خواجه ملک رحمة الله علیه :-

تاریخ سنده (۱۰۰ مخ) لیکي :-
مزاریې د ارغنداو د راده څنګ ته پر یوه خورا پرفیضه ځای واقع دئ. کندهاریان یې (پیر ولایت) بولي. د خپلو کښتو څه برخه د ده د زاهوزادو (زوزاتو) له پاره تاکي، کنه کرهنې یې آفت مومي.

## خواجه علي نی تاز رحمة الله علیه :-

د کراماتو څښتن و. په ګندګان کي ښخ دئ. وایي پر نل به سپرېدی.
یوه روځ د چا کره مېلمه سو. کوربه تې وویل :-

---

[۲۵] دلته یوه کلمه نه لوستل کېږي، (هوتک).
[۲۶] تاریخ سنده، ۱۴۰ مخ.

آس(نل) ته مي اوربشي ورکړه. کوربه هم د توکو په ډول نل د غلې په انبارخانه کي وغورځاوه. کې کتل انبار خانه تشه توره ولاړه ده او ډېر خوشايي کوته دي[۲۷].

## رتن چند :-

د کندهار هندو مولف[۲۸].

## شيدا کندهاری :-

د تذکره شعرای کشمیر په ۵۱۴/۲ مخ کي کښلي دي :-

د شيدا د زوکړي ځای کندهار و. د جهانگير په زمانه کي په احديانو کي ملازم سو. په ۱۰۴۰ يا ۱۰۴۲ کال مړ دئ.

## حسن شاه کندهاری :-

(په مناقب المحبوبين ۳۳۷ مخ کي يې راوړي دي) :-

(حسن شاه کندهاری) د خواجه سلمان تونسوي (۱۱۸۳- ۱۲۶۷ هـ ق) خليفه و.

## مولانا حميد کندهاري ثم البدخشي :-

په تذکرهٔ صبح گلشن ۵۶ مخ کې کښلي دي :-

زاد و بومش قندهاراست ... رسالهٔ مُعما را نبشته. شاعر بود.

---

[۲۷] تاريخ سندھ، ۱۴۱ مخ.

[۲۸] د دغه شخص نور تفصيل نسته، (م. ه).

## سلطان سپلکی کندهاری :-

د خزانهٔ عامره په ۲۵۸ مخ کې کښلي دي :-

سپلکی په کندهار کي د یوه ځای نوم دئ. سلطان محمد د دغه ځای اوسېدونکی ښه شاعر و. قلندرانه ژوند یې کاوه. د اکبر مغول (۹۶۳ – ۱۰۱۴ هـ ق) معاصر او تخلص یې سلطان و. دا مطلع د ده ده :-

هر که دل را صدف سر الهی دانست
قیمت گوهر خود را بکماهی دانست

سلطان دغه غزل د جامي صاحب د دغي غزلي په اقتفا ویلې ده :-

دل خطت را رقم صنع الهی دانست
بر سر ساده رخان حجت شاهی دانست

## محیی کندهاری خوقندی :-

په دیوان محیي (فارسي) کې لیکلي دي :-

از جناب حاجي محیی الدین خوقندی ولد اعز مرحوم محمدرضا آخوندزاده قندهاری ثم الهروی. باشارت عمده التجار والاعیان جناب شیخ محمد سلیمان افغان که از مشاهیر هموطنان خوقند و باهتمام و اعانت خیر الحاج ملا عبدالرؤف افندی تاشکندی – مطبعه پورصوف، در شهر تاشکند، ۱۳۳۰.[۲۹]

غلام حسین فرهمند د خراسان مجلې د ۴۹ گڼې په ۳۷ مخ کې د محیي خوقندي په باب کښلي دي :-

د محیي خوقندي اووه دېوانه د دوشنبې د فردوسي په کتابتون کې خوندي دي. پنځه نسخې یې نیمگړي دي. دوې نسخې یې بشپړې دي.

---

[۲۹] د دغه اثر یوه چاپي نسخه د مزارشریف د یلدوز په کتابخانه کې خوندي ده.

له دغو دوو نسخو څخه يوه يې چې په ۱۲۰۸ هـ ق کال ليکلې سوېده او ۱۵۷۳ ګڼه په فردوسي کتابتون کې خوندي ده، ۷۲۰ مخه او ۸۵۰۰ بيته لري. بله نسخه يې د ملا مير طاهر خجندي زوی مير حبيب الله په ۱۳۶۴ هـ ق کال په بخارا کې ليکلې ده. دا نسخه په ۱۵ ګڼه د فردوسي په کتابتون کې خوندي ده. د لومړۍ بشپړې نسخې پيل يې په دغه بيت سوی دئ:-

بيا بيا که زشـــــوق تو مى تپد دل ما

بيا بيا که به عشقت سرشته شد گل ما

د انسيکلوپيديه سويتي تاجيکه د ۴ ټوک په ۶۳۴ مخ کې کښلي دي:-

"محيى خوقندى (سال تولد و وفات نامعلوم) شاعر ذواللسانين. در آخر عصر ۱۹ و اول عصر بيست عمر بسر برده است. به زبانهاى تاجيکى و اوزبيکى شعر گفته است. به يکچند شهرهاى آسياى ميانه و افغانستان سفر کرده، باشاعران و دانشمندان دور (اسيرى، تجلى و نسيمى خوقندى) رابطۀ دوستى و مکاتبه داشته است. از محيى خوقندى دو ديوان فارسى (تاجيکى) و ترکى (اوزبيکى) باقى مانده است که در آنها غزليات، قطعات، رباعيات، مثنويهاى کوتاه، اينچنين موشحات و ملعمات و مکتوبات او فراهم آمده اند.

موضوع اساسى ايجاديات محيى خوقندى عشق است. وى از صفت هاى معشوقه، درد هجران و وصال عاشق سخن ميراند. افکار پند و اخلاقى محيى خوقندى در غزليات، رباعيها و قطعه هايش بيان شده است"[۳۰].

## ميرزا کندهاري :-

شيخ فريد بهکري د ذخيرة الخوانين د لومړي ټوک په ۳۹۷ مخ کې

---

[۳۰] د ختيځو خطي نسخو کتالوګ، د تاجکيستان د علومو اکاډيمي، څلورم ټوک، ۱۹۷۰ کال. ديوان تاشکند، ۱۳۳۵ هـ ق.

ليکلي دي :-

"ميرزا قندهاری ولد مير بزرگ سه بستی ؟ ده سوار منصب دارد و در تعينات تهته است".

## خان دوران شاه بېگ کابلی :-

د ذخيرة الخوانين په ۲۳۵ مخ کې کښلي دي :-

خان دوران شاه بېگ د جلال الدين اکبر له خوا د کندهار والي و. جلال الدين اکبر چي ومړ، صفويانو پر کندهار بريد وکړ. شاه بېگ کلابند سو.

## ابدالی :-

په اصفهان کې يې عطاري کوله. حال يې بل سو. په تبرېز کې به لخ گزيده قلندر سو. په ۹۳۰ هـ ق کال په کندهار کې وواژه سو يا ومړ. دا بيتونه د ده دي :-

پی عاشقی نهادم قدمی ندانم آخر
فگنند رحم بجایی که از آن گذر نباشد
همه گفتهء تو گويا صفت پری است ابدال
که چنين حديث موزون صفت بشر نباشد[۳۱]

## حاجي محمدفضل الله خان کندهاری :-

په (فهرست کتبخانه آصفيهٔ دکن) کې کښلي دي :-

دېوان فضل، د حاجي محمدفضل الله خان کندهاري دېوان دئ. په

[۳۱] آتشکده، ۹۲۳ مخ.

۱۳۱۱ هـ ق کال چاپ سوی دئ.

## احمدعلي شاه کندهاري :-

د پښې ليک په ۲۱۶ مخ کې کښلي دي :-

د ميراحمدعليشاه کندهاري چشتي، صوفي شاعر و، د دېوان خاوند، په امرتسر کي د ۱۳۱۱ هـ ق کال د رجب د مياشتي په دوهمه ومړ.

## محمدالرخجي :-

د ايضاح المکنون په ... مخ کي د (الارشاد الی احکام الجراد) مولف محمد الرخجي الشيباني الحنبلي ښوول سوی دئ. د دغه کتاب يوه نسخه په دارالکتب شاميه کي سته.

په معجم المطبوعات کي يې ليکلي دي :-

ابوالحسن علي رخجي د حسين زوی د (احاسن المحاسن) مولف دئ، چي په ۱۳۰۱ ؟ کال چاپ سوی دئ.

په تواريخ کشمير کې کښلي دي :-

شيخ محمد کندهاري د باينغر ميرزا (متوفی ۸۲۷ هـ ق) بن شاهرخ بن تيمور لنګ د دربار له منسوبينو فضلاوو څخه و. په معما کي يې يوه رساله د باينغر په نامه کښلې ده. د سربيتونه يې دا دي :-

...[۳۲].

## رساله دار عبدالرحمن خان کندهاري :-

په لکنهو کي رساله دار و. د سلطان التواريخ په ۲۰۱ مخ کې کښلي دي

---

[۳۲] بيتونه يې نه دي راوړي، (هوتک).

چي په ۱۱۸۲ هـ ق کي یوسف خان د عبدالرحمن خان کندهاري پلار د شجاع الدوله په پوځ کي رساله دار و. قاسم علي اپرېدي په پارسي ژبه یو تاریخ لیکلی دئ. د دغه تاریخ په اووم باب کي د محمد سعید خان او عبدالرحمن خان بهادران کندهاري ستاینې راغلي دي. په اتم باب کي هم د دوی په باب څه بیان سته.

د عمادالسعادت په ۱٦٦ مخ او د تاریخ اودهـ د لومړي ټوک په ۱۲۵ مخ کې کښلي دي :-

په ۱۲۱۲ هـ ق کال چي د اودهـ نواب آصف الدوله ومړ، عضدالدوله مبارز الملک میرزا شهامت علیخان، چي په (میرزا جنګلي) مشهور و، د توپخانې د مشر ابراهم بیګ او عبدالرحمن خان کندهاري په بروسه (ډاډ) د وزارت په هیله کي سو، مګر څکه چي بهوبیګم موافقه ونه کړه، نو ده دغه اراده پرېښووله.

د عمادالسعادت په ۱۴۲ مخ کي لیکلي دي :-

د ۱۱۹۰ هـ ق کال وروسته عبدالرحمن کندهاري ډېره ترقي وکړه د نواب امیرالدوله له لطفه له یوه انګرېزي پوځ سره دکن ته ولاړ. له دې سفر څخه چي راستون سو، ډېر غرور یې وموند. رساله یې په دکن او یورپ کي مشهوره وه.

د سیرت سیداحمد شهید په ۴۳٦ مخ کې کښلي دي چي د یوسف خان زوی عبدالرحمن خان بنالم خېل هوتک و.

## مولانا حسام الدین کندهاري :-

د برېټیش موزیم د فارسي کتلاک په ۳۱۷/۱ مخ کې لیکلي دي[۳۳] :-

---

[۳۳] نور تفصیل نسته (م. هـ).

## رساله دار مصطفیٰ خان کندهاری :-

په سلطان التواریخ ۴۲۹ مخ کې کښلي دي :-

د ۱۲۵۳ هـ ق کال د دوهمي خور په ځلرمه چې سليمان جاه نصيرالدين حيدر د اوده واکمن مړ سو. ماینې یې غوښتل چې مناجان د اوده واکمن کړي او انګرېزانو غوښتل چې د نصيرالدين اکا محمدعلي د اوده واکمنی ته ورسوي. په دغه جنګ کې مصطفیٰ خان کندهاری د مناجان د تخت په مخ کي د انګرېزي کپتان ميکسن له خوا ووژه سو.

## رساله دار محمد خان کندهاری :-

په لکنهو کي رساله دار و.

## فرهاد کندهاری :-

د تحفة المومنون في تفسير پارهٔ عم يتساءلون مولف دئ.

## هاشمي کندهاری :-

هاشمي يا هاشم په ۹۶۹ هـ ق کال مړ دئ. د مظهر الآثار په نامه د ده يوه فارسي مثنوي د عليګړه پوهنتون په سبحان الله کلکشن کي سته[۳۴].

## اصغر شاه کندهاری :-

د بحرالانوار په ۲۵۰ مخ کې ليکلي دي :-

اصغرشاه د موسیٰ زو د حاجي ملا عثمان خليفه و او هغه د حاجي دوست محمد کندهاري خليفه و.

---

[۳۴] وګ : سبحان الله کلکشن فهرست، ۴۱ مخ.

## الحاج سید ابوالحسن کندهاری :-

د امیر شېرعلیخان په پاچهي کې د اېران د دولت له خوا د امیر دربار ته د مبارکۍ له پاره رالېږل سوی او د دغې سیمې د اداري و نظامي و دولتي چارو او حالاتو لیکلو ته گمارل سوی و. د گذارش افغانستان په نامه یې یوه لیکنه کړې ده، چې د تهران د الهیاتو او اسلامي معارفو د پوهنځي د کتب خانې په فهرست کې سید محمد باقر حجتي د احمد منزوي د فارسي خطي نسخو د فهرست د شپږم توک په حواله راوړیده.

وایي د دغه گذارش لیک نستعلیق دئ[۳۵].

## سپاهي کندهاری :-

د خواجه کلان تخلص دئ. په پارسي ژبه یې شعر وایه.

## عبدالله بن نجم الدین کندهاری[۳۶] :-

## ملا قاسم کندهاری :-

د تذکرهٔ علمای هند په ۲۷۳ مخ کې لیکلي دي :-

"ملا قاسم واحد العین قندهاری معاصر جلال الدین اکبر مغل از عمده ترین مدرسین عقلیه و نقلیه بود".

په طبقات اکبري ۴۶۹/۲ مخ کې یې هم ذکر سته.

---

[۳۵] د یادابښت متن په پارسي و، ما په پښتو واړاوه، (م. ه).

[۳۶] شرح حال یې نسته (م. ه).

# د خرقې شريفې د متوليانو کورنۍ

حاجي ملا زلال

حاجي ملا شکر

- حاجي نيکه (حاجي مولاداد) د ميا فقيرالله (متوفی ۱۲۱۴ هـ ق) خليفه
- حاجي عبدالحق اخندزاده الکوزی (د احمدشاه بابا او تيمورشاه معاصر د زمانشاه په زمانه کې هم ژوندی و له ۱۱۸۳ هـ ق څخه متولي و)
  - حاجي حفيظ الله تر ټولو وروسته متولي و.
    - صديق اخندزاده
      - عبدالحی اخندزاده
        - عبدالرزاق اخندزاده
          - عبدالسلام
          - عبدالرشيد
      - علي جان اخندازده
        - عبدالقادر
  - حاجي نعمت الله
  - حاجي عبدالغياث
    - رحمت الله اخندزاده
      - عبدالله جان اخندزاده (د امير شير عليخان معاصر په ۱۳۰۲ کال د امير عبدالرحمن يو فرمان د عبدالله جان اخوندزاده په نامه سته. د سوختې مالک يې بللی دئ)
  - ملا ولي محمد

## بوبکر شاه کندهاری :-

د بیانه کلا، چي د ډهلي په جنوب کي واقع ده، پخوا بجي مندرګړه بلله کېدله او بجيپال چي له متهرا څخه بیانې ته راغی، دا کلا يې په ۱۰۵۲ ع = ۴۴۴ هـ ق کي ودانه کړه. د هندي له دې دوهرې څخه معلومېږي چي دا کلا په ۴۹۶ - ۴۹۷ هـ ق کي بوبکر کندهاري ماتـه کړې ده يعني نيـولې ده. هغه تاريخي دوهره دا ده :-

ګیاره سو تهـونرا پهاګ تیج رب وار
بجی مندر توړیا، بوبکر شاه کندهار

په ۱۱۰۳ ع کي د اراجه بجيپال له بوبکر شاه کندهاري څخه د بيـانې په حدودو کي مغلوب سو، ځان يې پخپله وواژه او بـوبکر کنـدهاري کـلا تـر ډېري خونرېزی وروسته ونيوله. دا واقعـه مستي پهاګن بـدی تيـج[۳۷] يـوم يکشنبه يعني اتـوار کـي پېښـه سـوې ده اولـه دې حسابه معلومېږي چي بجيپال ۵۱ کاله پاچهي کړېده. د بـوبکر تـر فتحـي وروسـته د بجيپـال زوی ګجپال له بیانې څخه چتووګړه ته ولاړ اوګجګړه ده ودان کړی دئ. دا لـه هيڅ تاريخه نه ده ښکاره چي بوبکر کندهاری پخپلـه پاچـا دئ، کـه د کـوم پاچا له خوا يو سردار و. د بوبکر قبر په بيانه کي موجود دئ. دا قبر کربلا تـه نژدې د سرای مخامخ ته، چي کوم ځنګل دئ، په هغه کـي دئ. د دې قبر کرامت خلک دا بولي کومه د نيم (مرګ ماهی) ونه چي د دغه قبر سر تـه ولاړه ده هغه ښاخ چي يې پر قبر راکوږ سوی دئ، مېوه يـې ترخـه نـه ده او زردارخان وايي :-

ما پخپله دا تجربه کړېده[۳۸].

---

[۳۷] کټ مټ وليکل سو، حل غواړي (هوتک).

[۳۸] صولت افغاني، ۴۴۲ مخ.

## حسن کندهاری :-

خواجه حسن د کندهار د ښار و. په دوولسمه هجري پېړۍ کې يې ژوند کاوه. دی ښه قريحه لري او د خوند اشعار يې ويل[۳۹]. دا رباعي د ده ده :-

ای مـــاه رخت شمـــع شب تار حسن
خـــار غـــم تو در دل افـــــگار حسن
دور از تو حسن افـــتاده بر بســـتر غـــم
که بجز غم نشود مونس و غمخوار حسن

## واصيب کندهاري[۴۰] :-

د کندهار ولايت د يوولسمي پېړۍ د ښې طبعي او غوره سليقې لرونکو شاعرانو څخه و[۴۱]. دی د نصرآبادي په قول د سليم تهراني (۱۰۵۷ هـ مړ) معاصر و. وزير عبدالله خان ته چې په (لاهيجان) کې و، ورغی او هلته ومړ. د گلستان مسرت د کتاب خاوند لاندنی بيت د واهب کندهاري په نامه ضبط کړی دئ چې مسلماً همدغه واصب و.

گفتن مگر از نامه بخاطر رسم او را
آنهـم ورق جزء فرامـوشی من شد

نصرآبادي يې دا د کلام نمونه ضبط کړېده :-

در کام اهل ذايقه شيرين نمی شوی
تا نشکنی بسان عسل شان خويش را



---

[۳۹] آريانا دائرة المعارف، ۷۹۹/۱۴ مخ.

[۴۰] دغه نوم په تذکرهٔ صبح گلشن کي (واهب) کښلی دئ.

[۴۱] آريانا دائرة المعارف ۷۹۲/۱۴ مخ.

نفس زمـــین بسراغ تو دمی در پیش است
نقش پا در رهت از من قدمی در پیش است
مـــــگذر ای دل بخم کاکل آن زلف سیاه
که بلایی بقفا و ســــتمی در پیــش است

## قاضي ابوالبر که کندهاری :-

قاضي ابوالبر که کندهاری د طاهر نصرآبادي سره معاصر و. په شعر ویلو کي تکړه او په تېره بیا د معما په فن کي د ستاینی وړ دئ[۴۲]. نصرآبادي یې دا دوې معماوي پخپله تذکره کي رانقل کړي دي :-

د قل بابا په نامه :-

چو از دلـــــبر بر آمـد آمـد آمد
دلی بی پا و بی سر بی خود آمد

حل :- دلی بی پا = قلب - پای (ب) = قل

د جاهي په نامه[۴۳] :-

ماه من نادیده قربان ساخت صـد مجروح را
ای سهی قد آنچه محتاج نظر نبود نکوست

## محمدهاشم کندهاری :-

د تذکرهٔ حسیني په ۳۶۴ مخ کې لیکلي دي :-

شاعر اعظم محمدهاشم طوطی شکرستان قندهار بـوده و در خـدمت بیرم خان بسر می برد. ازوست :-

سـرو چـون قـد تـو ای غنچـه دهـن دلجـو نیست
غنچه چون لعـل شکر قند تـو شیرین گـو نیست

---

[۴۲] آریانا دائرة المعارف، ۷۹۲/۱۴ مخ.

[۴۳] حل غواړي (م. ه).

نیست کس همچو من از اهل وفا بیدل و دین
از بتان مثل تو هم سنگدل و بد خو نیست
ای نکو رو مشنو در حق من قول بدان
که شنیدن سخن بد، صفت نیکو نیست

په طبقات اکبري ۲/۵۰۰ مخ کې کښلي دي :-
محمدهاشم قندهاری از مصاحبان خانخانان بیرم خان بود. این ابیات ازوست :-

روم در باغ بی روی تو اشك لاله گون ریزم
بپای هر گلی بنشینم و از دیده خون ریزم

## شاه محمد خان کلاتی کندهاری او زوی یې عادل خان :-

ابوالفضل د اکبرنامې په ۱/۲۸۴ مخ کې کښلي دي چې د اکبر په دربار کې شاه محمد کلاتي دوه زري او زوی یې عادل خان یو زري منصب درلود[۴۴].

د اقبال نامهٔ جهانگیری په ۲/۱۳۹ مخ کې کښلي دي :-

کندهار د بیرم خان جاگیر و. بیرم خان چې د ۹۶۱ هـ ق په پای کې د هندوستان د نیولو په نیامت د همایون په رکاب کې روان سو، شاه محمد کلاتي د ده له خوا د کندهار حکومت کاوه. د زمینداور حاکم بهادر خان و. بهادر خان د همایون د مرگ له اوازې سره د کندهار د نیولو په فکر کې سو. د خواجه قاسم هزاره زوی فرخ حسین یې د ځان مل کړ او په ۹۶۴ هـ ق یې پر کندهار د خدعې په ډول د حملې ترتیباب ونیول. شاه محمد په خبر سو د دوی تجویز یې شنډ کړ او بهادر خان زمینداور ته وتښتېد. بهادر خان

---

[۴۴] علامه رشاد د کلاتي په باب د (ذخیرة الخوانین) حواله ورکړېده، (م. هوتک).

دوهمه پلا پر کندهار برید وکړ. شاه محمد کلا بند سو. له هندوستانه مرسته نه ور ورسېدله. له شاه طهماسب صفوي پاچا څخه یې مرسته وغوښتله او د بهادر خان تر ماتې او ځبلو وروسته یې د کندهار د ورسپارلو وعده ورکړه. شاه طهماسب درې زره ترکمنان د یارعلي بېگ په مشرۍ مرستي ته ور ولېږل. هغو ناڅاپه پر بهادر خان برید وکړ. بهادر خان وتښتېد مگر شاه محمد خان خپله وعده پر ځای نه کړه او د کندهار کلا یې د شاه طهماسب رالېږلو پوځونو ته ونه سپارله او شاه طهماسب په دې ډېر خوابدی سو.

د اکبر د پاچهۍ په دریم کال ۹۶۵ هـ ق شاه طهماسب خپل وراره سلطان حسین د بهرام زوی وگوماره چې پر کندهار برید وکړي. قزلباش پوځونه چې کندهار ته راورسېدل شاه محمد کلابند سو. یوه شپه یې له نوي دروازې څخه د ولي خلیفه شاملو پر مورچه برید وکړ ډېر قزلباش مړه او ټپیان سول. سلطان حسین د کندهار کلابندي پرېښووله، ولاړ. شاه طهماسب ورته په قهر سو. بیا یې د کندهار نیولو ته وگوماره. دا پلا یې پر ولي خلیفه شاملو سربېره د شېراز حاکم علي سلطان هم ورسره مل کړ. د قزلباشو لښکر چې کندهار ته راورسېد شاه محمد کلاتی بیا کلابند سو. یوه ورځ علي سلطان په توپک ولگېد مړ سو. د علي سلطان په مرگ سلطان حسین بیا بې زړه سو، نژدې و، چې دا پلا بیا کلابندي پرېږدي مگر شاه محمد کلاتي ته د اکبر حکم ورسېد او په هغه کې ویل سوي وه :-

"زما پلار همایون له شاه طهماسب سره وعده کړې وه چې کندهار به قزلباشو ته پرېږدي. اوس هغه وعده پر ځای کړه او کندهار سلطان حسین ته وسپاره".

شاه محمد خان د اکبر په امر د کندهار کیلۍ سلطان ته ورکړلې او پخپله د اکبر دربار ته ولاړ.

## سید قلندرشاه کندهاری :-

د بخارا پاچا امیر عالم خان منغیت (۱۳۲۹ - ۱۳۳۹ هـ ق) چې له مرکزي بخارا څخه د شرقي بخارا د حصار سیمې ته تښتېدلی و، له هغه ځایه افغانستان ته راوتښتېد. حصار شادمان د اوسنی دوشنبې [۴۵] جنوب شرقي خوا ته پروت دئ. دغه سیمه ټوله د حصار په نامه یادېږي. د حصار په دغه سیمه کې د نومړي امیر عالم خان د نیکه امیر مظفر منغیت (۱۲۷۷ - ۱۳۰۳ هـ ق = ۱۸۶۰ - ۱۸۸۵ ع) د پاچهۍ په وختو کې یو کندهاری شاعر اوسېده، چې قلندر شاه یې نوم او (جنوني) یې د تخلص په توګه کاراوه. قلندر شاه کندهاري په ۱۲۹۴ هـ ق کال = ۱۸۷۷ ع په حصار کې په پارسي ژبه یو منظوم کتاب جوړ کړ چې (معدن الحال) نومېد. معدن الحال پر دغو څلورو برخو وېشلی دئ :-

۱. د پیغمبرانو برخه
۲. د راشدینو خلیفه ګانو برخه
۳. د پخوانیو درویشانو برخه
۴. د متاخرو درویشانو برخه

د معدن الحال یوه خطي نسخه چې د شاعر قلندرشاه په خپل خط ده د ازبکستان د ابوریحان البیروني د اکاډیمۍ د ختیځ پېژندنې د انستیتوت د ختیځو کتابو په ذخیره کې ساتله کېږي. شفر ګڼه یې ۱۴۶۳ ده. د نسخې پاڼې ۲۷۱ دي، قطع یې ۲۵ × ۳۰ سانتۍ ده [۴۶].

---

[۴۵] د تاجکستان جمهوریت د ۱۹۲۴ ع کال د اکتوبر پر اووه ویشتمه تصویب او د دغه کال د نومبر پر شپږویشتمه یې حکومت جوړ سو. د تاجکستان د جمهوریت سویلي (جنوبي) برید (سرحد) د افغانستان له شمالي شرقي برید سره مشترک دئ. د تاجکستان جمهوریت اوسنی پایتخت د دوشنبې ښار دئ، چې د ۱۹۲۲ ع کال د اکتوبر پر دوه ویشتمه = ۲۳ سرطان ۱۳۰۱ هـ ش = د لوی اختر د میاشتې په شلمه ۱۳۴۰ هـ ق بالشویکانو ونیوه.

[۴۶] وګ : د دغه کتابتون د فهرست ۲ ټوک، ۳۵۶ مخ.

په دغه کتابتون کي د معدن الحال يوه بله خطي نسخه په ۱۹۱۳ گڼه کي خوندي ده. د معدن الحال دغه نسخه چي د ملا عبدالواحد زوی ميرزا همدم بلخي په ۱۳۲۷ هـ ق کال کښلې ده، پاڼي يې ۵۲۷ دي، قطع يې شپاړس په پنځه ويشت نيم سانتي متره کې ده. د معدن الحال د خطي نسخې په باب د نوموړي فهرست د اتم ټوک په ۸۵۳ مخ کې هم يادونه سته او د کتابتون د مهمو او وتلو نسخو په لړ کي ايښوول سوې ده.

## بابا عبدي گيلاني :-

د تحفة الکرام د دوهم ټوک په ۲۷۲ مخ کې کښلي دي :-

پارۀ از مقامات صوفيه تتبع نموده درذی درويشان روزگار گذرانيده بود. سی سال بسياحت قندهار بر سر قبر بابا حسن ابدال اقدامت نموده باقی حيات بسر آورد. در عروض و قافيه و معما بخشی داشته و شعر بعذوبت می گفته".

## جوهري کندهاری (ميمندی) :-

په تحفة الکرام کي ليکلي دي :-

"از شعرا است[۴۷]".

## صادقي کندهاری :-

په افغانستان در عصر گورگانيان ۲۵۷ مخ کي يې د همايون د دورې له شاعرانو څخه بللی دئ[۴۸].

---

[۴۷] تر دې وروسته د صبح گلشن ۱۰۰ مخ حوالې يې ورکړي دي نور ځای خالي پرېښوول سوی دئ، (هوتک).

[۴۸] د يادابښتو په يوه بل ځای کي د ده نامه ته د صبح گلشن (۲۴۲ مخ) حواله ورکړه سوې ده او ځای تش ورته پرېښوول سوی دئ (هوتک).

## حسن سنجري دهلوي :-

خواجه حسن از ارباب زاده های قندهار و از اعیان انجا است شعر خوب می گفت، (تحفة الکرام).

حسن الدهلوی سنجری الصوفی الشاعر جامع کتاب فواید الفواد توفی فی ۷۲۵ بدولت آباد (هاشم هروی).

حسن سنجري په ۷۳۸ هـ ق کال[۳۹] مړ او په دولت آباد کي ښخ دئ. سلطان محمد تغلق (۷۲۵ - ۷۵۲ هـ ق) چي د ډهلي خلک د دولت آباد (دلبر گیر) ته ولېږدول، دی هم په هغو کي دولت آباد ته تللی و.

د سلطان علاوالدین غازي په مدح کې ویلي دي :-

زفتح شاه عالم را بهار است / بهار او فتوح روزگار است
نهال ملك او زانست تازه / که آن پروردهٔ پروردگار است
درین حضرت زنو نو غنچهٔ فتح / همه ایام گویی نوبهار است
گل نصرت که رست از سبزهٔ تیغ / زسرسبزی بخت شهریار است
علاوالدین والدنیا که از وی / بنای دین و دنیا استوار است
محمدشاه بحروبر که اسلام / زتیغ بیقرارش برقرار است
بحمدالله که از باران عدلش / لوای ملك و دولت بر قرار است
نصار فتح بر رایات شه باد / که فتحش دین و دولت را مدار است
دعایش خواستم گفتن چه گویم / که عمرش چون عطایش بیشمار است

حسن زین بادشاه بنده پرور
چو دیگر بندگان امیدوار است

## خواجه ایوب انصاري رحمة الله علیه :-

وایي د خواجه عبدالله انصاري ورور دئ. د دوشنبې په ورځ یې ډېر

[۳۹] دا سنه په تېر بل یادابنت کي ۷۲۵ هـ راغلې ده (هوتک).

خلک په زيارت کي راغونډيږي[50].

## خواجه نيشابور کندهاري رحمة الله عليه :-

په تاريخ سنده ۱۴۱ مخ کې کښلي دي :-

له لوي وليانو څخه دئ. ډېر خوارق يې لرل. يوه ورځ يې د کندهار مشران ليدو ته ورغلل. څوک پلي څوک سپاره وو. دی پر ديواله سپور و د دوی هرکلي ته راووت او هغه ديوال تر نن ورځي (۱۰۰۹ هـ) پوري ولاړ دئ.

## ملا کبلی اخند :-

ملا غلام رسول اخند (ملا کبلی اخند) په قام بړېڅی د ګرمسير اوسېدونکی و. د ډهلي د حضرت ابي الخير عبدالله دهلوي مجددي مريد و. پنځه رسالې يې په عربي ليکلي دي :-

جامع الانوار في الصلوة على نبي المختار صلى الله عليه وسلم

جامع الدرر في نعت على نبي المختار صلى الله عليه وسلم

ياقوت الاحمر في صلوة على خيرالبشر صلى الله عليه وسلم

جامع الجواهر في اسماء الاخيار والكوامل[51]

رسالۀ ميزان المسوی فی تميز بين الشيخ الكامل والناقص

په هغه مكاشفه يا خوب کي چي د ۱۳۳۳ ه‍ ق د ربيع الاول په ۱۱ شپه کي ورپېښ سوی دئ د ډېرو انبياوو عليهم السلام او اولياوو کرامو سره يې ليدنه، معانقه او د لاس مچول کړي دي. چي په هغو کي د موضوع د

---

[50] تاريخ سنده، ۱۴۱ مخ. (مراد يې شين غزی بابا دئ، چي زيارت يې د احمدشاهي ښار جنوب ختيځ ته واقع دئ. هوتک).

[51] دا څلرمه رساله په ۱۳۲۶ ه‍ کي د ربيع الاول په ۱۲ ورځ پای ته رسېدلې ده.

ارتباط له حیثه دا کسان مورږ ته د ذکر وړ دي :-

۱. مولانا امیر بلند د گرمسیر (درویشان)

۲. امیران چخانسوري

۳. سیدالامیر فراهي

۴. امام بستي

۵. سید تاجدار گرشکي

۶. ابادانیال الانصاري (په نوزاد کي)

۷. امیر سید سالم (په عینک کي)




## تایب محمد تقي کندهاری :-

محمد تقي شاه کندهاری څه موده په کراچي کي و بیا د لس بیلې د حاکم جام امیر خان میر منشي سو. د شعر طبعه یې درلوده[۵۲].
په واقعات شاه شجاع ۱۱۸ مخ کي محمدتقي خان وکیل معرفي سوی دئ.

## ملا سعدالله کندهاری :-

عالم او فاضل سړی و. تصنیفونه یې درلودل. په نحو کي یې د مولوي عبدالغفور پر کتاب او په تفاسیرو کي یې پر جلالین حاشیې لیکلي وې، چي چاپ سوي دي. د کندهار په ښار کي زېږېدلی او په قوم خروټی و. په ۱۲۰۹ کي مړ سو او د کندهار ښار په عمومي هدیره کي ښخ دئ.

---

(۵۲) تکملهٔ مقالات الشعراء، ۹۰ مخ. (د یادښتو په یو بل مخ کي یې په بلوچستان کي فارسي شاعري، ص ۱۰۷ حواله ورکړې ده او ځای یې تش ورته پرې ایښی دئ. م. هوتک).

## عشرت کندهاری :-

حبیب الله صاحبزاده فاروقي نسب حنفي مذهب نقشبندي مشرب. ده په پارسي نظم یو کتاب کښلی دئ چي (شرارهٔ عشق) نومېږي. دا کتاب د جامي او میرزا همدم د عشق قصه ده. په ۱۳۱٦ هـ ق کال یې د کتاب په نظم پیل کړی دئ (د رجب لومړی). خطي نسخه یې ۹۹ مخه ده. هر مخ یې ۱۳ لیکي لري[۵۳].

د ملک الشعراء قاري عبدالله په تذکرة الشعراء کې لیکلي دي :-

عشرت : عبدالاحد صاحبزاده قندهاری سخنش سست و کلامش در بی ربطی، چست مردی خودستا و در بحر شعر ها آشنا، چندی در دارالسلطنهٔ کابل جنت تقابل بسر می برد، آخر رخصت شده قندهار رفت. فقیر در اوایل مشق سخن با او صحبت ها کرده بودم. در نظم و نثر خود را کامل و باکثر استادان مقابل می دانست، می گفت : مثل درهٔ نادره کتابی باندک مدت تصنیف می کنم. مگر منصفان انصاف فرمایند و اشعاراو را بنظر دقیق مطالعه فرمایند که اصلاً در کلامش نمک فصاحت و شیرینی بلاغت نیست. نغمهٔ عشرت است :-

کس نه جـویـد از پری رویان وفـا

وعده خوبان خلاف است و خطا[۵۴]

## عبدالاحد اخوندزاده کندهاری :-

مشهور عالم و. پر نصرالمدارک یې حاشیه کښلې ده، چي چاپ سوې

---

[۵۳] وګ : آریانا مجله ۲٦۱ ګنه، د خلیل مضمون. دغه راز پېښن لیک ۲۱۸ مخ.

[۵۴] علامه رشاد رحمة الله علیه دا خبره نه ده کړې چي د قاري ملک الشعراء له خوا د معرفي سوي (عشرت) په نامه کي تېروتنه پېښه ده او که دا (عشرت) کوم بل سړی دئ. په یادابښتو کي دواړه د (عشرت قندهاري) تر نامه لاندي قید دي او په فهرست کي یې همدې مخ ته حواله ورکړېده. زما په خیال دا برخه نوره څېړنه غواړي (هوتک).

ده. په کندهار کي زېږېدلی و او په ۱۳۰۱ کال د ۹۱ کالو په عمر مړ سو او د احمدشاهي ښار په عمومي هديره کي ښخ دئ. په قوم الکوزی و.

## داداش فتح قندهاري :-

د ملک الشعراء قاري عبدالله کابلي (۱۳۲۲ ه ش مړ) په تذکرة الشعراء کې د ده په باب کښلي دي :-

"داداش فتح قندهاری فاتح ابواب مهمل بیانی و شکنندهٔ شان قاآنی است دربنای این فن اساس متین گذاشته و دیوار ایوانش بلند برداشته کمند فکر (تادل) به کنگر الفاظش از کوتاهی نارسا و سباح طبع شهرت در بحر اشعارش نابلد شنا، غزلش نقل مجلس لوندان هزل پیشه، قصیده اش جاری برالسنهٔ لوطیانه فسق اندیشه".

کف پای مندرس رابدو چشم باز بستم
که خــروس داده را بول سر آشیانست

د مطبوعاتو د خطي نسخو په کتابخانه کي د داداش فتح قندهاري د پارسي اشعارو يوه خطي مجموعه سته.

## استاد کل عبدالحق اخوندزاده صاحب عليزی (د بينوا نيکه):-

په فضيلت او علم کي د خپل وخت وتلی شخصيت و. خورا لوی تصانيف لري. پر صحيح بخاري شريف، شرح حکمت او مطول باندي مستقلي حواشي لري چي چاپ سوي نه دي. د دغه فاضل د زېږېدلو ځای کندهار دئ او په ۱۲۸۸ ه کي د اتياوو کالو په عمر مړ سوی دئ. د کندهار په عمومي هديره کي ښخ دئ.

حضرت قدوه السالکين ملا نجم الدين اخوندزاده صاحب د هډې د

ځواني په وخت کي د ده له محضره تعليم کړی دئ[۵۵].

## نادرعلي کندهاری :-

په صحيفۀ خوشنويسان ۱۷۷ مخ کې کښلي دي :-

سيد نادرعلي کندهاری په خطاطي کي د (نادر رقم) خطاب موندلی و. مشران يې له کندهاره هندوستان ته تللي وو. نستعليق او تعليق يې ښه ليکه. د ده استاد معجز رقم کندهاری و، چي حال يې ښه نه دئ معلوم. د نادرعلي مېنه رامپور او د ديارلسمي هجري پېړۍ له خوشنويسانو څخه و.

## منصور خان بارګزی :-

په ۱۲۳۲ هـ ق کال چي د بلوچستان د خان مير نصير خان اول (۱۱۶۰ - ۱۲۰۸ هـ ق) يو دېرش کلن زوی مير محمود خان اول (۱۲۰۸ - ۱۲۳۲ هـ ق) په ګنجابه کي مريض سو، ملا محمدصديق ته يې امر وکړ، چي پخپل پلار (اخوند فتح محمد) او مير محراب خان پسي بهاګ ته سرې ولېږي او راوې غواړي. دا دوه تنه د خان په امر د سرابانو څخه د لښکر د راټولولو له پاره هغې خوا ته تللي وه، چي پر سيوی بريد وکړي او له خجک قوم څخه سهواني قبيلې د سردار مير محمد خان د شکست ورکولو انتقام واخلي.

د دې امر په رسېدلو سره په کومه شپه چي مير محراب او اخون صاحب له منصور خان دراني بارګزي سره، چي له ښکاپر څخه کندهار ته تلئ، ګنجابې ته راغلل. سهار ته يې مير محمود خان ومړ. سبا ته يې اخوند فتح محمد او منصور خان بارګزي او د بلوڅو سردارانو د حکومت جيغه د مير محراب خان پر سر کښېښووله[۵۶].

---

[۵۵] کابل مجله، ۱۱ ګڼه.

[۵۶] تواريخ بلوچستان، ۲۰۸ مخ.

د ۱۲۳۲ هـ ق کال د روژې پر شپاړسمه چې د جهلاوان او زهرې بلوڅو مشر سردار میر قادر بخش د ملا عبدالرحمن د زوی ملا عبدالقادر په لمسون خپل اخښی (د مایني ورور) میر مبارک په گنجابه کې وواژه. لږ ورځې پس منصور خان بارگزی، چې د وزیر فتح خان له خوا د ښکارپر حاکم و، د دې خبر په اورېدلو سره گنجابې ته راغی او اخوند صاحب یې د میر محراب خان په اجازت کندهار ته ورسره بوت او د شاهزاده کامران په حضورېې مشرف کړ او د میر مبارک د شهادت احوال یې وزیر فتح خان ته، چې په هرات کې و، ولیږه.

زمانشاه چې په ۱۲۱۳ هـ ق کال څو تنه سرداران په کندهار کې ووژل، منصور خان گرجیزی له فتح خان سره ترشیز ته ولاړ او د شاه محمود ملگری سول[۵۷].

## د وزیر فتح خان پیر :-

د وزیر فتح خان پیر او مرشد تر ډاډرپه ها خوا په بهاگ نومي ځای کې ښخ دئ. په دغه هدیره کې د مصطفٰی خان او رحیم خان قبرونه هم سته، چې د بلوچستان د فرمانروایانو له کورنۍ څخه دي. د وزیر فتح خان په نامه یو باغ په کابل کې و[۵۸].

## مولوي عطامحمد صاحب کندهاري :-

د خپل وخت لوی عالم و. په معقول او منقول و الهیات و فلسفه، نحو و ریاضي کې یې لوی لاس درلود. لوی تصانیف یې درلودل. پر عبدالغفور، قاضي سلم، شرح چغمني او شرح تازي یې مستقلي حاشیې لیکلي وې.

---

[۵۷] افغانستان در مسیر تاریخ، ۳۸۹ مخ.

[۵۸] سیداحمد، لومړی ټوک، ۳۱۷ مخ.

مولفات يې چاپ سوي نه دي. د کندهار په ارغسان کې زېږېدلی او په ۱۳۰۲ کال د ٦٩ کالو په عمر مړ او په ارغسان کې ښخ دئ. په قوم شيخ محمدی و.

## کندهاري ورونه




علامه استاد رحمة الله عليه د دې شجرې د بشپړولو فرصت نه دئ موندلی (م. هوتک)

# د سردار مددخان مسریخیل ساکزي کورنی

(د سردار مددخان پلار موسٰی خان نومېدی، چي د نادر افشار په لاس
په ۱۱۵۱ یا ۱۱۵۲ هـ ق کال وواژه سو، حیات افغاني – ۲۶۵ مخ)
(نهه زامن یې وه)

سردار میر افضل خان
(مشر زوی)

سردار حاجي دوست محمدخان
(د شاه شجاع په دوهمه پاچهي کي یې بندي کړ او څه
موده وروسته په دغه بندي خانه کي ومړ یا وواژه سو)

سردار سلطان محمد خان — لعل محمد خان

سردار سلطان محمد خان:
محمدامین خان
محمدحلیم خان
- علي محمد خان (تر ۱۳۴۵ پوري ژوندی و، د گرمسېر په لنډۍ کي اوسېدی)
- بې برگ خان (تر ۱۳۶۳ پوري ژوندی و په لنډۍ کي اوسېدی)

لعل محمد خان:
شهنواز خان
- مولاداد خان (د حبیب الله ساکزي په لاس وواژه سو، اولادونه یې پاته نه سول)
- حاجي محمدعمر خان (تر ۱۳۴۵ ؟ پوري ژوندی و. لس زامن یې وو)

علامه رشاد مرحوم د دې شجرې د افرادو په باب جزئیات کښلي دي خو له بده مرغه د هغو ترتیب د متن د زیات مغشوشوالي له امله ما ته ممکن نه دئ (م. هوتک).

## د قلات د خانانو شجره

میراحمد خان اول

۳۰ کاله د کلات خان و (۱۶۶۶ - ۱۶۹۵ ع)

میرمحراب خان

۱۰ کاله د کلات خان و

میراحمد خان

۱۰ کاله يې حکومت وکړ او د ورور میر عبدالله له خوا ووژل سو

میر عبدالله

۲۰ کاله حاکم و. په ۱۱۵۰ ه ق کال د کچهي په حدودو خانپور نومي ځای کي د سنده د کلهوړه پوځونو له لاسه ووژل سو

محبت خان

(لومړی پلا ۳ کاله دوهمه پلا ۱۵ کاله د قلات خان و. دوهمه پلا خاني نادرافشار د کندهار د کلابندی په وختو کي ورکړه)

التاز خان

(په کندهار کي د میر نصیر خان له لاسه ووژل سو)

نصیر خان اول

(۱۱۶۵ - ۱۲۰۸ ه ق)

میر محمود اول

(۱۲۰۸ - ۱۲۳۲ ه ق)

میر مصطفی

میر رحیم

میر محراب

(۱۲۳۲ - ۵ رمضان ۱۲۵۵ ه ق انګرېزانو شهید کړ)

میر نصیرخان

(۱۲۵۷ - ۹ شوال ۱۲۷۳ ه ق)

میر خداداد

(۱۲۷۳ - ۱۳۱۰ ه ق مستعفي سو)

میر محمود دوم

(۱۳۱۰ - .....؟)

## میوند :-

په تحفة الکرام کې کښلي دي :-

"از مضافات قندهار طولش فانه (۱۳۵) عرضش لح اک (۵۹) الحال بطور دهی مانده ...".

ابو الفداء په تقويم البلدان کي ليکلي دي :-

میمند من اقليم ثالث من زابلستان.

ترجمه :- میمند په دريم اقليم کي واقع دئ او د زابلستان سيمه ده[۱].

د سيرالمتاخرين په ۱/۶۵ مخ کې ليکلي دي :-

میمند پخوا د کندهار له مشهورو ځايونو څخه و. په زيچونو کي يې حال راغلی دئ. میمند په فارس کي هم يو کلی دئ، د شيراز جنوب ته دوه مزله ليري پروت دئ[۲].

## د میوند ځلي :-

د میوند ځلي د وزير محمدګل خان مومند د رياست تنظيمېي په وختو کي مسترکره شي ايټالوي نقشه کړ او حاجي محمدنعيم جان کندهاري معمارباشي جوړ کړ.

## د خواجه احمد میوندي ګمبته :-

د خواجه احمد ګمبته چي په دا اوسني شکل ليدله کېږي، د دغي

---

[۱] ترجمه په اصل کي نسته (م. ه).

[۲] ابن واضح يعقوبي د ۲۹۰ هـ ق په حدودو کي په البلدان کي د فارس په بحث کي د يوه میمند ذکر داسي کړی دئ :- له نوبندګان څخه تر شېرازه پوري شل و څو فرسنګه لار ده. نوبندجان د اردشېر خره؟ د ولايت يوه سيمه ده. چور او میمند ... يې مشهور کلي دي.

بناء تهداو د وزیر محمدگل خان د ریاست تنظیمیې په دوره کې اېښوول سوی و، مگر تر ۱۳۲٦ هـ ش کال وروسته بشپړ سو. معمار او ودانوونکی یې نعیم جان معمار باشي و.

# د میوند نومیالي

## خواجه منصور بن سعید بن احمد میمندی :-

خواجه منصور په غزني کي دېوان عرضي و. څه وخت په لاهور کي هم نایب و.

ابوالفرج روني د ده په ستاینه کي ویلي دي :-

امروز نشاطی است فره فـــضل و کـرم را
و امـروز وفاقیست عـــجب تیغ و قلم را
چرخی که جـهانی است ازو اختر و جدش
صوری که شکوهست ازو بالش و عم را[۳]

د خواجه منصور په ستاینه کي د ابوالفرج روني یوه بله قصیده هم سته (۱۷ مخ)، چي مطلع یې دا ده :-

روزگـــار عصیر انگـــور است
خم ازو مست و چنگ مخمور است

مسعود سعد سلمان هم د ده ستاینه کړېده. په یوه قصیده کي (۱۹۹ مخ) د ده علم و فضل و سخا داسي ستایي :-

---

[۳] جد = احمد بن حسن میمندی - عم = عبدالرزاق میمندی. ابوالفرج روني لاهوري د ابرهیم بن مسعود او د هغه د زوی سلطان مسعود بن سلطان ابراهیم ستاینې هم کړي دي، مآثر لاهور، ۱۰۷ مخ.

بزرگا سزدار کشی افــــتخار
که بیشک جهان را تویی مفتخر
ترا صدق بوبکر و عــــلم علی
ترا فضل عــــثمان و عدل عمر

مسعود سعد سلمان د ابوالفرج روني د هغي قصيدې په استقبال، چې د خواجه منصور په ستاينه کې يې ويلې ده، يوه غرا قصيده لري چې مطلع يې دا ده :-

قــوت روح خون انگــور است
تن بروفتنه گشت معذور است

## بهروز احمد ميمندي :-

د مآثر لاهور په ۱۰٦ مخ کې کښلي دي :-

د خواجه احمد ميمندي له کورنۍ څخه يو بل لوی سړی بهروز احمد دئ، چې په لاهور کې يې د غزني د دربار له خوا نيابت درلود او بيا وزير سو. ابوالفرج روني د ده په ستاينه کې يوه قصيده (۱۸ مخ) لري چې مطلع يې دا ده :-

گر بخت را وجاهت و اقبال را نداست
از خدمت محمد بهروز احـــمد است

د مسعود سعد سلمان هم دوې قصيدې (۹۱ مخ - ۳۹۷ مخ) د دغه وزير په ستاينه کې سته. د جوامع الحکايات په ۲۲/۱ مخ کې د خواجه بزرگ محمد بن عبدالحميد د خولې يو روايت سته، مگر دغه عبدالحميد د سلطان محمود په وختو کې خپل د سترگو ليدلی حال بيان کړی دئ.

## علي بن احمد میمندی :-

بیهقي په ۲۷۵ مخ کې وایي[۴] :-

## عبدالجلیل میمندی :-

ابوالفضل بیهقي وایي[۵] :-



## داود میمندی :-

تاریخ بیهقی (۶۵۸ مخ) د ۴۳۲ کال په پېښو کې لیکي[۶] :-

## خواجه عبدالحمید بن احمد میمندی :-

خواجه عبدالحمید احمد (عبدالصمد؟) د حسن میمندي له اولادې څخه و[۷]. د سلطان ابراهیم غزنوي او بیا د دوهم مسعود وزیر و، چې په دواړو پاچهیو کې یې د وزارت دوره ۳۸ کاله کېږي. ابوالفرج روني د ده په باب مدحیه قصیده لري، چې د ۲۰ مخ قصیدې مطلع یې دا ده :-

ترتیب ملك و قاعدهٔ علم و رسم داد
عبدالحمید احمد عبدالصمد نهاد

بله (۴۷ مخ) قصیده یې چې په قریب بحر کې یې د دغه وزیر په ستاینه کې ویلې ده، داسې شروع کېږي :-

بیار ای پسر ساقی کـــرام
ازان شمع مینا چراغی چو جام

مسعود سعد سلمان هم د دغه میوندي وزیر په باب مدحیه قصیده

---

[۴] د دغه شخص په باب تفصیلات نسته (م. هوتک).

[۵] [۶] د دغه اشخاصو په باب تفصیلات نسته (م. هوتک).

[۷] دا معلومه نه ده چې دغه عبدالحمید د احمد میمندي زوی دئ که یا؟

لري. يوه قصيده چي يې د بند په ابتداء کي د دغه وزير په نامه کښلي او په
هغه کي يې د ډېرو حيواناتو نادري تشبيه ګاني راوړي دي. دغه قصيده د
ديوان په ۴۰ - ۴۱ مخو کي راغلې ده. مطلع يې دا ده :-

چون از فراق دوست خبر دادم آن غراب
رنګ غراب داشت زمــانه، سياه ناب

د مسعود سعد سلمان يوه بله قصيده (۵۳ مخ کي) هم د دغه وزير په
ستاينه کي سته[۸].

## خواجه عبدالرزاق بن خواجه احمد ميمندی :-

د خواجه احمد حسن مشر زوی و، چي د محمود غزنوي د پاچهی په
آخر کي په (نندنه) کلا کي بندي و[۹]. په ۴۲۱ هـ ق کال چي خواجه احمد
حسن د سلطان مسعود په فرمان بلخ ته وغوښتل سو، خواجه عبدالرزاق يې
هم ورسره بوت[۱۰].

د تاريخ سنده په ۲۸ مخ کې کښلي دي :-

سلطان محمـود غزنـوي د هندوسـتان تـر نيولـو (۴۱۶ هـ ق) وروسته
ملتان ته ولاړ، او د بني عباس د خلفاوو حاکمان يې پسې واخيستل او ملک
يې پخپله قبضه کي راووست. وزير عبدالرزاق يې د سنده نيولـو تـه ولېږه.
دی لومړی بهکر ته ورسېد، هغه ملک يې فتح کړ او لس کاله پکښې پاتـه سو.
د دغه ځای چاري يې ښې سمبالي کړې او پـه ۴۱۸ هـ ق = ۱۰۲۷ ع کـي
سيوڼ ته متوجه سو او هغه يې هم ونيو. وروسې يې تهټه فتحه کړه.

---

(۸) مآثر لاهور، ۱۰۶ مخ، د لاهور چاپ، د هاشمي فريدآبادي تاليف.

(۹) دغه کلا به غالباً په ميانوالي کي وه (طبقات ناصري، لومړی ټوک، ۴۷۹ مخ)، چي په
۴۰۵ هـ ق کال د سلطان محمود غزنوي له خوا نيول سوې ده، (زين الاخبار، ۱۸۱ مخ).

(۱۰) بيهقي، ۱۴۹ مخ.

خو د همدې تاریخ د تعلیقاتو په ۳۹۵ مخ کې یې د طبقات اکبري په حواله کښلي دي چې د محمود په وزیرانو یا سپهسالارانو کې د عبدالرزاق په نامه څوک نه و، خو خواجه احمد بن حسن میمندي د عبدالرزاق په نامه یو زوی درلود، چې د امیر مسعود (۴۲۳ - ۴۴۰ هـ ق) د سیستان حاکم مقرر کړی و او نوموړي عبدالرشید بن مسعود (۴۴۱ - ۴۴۴هـ ق) له بنده راویوست او غزني ته یې بوت او هورې د علي بن مسعود پر ځای پر تخت کښېناوه.

په تحفة الکرام کې یې راوړي دي چې عبدالرزاق میمندي د سلطان مودود په وخت کې وزیر سو. اووه کاله یې له شاهي پوځ سره په سیستان کې تېر کړل او هغه ولایت یې له سلجوقیانو څخه ونیو. سلطان مودود د ده په غیاب کې مړ سو. درباریانو علي بن مسعود، چې په یوه کلا کې بندي و، پاچهی ته وهڅاوه او له عبدالرشید (بن مسعود) سره ونه دریدل[11]. عبدالرشید ته چې ملک پاته سو، وزارت یې عبدالرزاق ته ورکړ[12].

په ۴۴۴ هـ ق کال چې فرخزاد غزنوي د غزني پاچا سو، عبدالرزاق میوندي یې له وزارته معزول کړ او پر ځای یې خواجه حسن مهران وټاکه[13].

فرخي سیستاني (۴۲۹ هـ ق مړ) د خواجه عبدالرزاق میمندي په ستاینه کې قصیدې لري (قصاید فرخي، ۱۹ مخ). د یوې پیل یې داسي دئ:-

---

(۱۱) د مسعود زوی عبدالرشید د مودود په امر د بست او غزني تر منځ په یوه کلا کې بندي و. د مودود تر مرگ وروسته یې له بنده راویوست او شپږ کاله یې پاچهي وکړه.

(۱۲) تر دغه ځایه چې مو د عبدالرزاق میوندي په باب څه ولوستل، هغه مي د استاد له یاداښتو څخه له په لنډ ډول په پښتو واړول. ځیني برخي مي ځني وایستلې. تر دې وروسته علامه مرحوم د تاریخ بیهقي د تعلیقاتو ۱۱۰۲ مخ ته چې د استاد سعید نفیسي په قلم لیکل سوي دي، حواله ورکړې ده (هوتک).

(۱۳) پېښ لیک، ۴۴ مخ.

زآفتاب جدا بود ماه چندین شب
همی دوید بگردون برآفتاب طلب

د بلي قصيدې مطلع يې دا ده :-

ای دل من ترا بشارت باد
که ترا من بدوست خواهم داد

(قصايد فرخی، ۴۶ مخ)، دا قصيده ۳۲ بيته ده.

## احمد بن حسن ميمندی :-

احمد د کندهار د ميوند اوسېدونکی د سلطان محمود غزنوي وزير و، پلارېې د ناصرالدين سبکتگين (۳۶۶ - ۳۸۷) له خوا د بست حاکم و، احمد بن حسن ميوندي د سلطان محمود د زده کړې پر مهال د ټولګی ملګری و، تر اسفرانيي وروسته د وزارت چارې ور وسپارل سوې، د خپل لياقت په لحاظ د بغداد له درباره د شمس الکفات لقب ګټلی دئ. ابوالفضل بيهقي يې پخپل تاريخ کې د خواجه بزرګ په خطاب يادوي او د ده د فهم او لياقت او مړانې په ستاينه کې يې ډېر څه کښلي دي، عروضي سمرقندي هم د ده د لوړې انشاء او فضيلت په باب په چارمقاله کې حکايتونه لري. لوی عالم او په عربي کې د ستايني وړ شاعر او ليکوال و، د غزنويانو د دربار ملک الشعراء عنصري او فرخي سيستاني د ده په مدحه کې ډېرې درنې قصيدې ويلي دي. د سلطان مسعود غزنوي (۴۲۱ - ۴۳۲ هـ ق) په دربار کې هم دوه کاله وزير و. په ۴۲۴ هـ ق کال په هرات کې مړ سو. قبر يې په ميوند کې دئ[۱۴].

---

[۱۴] د احمد بن حسن ميمندي په باب يادښتونه د فوټوکاپۍ په وخت کې کنډو سوي دي. ما چې يوځه وکتل ټول هغه مطالب پکښې وه، چې علامه استاد رحمة الله عليه د خيرالبيان د کابل چاپ په سريزه کې راوړي دي. ما هغه کټ مټ رانقل کړل (هوتک).

په تاريخ بيهقي ٦٥ مخ کې کښلي دي چي احمد بن حسن ميمندي د سلطان محمود غزنوي د پاچهۍ په پای کي د کالنجر په کلا[١٥] کي بندي و.

په صحيفهٔ خوشنويسان کي يې د احمد بن حسن ميمندي نوم په خطاطانو کي راوړی دئ.

فرخي سيستاني د خواجه بزرگ (احمد بن حسن ميمندی) په ستاينه کي قصيده لري، پيل يې داسي دئ :-

ای وعدهٔ تو چون سرزلفين تونه راست
آن وعده های خوش که همی کردهٔ کجاست
(قصايد فرخی، ٢٦ مخ)

بل ځای فرخي د ده ستاينه داسي کړيده :-

سحر حلال خواهی رولفظ خواجه بشنو
نقش بهار خواهی رو روی خواجه بنگر
(١٨٧ مخ)

## حسن ميمندی :-

د امير ناصرالدين سبکتگين په وخت کې د بست په ديوان کي کار کاوه[١٦]. په تاريخ بحيره کي يې کښلي دي چي د سبکتگين په وخت کي د بست حاکم و او د خيانت تورپوري وتړل سو او د امير سبکتگين په امر په درخته وځړول سو[١٧].

---

[١٥] د کالنجر کلا د لاهور په شمال او د کشمير په جنوب کي واقع ده. د کالنجر لغوي معنا (توره کلا) ده.

[١٦] تحفة الکرام.

[١٧] د سردار پاينده خان زوی سردار جمعه خان چي د ١٢١۴ هـ کال د ذي الحجې په مياشت کي زيږېدلی او په ١٢٨٨ هـ کال د ٧۴ کالو په عمر مړ سو، د خواجه حسن ميمندي په مزار کي ښخ دئ، (سراج التواريخ، ٢ ټوک).

په تحفة الكرام کي د يو بل خواجه حسن ميمندي يادونه هم سته او وايي :-

"از ارباب زاده هاى قندهار و اعيان انجاست. شعر خوب ميگفت".




---

(۱۸) د پاړسي ژبي نامتو شاعر ابوالفرج روني لاهوري د منصور بن سعيد بن حسن ميمندي ستايونکی (مداح) و، دغه شاعر د سلطان ابراهيم بن مسعود او د هغه د زوی (سلطان مسعود بن سلطان ابراهيم) ستايني هم کړي دي.

## جنوبي میمندي :-

په تحفة الکرام کي د ده په باب راغلي دي چي "از قندهار بعراق عجم رفته بر گردید".

## جوهري میمندي :-

په تحفة الکرام کي د ده نوم په شاعرانو کي یاد سوی دئ او د (صبح گلشن) په ۱۰۰ مخ کې هم یادونه سته.

## محمدشاه انسي میمندي :-

په تحفة الکرام کې لیکلي دي:-

"گاه بسملی گاه وافی تخلص میکرد، در خدمت خانان خانان بسر میبرد، در لاهور بسال ۹۶۹ درگذشت".

د شمع انجمن په ۵۶ مخ کې کښلي دي :-

"محمدشاه از نواب زاده های کندهار بود بهند رفت در ۹۷۳؟ وفات شد".

## آتشي قندهاري :-

په افغانستان در عصر گورگانیان (۲۱٦ مخ) کې کښلي دي چي له بابر سره هند ته ولاړ او د واقعه نگار وظیفه یې درلوده. وروسته له همایون سره و او په ۹۷۳؟ کي مړ سو. د کلام نمونه یې :-

در شفق گشت شب عـــید نمایان مه نو
تا کنیم از پی جام می گلگون تگ و دو

**هلمند :-**

هلمند د افغانستان دوهم لوی رود دئ. د دغه رود سرچینه له کابله شخه ٦٠ کیلومتره لوېدیزې خوا ته د بابا په غره کې ده. هغه لارچې پخوا له بامیانه پېښور ته تلله، له دغې سرچینې شخه ۲۰ کیلومتره لیرې پرته ده. هلمند له سرچینې شخه ۱۱۰۰ کیلومتره لار وهي د سیستان په هامون کې لوېږي. د هلمند مصب هامون پنځه لکه کیلومتره مربع ساحه لري. د دغه رود نوم په ویدنو او اوستا کې Haetumant راغلی دئ او د آریانا وېجه یوولسمه سیمه یې بللې ده. د پاني ني په ابنت ادهیای کې د دغه رود سنسکریتي نوم Situmant کښلی دئ. یونانیانو دغه رود Etymantus بللی دئ. د دغه رود نوم د جوزجاني په حدودالعالم کې "هندمند" لیکلی دئ، خو میرزایانو هیرمند لیکه. ثعالبي هم په لطایف المعارف ۲۱۱ مخ کې هندمند راوړی دئ.

د هلمند رود مرستیالان د ارغنداو، موسی کلا او نوزات رودونه دي. د هلمند د غاړو سیمي چې اوس د هلمند په نامه یادېږي د افغانستان په اداري تشکیلاتو کې د یوه ولایت په توګه پېژندل سوی دئ. د دغه ولایت ختیځ ته د کندهار اوسنی ولایت، شمال ته یې روزګان او غور ولایتونه، لوېدیز ته یې چخنسور او شمال لوېدیز ته یې د فراه ولایت پروت دئ. زینداور، بست او ګرم سېل هغه سیمي دي چې په افغانستان کې د هلمند پر غاړو ودانې دي. زینداور د غوري واکمنانو ژمنی مېنه وه او اوس هم کوچیان په ژمي کې د نوزات له لاري زینداور ته ځي.

د هلمند د غاړو په سیمو او ښارونو کې بغنی (بغنین)، بغران، زینداور، سروان (کلا)، بست، خلج او بولان هغه سیمي یا ښارونه دي، چې په زړو متنونو کې یې یادونه سوېده. بغنی په حدودالعالم (د ۳۷۳ هـ ق تالیف)، باغران یا باغرام په طبقات ناصري (د ٦٥٨ هـ ق تالیف)، زینداور په کتاب

المسالک والممالک (د ۳۴۰ هـ ق تالیف)، بست د ابن واضح یعقوبي په البلدان (د ۲۵۸ هـ ق تالیف) او خلج په تاریخ بیهقي کي یاد سوی دئ.

حمدالله مستوفي په نزهة القلوب ۲۲۰ مخ کي لیکلي دي :-

د هیرمند رود، چي رزه یې هم بولي د غور له غرونو څخه راوزي له بست سره تېرېږي. څو ولې ځني ختلي دي چي آس په مشکله سره تر تېرېږي. د دغه رود اوږده یو سل و پنځه دېرش فرسنګه دي، (پنجاه مقاله ۴۴۵ مخ).

**بست** Bust :-

د پښتنو (کلابیس) Kala Bis

د ابن واضح یعقوبي (۸۸۸ – ۹۵۸ ع) په البلدان (۵۶ مخ) کي بست د سیستان له لویو ښارونو څخه ښوول سوی دئ[1].

جوزجاني په حدودالعالم (۱۸۷ مخ) کي لیکلي دي :-

له بسته تر ساروان پوري د فیروزقند پر لار دوه مزلونه دي. تر دوه مزله وروسته له ساروان کلا څخه چي تر هلمند اوړي او لوېدیزي غاړي ته تل واقع دئ. له تله تر درغشه یو مزل او تر باغنین پوري د یوې ورځې لار ده. بشلنګ (د اصطخري په حواله) د بغنین په جنوب کې دئ. اصطخري له بسته د داور خوا ته لومړی مزل فېروز قند بولي.

په تحدید نهایات الاماکن لتصحیح مسافات المساکن (۲۴۹ مخ) کي ابوریحان البیروني کښلي دي :-

د بست خلک د بست عرض (لای = ۴۱) بولي مګر ما چي د دقلطیانوس د زیچ له مخي وکوت د بست عرض یې (لت = ؟[2]) کښلی دئ

---

[1] رخج یې هم د سیستان یوه ناحیه بللې ده او د رتبیلانو پاچهي تر زرنجه پوري اوږده ښیي.

[2] دغه کلمه په فوتوکاپي کي کنډو ده، سمه نه لوستله کېږي، (م.ه).

او ارتفاع د جدي د ارصاد له مخي (لدی = ۴۴) راغی، البیروني وایي له دغه عمله څخه د بست عرض البلد (لدیه = ۴۹) راووت او دا عدد تر (لای) غوره دئ، چي د بست خلک یې وایي.

د احسن التقاسیم په ۵۰ مخ کي د بست ښارونه دا دي :-

طالقان، جالقان؟ بان (باز)، قرمه، نوزاد، داور، سروستان (سروان)، قریه الجوز - رخذ (رخود)، بکرواذ - پنجوایي، طلقان (تلوکان). د بست په باب د اویستا په هغه نسخه کي چي په سمرقند کي پیدا سوې او په ۸۰۰ میلادي کي کښل سوې ده، لیکلي دي :-

"د زریر Zairi vairi زوی بستوار Bastvar د بست ښار ودان کړ. دغه وخت ویشتاسپ د زریر ورور په فرزدان کي واو په عبادت بوخت و. فرزدان د ویشتاسپ د کورنۍ ټاټوبی و"[۳].

زریر د گشتاسپ ورور او د لهراسپ زوی دئ. په یادگار زریران کي د دغه پهلوان کارنامې راغلي دي. یوناني مورخ سارس میتی لیتی دی د یوه غښتلي پهلوان په دود یادوي. ویسټ Vest یې اصلي نوم (اسپه یاودا) بولي او زریر یې لقب گڼي، چي د زره وریا زرین کمربند تښتن معنا لري. زریر د خیوني واکمن ارجاسپ سره په جنگ کي وواژه سو.

عطایي کښلي دي :-

د بست په خلکو کي مشهوره ده چي د بست کلا د نوشیروان ساساني (۵۳۱ - ۵۷۸ م) وزیر بختک د نوشیروان په حکم جوړه کړېده. وایي نوشیروان د خورا ټینگي کلا په جوړولو وگماره. ده د هلمند او ارغنداو د رودونو پر گډونځي چي دغه کلا ودانه کړله، پاچا ته یاغي سو. نوشیروان پسي راغلی لښکرو یې ښار کلابند کړ. یو کال تېر سو د کلا د نیولو امید ورځ په ورځ ضعیفه کېدی. لښکرو ته یې د کوچ امر ورکړ، خو بختک ته یې پیغام

---

[۳] دغه یادونه په تاریخ مختصر افغانستان کي لوی استاد حبیبي هم کړېده.

وروليږه، ته ډېر ناځوانه سړی یې، ما ته دغونه (دومره) تيټ سړی نه بللې د نمک حق دي هېر کړ. د دې پيغام په ور رسېدلو بختک راووت، توره یې د پاچا په مخ کې کښېښووله او ورته وې ويل :-

ما غوښته دا درته ثابته کړم چې دا کلا د نيولو نه ده، که نه ستا هغه نوکريم، چې وم.

## د بست تلفظ :-

بست - (د بې په پېښ) Bust په حدودالعالم، اطلس قريه هاى افغانستان (قلعهٔ بست)، معجم البلدان، قاموس الاعلام ...

بست - (د بې په زېر) Bist مينارسکي د حدودالعالم په تعليقاتو کې.

Plinus پلينوس (۷۹ م مړ) یې د هلمند پر غاړه بسيي[۴].

بيوت - Bivt يا Biut - يوناني جغرافيه نګار Isidausvon Charx د ۳۷ م په شاوخوا کې[۵].

د کويټې نومي کتاب په ۱۴ مخ کې ليکلي دي :-

بهګبت پران د مهاديو (۱۴۰۹ ق م مړ) تاليف دئ. وايي دا کتاب د

---

[۴] بست (د بې په زېر) د ايران په خورخوره کې د يوه کلي نوم دئ. د ديوان درې په سيمه کې رابط نومی د دغې قريې اوسېدونکی و. رابط د پارسي ژبې ښه شاعر و. دا مقطع د ده ده :-

زجور تيره بختی شـکوه بی جا مکن رابط

که شب هر چند بی پايان بود آخر سحر گردد

زما په خيال که د (بی پايان) پر ځای (طولانی) وای ښه به و.

[۵] د دغه يوناني نوم ما همدغسي ولووست (هوتک).

تر دې ځايه وروسته علامه رشاد د بست په باب د لوی استاد حبيبي هغې مقالې ته اشاره کړې ده، چې د آريانا مجلې د ۱۳۵۱ کال په څلورمه ګڼه کې خپره سوېده. مقاله یې درنه بللې ده، (م. هوتک).

۱۴۵۰ ق م په حدودو کې تالیف سوی دئ. د بهگبت پران شرحه تلسي داس کړې ده. تلسي داس د ۹۵۰ ق م د حدودو سړی دئ. په دغه شرحه کې د (بشت من) په نامه یوه سیمه یاده سوې ده. غالباً له دغه څخه مطلب بست دئ[٦].

اصطخري د المسالک والممالک په ۱۹۲ مخ (فارسي ژباړه) کې لیکلي دي :-

زرنج، خواش، بست، روزان، سروان، صالقان، بغنین، درغش، تل، بشلنگ، پنجوای، کوهک، غزنه، قصر سیوی، اسفنجای او حابای د سیستان له ښارونو څخه دي او تر زرنج لوی ښار نسته.

د زرنج نیشک دروازه د بست خوا ته خلاصیږي.

په ۱۸۳ مخ کې بیا کښلي دي :-

په ۳۵۵ هـ ق کال چې الپتگین غزني ته راغی او دغه ښاریې لښکرگاه کړله، وضعه یې واوښتله.

د نزهة القلوب په ۱۷۴ مخ کې کښلي دي :-

بست په دریم اقلیم کې واقع دئ. طول البلد یې د خالوات له جزیرو څخه قب = ۱۰۲ او عرض البلد یې له خط استوا څخه لج = ۳۳ دئ. میانه ښار دئ. هوا یې معتدله ده اوبه یې له روده دي. خرما و غله و لږ میوه یې حاصلات دي.

ابراهیم محمد اصطخري په مسالک الممالک (تالیف ۳۴۰ هـ ق) کې لیکي :-

د سیستان په سیمه کې تر زرنج وروسته لوی ښار بست دئ او د خلکو کالي یې د عراق د خلکو غوندي دي، خلک یې بامروته دي، په دغه ښار کې د هند و سنده تجارت خانې دي. د انگورو او خرما وني لري، ډېر

---

(٦) وگ : ځیني متفرق یادابنتونه.

سمسور دئ. ابن حوقل په صورة الارض (۳۶۵ هـ تاليف) د اصطخري روايت رانقل کړی دئ او زياتوي :-

زمور په زمانه کي الپتگين حاجب په کابل او هند کي دئ پر غزني او د هغه پر شاوخوا حاکم دئ[۷].

د بست جبايات[۸]، مقاسمات، خراج، عبره (د کبنتيو محصول) يو لک دیناره او اته لکه درهمه دي په داسي حال کي چي بېله بسته څخه يې د سيستان او رخج جبايات و خراج يو لک دیناره او درې لکه درهمه شوولي دي. د جوزجان او د هغه د شاوخوا محصولات يو لک ديناره و څلور لکه درهمه دي.

په صورالاقاليم کې کښلي دي :-

(د بست) اوسېدونکي بامروته دي. احمد بن ابو يعقوب بن واضح معروف په اليعقوبي (۲۸۴ ه ق مړ) په کتاب البلدان کي چي په ۲۷۸ هـ ق کال يې ليکلی دئ، وايي چي بست د سجستان له لويو ښارو څخه دئ او د ابو جعفر منصور العباسي په خلافت کي معن بن زائده شيباني ونيو. خلک يې عجميان دي او د دې سيمي اطراف په سنده و هند پوري نښلي[۹].

محمد احمد البشاري المقدسي پخپل کتاب احسن التقاسيم (تاليف ۳۷۵ ه) کي ليکي :-

"بست قصبهٔ مرکزی آن سرزمین است و شهرهای مربوط آن عبارت اند از :-

جالکان يا (جالقان - صالقان - زالقان) چي اوس د کندهار په ۱۰

---

[۷] صورة الارض، ۱۶۰ مخ.

[۸] جبايت د خراج (محصول) د مالونو ټولولو ته وايي، غياث (م. ه).

[۹] کتاب البلدان، ۲۸۱ مخ، طبع ۱۸۹۲ ليدن. د بست او سجستان تر منځ فاصله ۶۰ فرسخه ده.

میلي کي د زله خان په معنا موجود دئ؟

بان - قرمه - نوزاد (په اصل کتاب کي بوزاد غلط چاپ سوی دئ).

ارض داور - صروستان یا (سورسان - سروستان).

الجوز (حوز - حور - الجور) رخود = (رخج - رخد) اوسنی کندهار.

بکراواز = (بکیرا - تکزاواز) اوسنی تگین آباد - پنجوایی.

کش (غالباً کشکنخود).

روذان

سفنجاوی (غالباً مصحف سفنجاری = سنجری = سنزری)

طلقان = (تلوکان د کندهار د جنوب غرب په ۲۰ میلي کي)

بست یکهزار و یکصد (۱۱۰۰) روستا دارد. برخی این شهرها را به سیستان منسوب دادند ولی سهواست. حتی که ابو زید بلخی (متوفی ۳۲۲ ه ق) نویسندهٔ کتاب الاشکال (تالیف ۳۰۹ ه ق) غزنین و بست را نیز جزء سجستان قرار داده است، برخی از مردم تمام آنرا کوره واحدی به نام کابلستان می شمارند[۱۰].

نوموړی البشاري بل ځای وایي :-

"قصبهٔ بزرگیست و مردم آن اهل دین و مرت و نعمت اند که به آیین درایت و خوی نرم خویش مشهور اند این قصبهٔ پاکیزه و سرسبز بین دو نهر افتاده میوه ها و آب و هوای سرد سیر و گرمسیر هر دو دارد. شهرهای آن نفیس و قراء آن زیادند. خرمای خوب، انگور فراوان و گل و ریحان دارند. از ابو منصور دانشمند سیستان شنیدم که گفتی :-

در دنیای شهری را باین کوچکی ولی دارای میوه ها و نعم فراوان و سرسبزتر ندیده ام. اما وبا دارد و شهر آن خیلی آباد است که مسجد جامع در آنجا است و ربض (حصار درونی) نیز دارد که بازار ها در آن اند مردم

---

[۱۰] احسن التقاسیم في معرفت الاقالیم، ص ۲۹۷ طبع دوم لیدن.

آن آب هیرمند (هیرمند – هرمید – هلمند) نوشند و دریای دیگر هم دارد که خردادی = (حردروی – ارغنداب) گویند. این دو دریا بفاصلهٔ فرسخی از هم آمیزند. در جای آمیزش هر دو دریا پلی از کشتی ها است و بر راهیکه بطرف غزنی روند بفاصلهٔ نیم فرسخ شهر کوچکی است شبه مدینه که آنرا (العسکر)[11] گویند و لشکریان و سلطان بدانجا باشند[12]".

ارغنداو چې په هلمند ګډېږي په ګډونځای کې یې د هلمند شرق او د ارغنداو شمال ته بست واقع دئ.

د عربو مورخینو له لیکنو څخه معلومېږي چې د عربو د فتوحاتو په سر کې ۵۰ هـ بست ودان ښار و او په دغه وختو کې د کابل رتبیلیانو د سیستان تر زرنجه پوري پر دغه سیمه تسلط درلود.

بست لومړی وار په ۵۴۶ هـ ق سلطان علاوالدین غوري څخه وران کړ، تېمور چې پر راغی کنډواله یې ځني جوړه کړه. د ګورګاني مغلو او صفویانو د پاچهیو تر منځ چې پر کندهار جنګونه روان وه، د بست کلا نظامي درنښت درلود.

ابو نصر احمد بن اسماعیل ساماني چې په ۲۹۷ کې له هراته حسین بن علي المزوري د سیستان نیولو ته وګماره، معدل بن لیث کلابند سو او خپل وراره ابو علي بن علي بن لیث یې بست و رخج ته واستاوه چې مالونه غونډ کړي او معدل ته یې ولېږي. ابو علي له بسته او رخجه څخه لښکري او مالونه راغونډ کړل سیستان ته یې مخ ونیو. احمد بن اسماعیل په هرات

---

[11] په سیستان کي هم تر ۲۰۰ هـ دمخه د زرنج تر ښار دباندي یو ځای د لشکر په نامه موجود و (تاریخ سیستان ص ۱۵۹). د العسکر په نامه نور ځایونه هم د عربو جغرافیه نګارانو راوړي دي: لکه د مصر العسکر. د رمله العسکر، د سامرې العسکر. د نیشابور العسکر (معجم البلدان یاقوت حموي).

[12] هماغه کتاب ۳۰۴ مخ.

کي په خبر سو، برید یې پر وکا، د بست لښکري یې ماتي کړې او ابو علي یې بندي کړ، مالونه یې واخیستل بوعلي یې بغداد ته واستاوه. حسین بن علي هغسي له معدل سره په سیستان کي په جنګ بوخت و، معدل چي د ابو علي په نیولو خبر سو، سیستان یې حسین بن علي ته وسپاره. حسین سیستان منصور بن الحق ته وسپاره او معدل یې د علي د زوی حسن سره بخارا ته ورسره بوت[۱۳].

د احسن التقاسیم مولف کښلي دي :-

د بست او غزني واکمنانو د بخارا ساماني دولت ته سوغاتونه ورلېږل او ساماني واکمنانو هم په دغه اکتفاء کوله. له دې څخه معلومېږي چي د بست محلي واکمنان تر ډېره حده آزاد وو او دغسي تابعیت یې ساماني دولت ته نه درلود لکه د ماوراء النهر سیمي.

د ۱۳۲۰ کال په کلنۍ کې کښلي دي :-

"بست په شپږمه عیسوي سدۍ کي د افتالیتانو لاس ته ورغی تر هغه وروسته عبدالرحمن بن سموره فتح کړ. څرنګه چي مهم موقعیت یې درلود د عربي مسلمانانو له خوا د عسکري قواوو مرکز (المعکسر) سو او د کابل د شاهانو پر ضد کار څني واخیستل سو. بست د مسلمانانو له نیولو څخه بیا د غزنویانو تر دورې پوري خپل پخوانی شهرت له لاسه ورکړی و. په ۳۶۶ کال د غزنویانو لاس ته ورغی، چي په منځنیو سدیو کي د بست د بل ځل لوړتیا او عمران دوره په غزنویانو پوري اړه لري. مورخینو بست زیاتره د دارالسلطنت په نامه یاد کړی دئ. د غزنویانو تر دورې سل کاله وروسته علاوالدین جهانسوز دغه ښکلی ښار څه وران کړ. د اتمي سدۍ په پای کي چي د ګوډ تېمور سېلاب زموږ پر هیواد راغی، بست ته سخته صدمه ورسېده. ګوډ تېمور د رستم بند چي د بست د مځکو د اوبولو منبع وه، وران

---

[۱۳] زین الاخبار، ۱٦ مخ.

کړ. تر تیمور وروسته د نادر افشار په فتنه ببخي له منځه ولاړ[۱۴].

عبدالحی گردېزی په زین الاخبار کي وايي چي یعقوب لیث د بست لومړنی سرهنگ و، چي د نصر بن صالح[۱۵] له خوا وټاکل سو او د سیستان امیري یې تر لاسه کړه. دی له سیستانه څخه بست ته راغی او دغه ښاریې ونیو. له هغه ځایه بنجوای (پنجوایي) او تگین آباد تـه ولاړ لـه رتبیل سره یې جنگ وکړ او هغه یې په چم وواژه...[۱۶].

ابوالموید بلخي[۱۷] په عجائب البلدان کي لیکلي دي :-

د گبرانو په بندهشت کې کښلي دي :-

پـه هلمنـد کـي د بست پـر برابـري يـوه چينـه وه. لـه اوبـو سره بـه ږېگ او د سرو زرو توټې ځني راوتلې. لړ تـر لـږه بـه د ورځـي زر دينـاره طلا ځني حاصلېدله. افراسیاب چـي لـه سیستان تـئ دغـه چينـه يـې پـه جادو (کوډو) وتړله. ویل کېږي چي پسله دریـو زرو کـالو بـه بیرتـه خلاصه سي.

د بغرا د ولې په کیندلو سره کېدای سي چي دغه روایت رشتیا سوی وي.

## په بست کي د محمد بن شداد رغړي پاڅون :-

د تاریخ سیستان په ۱۴۲ مخ کي راغلي دي :-

"زید بن منصور اندر خمسین و مائة به بست شد، بدان سبب کـه آنجا مردی برخاست از لغریان نام وی محمد بن شداد". لغړیان په هوتکو پښتنو

---

[۱۴] متن په پاړسي و (م. هوتک).

[۱۵] ابن خلکان ۴۶۳/۲ مخ، صالح بن نصر ضبط کړی دئ.

[۱۶] وگ : د ده کتاب، کندهار تر اسلام دمخه برخه.

[۱۷] ابوالموید بلخي د نوح بن منصور ساماني (۳۶۵ – ۳۸۷ هـ ق) د زمانې سړی و.

کي یوه پېښه ده. په بلوڅو کي هم لغړي سته[18].

لوی استاد علامه حبیبي د دغي پېښي په باب د افغانستان بعد از اسلام په ۳۱٦/۱ مخ کي کښلي دي :-

د ۱۴٦ هـ ق کال د کوچني اختر په میاشت کي د خلیفه ابو عبدالله محمد مهدي بن منصور د وانقي عباسي (۱۵۸ - ۱٦۹ هـ ق) ماما یزید بن منصور د سیستان والي وټاکه سو. په دغه وخت کي په بست کي یو لوی اړودوړ پېښ سو او خلک د عربو پر ضد پورته سول مشر یې محمد بن شداد لغړی و.

دوه تنه مجوسیان (زردشتیان) آذربه او مرزبان له خپلو ډلو سره د ده ملګري سول او په ګډه یې پر سیستان برید وکړ. یزید بن منصور یې جنګ ته راغی او سیستان یې عثمان تارابي ته وسپاره، څو جنګونه وسول پای ته یزید بن منصور ماته وکړه او نیشاپور ته په تېښته ولاړ.

## د معن بن زائده مرګ په بست کي :-

د یزید بن منصور تر ماتي وروسته معن بن زائده شیباني د دوهم عباسي خلیفه منصور عباسي (اواخر ۱۳٦ - ۱۵۸ هـ ق) له خوا د سیستان والي مقرر سو[19]. دی د ۱۵۱ هـ ق کال د برات په میاشت کي سیستان ته

---

[18] د لغړیانو په باب په روضة الجنات في اوصاف المدینه الهرات کي معین الدین محمد اسفزاري لیکلي دي : "در سنه سته و اربعین و مائه لغیریان خروج کردند". په حاشیه کي ورته لیکلي دي : "واقعهٔ لغیریان یا لغریان در روضهٔ یازدهم مذکور است ظاهراً نام طایفهٔ بوده از مردم هرات یا نام یکی از محلات آن شهر است که مردمش بیاری استاد سیس شتافتند".

[19] خلیفه منصور عباسي د ۱۵۸ هـ ق کال د لوی اختر د میاشتي په شپږمه د حجاز په برمیمون کي ومړ. ابو جعفر عبدالله منصور دوانقي بن محمد بن علي بن عبدالله بن عباس (جمله نوره نیمګړې پاته ده. م. هوتک).

راغی په رخذ (کندهار) کې له رتبیلانو سره وجنګېده.

په بست کې یوه ورځ د مانۍ پر بام ناست و د شرابو مجلس تود و، د بست خلک پر ورتوی سول، نس یې ورڅیرې کړ او په بست کې خاورو ته وسپارل سو. دا پېښه د ۱۵۲ هـ ق کال د لوی اختر د میاشتې په اتمه ورځ وه[۲۰].

## مظفر او د بست حکومت :-

په ۳۸۷ هـ ق کې چې سبکتګین په غزني کې ومړ، محمود زوی یې په؟ کې و. امراوو د ده کشر ورور اسماعیل چې د الپتګین د لور له خوا لمسی و، په غزني کې پاچا کړ.

محمود چې خبر سو، د ده جنګ ته یې ملا وتړله. د بست حاکم مظفر او د هرات حاکم بغراچوق یې د ځان مله کړل. مظفر هرات ته ورغی. محمود د غزني په دښت کې له اسماعیله سره وجنګېده، اسماعیل ماته وکړله په غزني ننووت او امان یې وغوښت[۲۱].

## سلطان غیاث الدین محمود د بست والي :-

په ۵۹۹ هـ ق کال چې سلطان غیاث الدین محمد سام غوري په هرات کې ومړ، سلطان شهاب الدین د طوس (مشهد) او سرخس په سیمو کې و، د بادغیس پر لار هرات ته راغی. پاتا چې خلاصه سوله د بست و فراه و اسفزار (شین ډنډ) حکومت یې خپل وراره سلطان غیاث الدین محمود ته، چې د سلطان غیاث الدین محمد سام زوی و ورکړ.

د زمینداور او فېروز کوه حکومت یې د سلطان غیاث الدین محمد

---

(۲۰) افغانستان بعد از اسلام، ۳۱۸/۱ مخ.

(۲۱) تاریخ سلطان محمود.

سام زوم او د سلطان شهاب الدين د تره زوی ملک ضياء الدين غوري ته ورکړ او هرات يې خپل خوريي ناصرالدين الپ غازي بن قره ارسلان سلجوقي ته ورکړ[۲۲].

## مُخَتر کلا (Muxattar) :-

دغه کلا د مختار کلا په نامه د افغانستان په جغرافيايي قاموس ۴۹۰/۳ مخ کې راغلې ده. هلته ورته کښلي دي :-

د لښکرګاه ختيز تـه يـوولس کيلـومتره ليـري يـوه متروکـه کـلا ده. ۶۴ درجې ۲۸ دقيقې ۱۵ ثانيې يې طول البلد شرقي، ۳۱ درجې ۳۷ دقيقې ۵۰ ثانيې يې عرض البلد شمالي دئ.

عبدالستار خان ضابط وايي :-

د مختار کلا او لښکرګاه په منځ کې سرکار واقع دئ. د سرکار فاصله له لښکرګاه څخه ۶ کيلومتره ده.

## د سلطان کلا :-

د بنادر او صفار تر منځ د هلمند رود پر کينه غاړه واقع ده. د سلطان کلا دوې دريمې برخې هلمند وړې ده اوس يې پاته برخه تقريباً پنځه جريبه ده. د سلطان کلا او ريګ تر منځ تقريباً ۱۵ کيلومتره فاصله ده[۲۳].

---

[۲۲] طبقات ناصري، ۴۷۲/۱ مخ.

[۲۳] د يادښتو په منځ کې ځيني برخې مکررات وو، چې ما نه دي اخيستي او په يـوه ځای کې علامه رشاد مرحوم د ثعالبي د لطايف المعارف ۲۰۵ مخ، د سرزمين هاى خلافت شرقى ۳۸۰ مخ او د آرتهر کرستن سن د ايران بعهد ساسانيان ۶۴۵ مخ ته اشارې لري او ځايونه يې خالي ورته پرې ايښي دي (هوتک).

**بایتوز :-**

**د تاریخ بیهقي په ۲۰۳ – ۴۵۰ مخونو کي راغلي دي[۲۴] :-**

# د بست نومیالي

**ابن حبان (Hibban) بستي مشهور په ابو حاتم بستي :-**

محمد ابن حبان بن احمد بن حبان[۲۵] بستي د بست له لویو علماوو او د اسلام له هغو محدثینو څخه دئ، چي په څلرمه پېړۍ کي یې خورا شهرت درلود. د ده تالیفات تقریباً ۲۵ ټوکو ته رسیږي، چي دغه تالیفات یې په متنوعو علومو کي دي. د ده مرگ په سیستان کي په ۲۲ د شوال ۳۵۴ هـ پېښ او جسد یې بست ته راوړی دی[۲۶].

هاشم هروي یې الحافظ ابو حاتم صاحب الصحیح لیکي. د کابل مجلې د دریم کال په لومړۍ گڼه کي لیکلي دي :-

ابو حاتم له ځوانۍ څخه د علم د تحصیل لېوال و او په دې لاره کي یې ډېر مزلونه ووهل. هر ځای چي به یې د عالم نوم اورېد، ځان یې ور رساوه. یاقوت حموي وایي ابو حاتم تر اویا تنو زیاتو مشایخو او استادانو صحبت، ارشاد او تعلیم موندلی دئ او د فقه و حدیث استاد یې ابوبکر بن محمد بن اسحاق دئ. ابو حاتم پر فقه سربېره په طب او نجوم، تاریخ او جغرافیا کي هم لاس درلود. چي له تدریسه به فارغ سو په تالیف به بوخت سو.

---

[۲۴] نوره تشریح نسته (هوتک).

[۲۵] حبان د (حاء په زېر) باید ولوستل سي. (وگ : تاریخ ابوالفداء حوادث ص ۳۵۴).

[۲۶] پښتو دائرة المعارف، ۹۰۲/۱ مخ.

خیرالدین زرکلي په الاعلام ۳/ ۸۸۰ مخ کې لیکلي دي چې د علم حدیث د ډېرو نقادو علماوو څخه و. په حدیث کې د ده (صحیح) نومې کتاب ته د قزویني ابن ماجه پر سنن ترجیح ورکړې ده او تر هغه یې غوره او صحیح ګڼي. تولد یې بالاتفاق په بست کې واقع سوی دئ. ابو حاتم خراسان، شام، عراق، مصر او الجزایر ته تللی و او بیا چې وطن بست ته راغی، ومړ.

په مولفاتو کې یې روضة العقلاء (چاپ سوی اثر)، علل ادهام اصحاب تاریخ (په لس ټوکه کې) او غرایب الاخبار (په شل جزء کې) ډېر مشهور دي.

ابو حاتم څو پلا په سمرقند او نورو اسلامي ولایاتو کې قاضي سوی دئ.

د محمد بن حبان البستي (۲۷۰ – ۳۵۴ هـ ق) شرح حال :-

د آریانا دائرة المعارف په ۱/ ۷۸۳ مخ کې.

د بروکلمان په تاریخ العربیه ۱/۱۶۴ – ۱/ ۲۸۳ مخونو کې.

د الانساب سمعاني په ۸۰ ب – ۸ – ۱۶ مخونو کې.

د یاقوت د معجم البلدان په ۱/ ۶۱۳ – ۶۲۰ مخونو کې.

الوافي بالوفیات الصغدي په ۲/ ۳۱۷ – ۳۱۸ مخونو کې.

د ابن حجر عسقلاني د لسان المیزان په ۵/ ۱۱۲ مخ کې.

د ابن کثیر د البدایه والنهایه په ۱۱/ ۲۵۹ مخ کې راغلی دئ.

تالیفات یې :-

۱. مشاهیر العلماء الامصار په قاهره کې په ۱۳۷۹ هـ ق – ۱۹۵۹ ع کې چاپ سوی دئ. دوه سوه مخه دئ او ۱۶۰۲ تنه مشهور اسلامي شخصیتونه (۴۱۸ تنه صحابه، ۵۶۴ تنه تابعین او ۶۲۰ تنه تبع تابعین) یې ښوولي دي.

۲. طبقات الاصبهانيه

۳. صحيح. سراج الدين عمر بن على مشهور په ابن الملقن الشافعي (۸۰۴ هـ ق مړ) اختصار کړی او امير علاء الدين علي بن بليان الجندي حنفي فقيه (۷۳۱ هـ ق مړ) پر بابونو وېشلی دئ.

## کاکا ابوالقصر بستي :-

د نفحات الانس په ۲۱۷ مخ کې ليکلي دي چي کاکا ابوالقصر بستي د شيخ الاسلام خواجه عبدالله د پلار د زمانې ولي و او له ملامتيه وو څخه و.

## خواجهٔ بست

د اخبارالاخيار په ۵۷ مخ کي محدث دهلوي شيخ عبدالحق ليکلي دي :-

د دهلي په مهر ولي کي د شيخ قطب الدين بختيار کاکي رحمة الله عليه د قبر د شمال خوا ته يو قبر دئ چي خواجهٔ بست يې بولي. ويل کېږي چي دی له لومړيو غازيانو سره دهلي ته راغلی دئ. د شيخ قطب الدين رحمة الله عليه تر مرگ دمخه دلته د ده قبر مشهور و. نور حال يې نه دئ معلوم.

## امام حسن بن احمد البستي

ابوالحسن علي البيهقي (۵۶۵ هـ ق) په کتاب جوامع احکام النجوم کي، چي خطي نسخه يې د تهران په کتابخانو کي سته، ليکلي دي :-

امام حسن بن احمد بن عبدالرحمن الساکن بستوای من نواحی بست ...

لوی استاد علامه حبيبي (بستوای) کلمه (بسيوری) لوستې ده او سيوری هم د کلات سيوری بولي او وايي د دغه بيهقي په بل کتاب شرح

نهج البلاغه کې ليکلي دي :-

الامام حسن کان مقيماً بيسواری و ناحيه بالشتان من نواحی بست[۲۷].

## ابو سهل بستي

د امير يوسف بن سبکتگين له هواخواهانو څخه و. د امير يوسف تر بند وروسته چي د ۴۲۲ هـ ق په جمادي الاخری کي پيښ دئ، دی هم وځپل سو او مالونه يې مصادره سول. ډېر فاضل او هوښيار و. مناعت نفس يې درلود. پای ته د بست حاکم سو او په بست کي مړ سو[۲۸].

## علامه امام خطابي بستي

فريد وجدي پخپل دائرة المعارف کي کښلي دي :-

"هو ابو سليمان احمد بن محمد بن ابراهيم بن الخطاب الخطابی (امام) البستی کان فقيها محدثا اديبا له عدت تصانيف جليله منها :- غريب الحديث، معالم السنن فی شرح سنن ابی داود، و اعلام السنن فی شرح البخاری، کتاب الشجاج و کتاب الشئان الدعاء و کتاب اصطلاح غلط المحدثين و غير ذالک[۲۹]. تلقي الحديث بالعراق علی ابی علی الصفار و ابو جعفر الرزاز و غيرهما و روی عنه الحاکم ابو عبدالله بن البيع النيسابوری[۳۰] و ابو الحسن عبدالغفار بن محمد الفارسی (متوفی ۴۴۸ هـ) و

---

[۲۷] د استاد ياد، ۶۴ مخ.

[۲۸] تاريخ بيهقي، ۲۳۱ مخ.

[۲۹] هاشم هروي پخپلو منقولاتو کي د حافظ ابوبکر محمد الخطابي (۳۵۵ هـ مړ) يادونه کوي، ګوندي دا سړی د علامه امام خطابي پلار وي.

[۳۰] ابو عبدالله محمد بن عبدالمبين بن نعيم الضبي الطماني نيشابوري چي په ابن بيع مشهور دئ له لويو مصنفانو او محدثينو څخه دئ. صحيح في الحديث او مستدرک علی

ابوالقاسم عبدالوهاب بن ابی سهل الخطابی و غیرهم.

ژباړه :- ابو سليمان احمد بن محمد بن ابراهيم الخطاب چي د امام بستي په نامه يادېږي، فقيه، محدث او اديب و. لوی تصنيفونه يې کړي دي او په هغو کي غريب الحديث، معالم السنن چي د ابي داود د سننو شرحه ده، اعلام السنن چي د البخاري شرحه ده، کتاب الشجاج، کتاب الشئان، کتب اصطلاح غلط المحدثين او نور دي. په عراق کي يې له ابي علي صفار، ابو جعفر رزاز او نورو څخه حديثونه اورېدلي دي او له ده څخه ابو عبدالله بن بيع نيشابوري او عبدالقاسم عبدالوهاب بن ابي سهل خطابي روايتونه کوي[31].

د اسماء الرجال په باب ثاني ذکر ايمه اصحاب الاصول حديث کي ليکي :-

هو امام ابو سليمان احمد بن محمد الخطابی البستی المشار اليه في عصره و العلامه فريد دهره في الفقه والحديث والادب و معرفه الغريب، له تصانيف و تاليفات مشهوره. العجيبه مثل معالم السنن (فی شرح سنن ابی داود)، و اعلام السنن، و غريب الحديث و غير ذلک.

د مواهب الفتحيه په ۱۴۰/۲ مخ کي ليکلي دي :-

د امام خطابي ور نيکه (خطاب) د حضرت عمر رضي الله عنه د ورور زيد بن الخطاب له اولادې څخه و. په ۳۱۹ هـ ق کال زېږېدل او په ۳۸۶ هـ ق کال په بست (بضم باء بلد بسجستان) کي مړ دئ. شيخ حمزه فتح الله د مواهب فتحيه مولف وايي د خطابي اصلي نوم حمد (د مصدر صيغه)[32] و. عوامو

---

الصحيحين يې مولفات دي. دی په ۳۲۱ هـ ق کال په نيشابور کي زوکړی او په ۴۰۵ هـ ق کال هورې مړ دئ (کابل مجله، ۳ کال، ۹ گنه، ۱۶ مخ).

[31] ژباړه زما ده (م. هوتک).

[32] د لومړي، دوهم او دريم په فتحه، (م. هوتک).

الف پر زيات کړ.

د خطابي د شعر نمونه چي په مواهب الفتحيه کي راغلي ده :-

و ما غربت الانسان فی شقه النوی
و لکنها والله فی عدم الشکل
وانی غریب بین بست و اهلها
و ان کان فیها اسرتی و بها اهلی

شر السباع العوادی دونه وزر
والناس شرهم مادونه وزر
کم معشر سلموا الم یوذهم سبع
و ما تری بشر لم یوذه بشر

امام پخپله زمانه کي له گردو محدثينو، فقهاوو او ادباوو څخه براعت درلود[۳۳].

د کابل مجلې د دريم کال په دريمه گڼه کي ليکلي دي چي امام خطابي د ۳۸۸ هـ ق کال د ربيع الآخر په شپږمه مړ دئ. تولد يې په ۳۱۷ هـ = ۹۲۹ ع کي پېښ دئ. د علم په تحصيل پسي يې د نړۍ مختلفو هيوادو ته سفر وکړ او په عراق کي يې له بوعلي صفار او ابو جعفر رازی او نورو څخه د حديث سماع وکړه ... په عربي يې ښه اشعار ويلي دي او په مولفاتو کي يې شرح اسماء الحسنیٰ او کتاب العزله هم دئ.

## البستي

په الزريعه ۳۹۴/۶ مخ کي د ده يادونه سته او سفينه لی قرينه ؟ د ده تاليف دئ.

---

[۳۳] د غياث اللغات په حواله، براعت = فصاحت، فضيلت (م. هوتک).

## ابوالفتح بستي

فريد وجدي په دايرة المعارف ۱۸٦/۱ مخ کي کښلي دي :-

"هو ابو الفتح البستي علي بن محمد الكاتب الشهر المتوفى فى ۴۰۰ ه (يا ۴۰۱ ه في البخارا) فى بلاد ترک و كان قدر حل اليها عرضاً ...".

فريد وجدي د ثعالبي له خولې وايي، چي ابوالفتح په تجنيس کي يوه نوې طريقه را ايستلې وه او دې طريقې د ده شعر (عجب الصنعه او بديع الصبغه) کړی و.

ابن خلکان يې ابوالفتح علي بن محمد بن حسين بن يوسف بن محمد بن عبدالعزيز بولي او ياقوت حموي وايي چي علي بن محمد بن احمد بن حسن بن محمد بن عبدالعزيز نومېده. وفات يې په ۴۰۰ هـ ق يا ۴۰۱ ه ق کي په بخارا کي واقع دئ. په عربي او پاړسو کې دېوانونه لري.

په نيشاپور کي د سلطان سبکتگين له خوا د ابو علي سمجور د ماتي په اړه ابوالفتح بستي ليکي :-

الــم تر مـــا اتا ابو عـــلى

و كـــنت اراه ذاراى و لـــيس

عصى السلطان ما بتدرت اليه

رجـال يتلـــعون ابا قـبيس

و صـير طوس معـقله نصارت

عليه الطوس اشام من طوليس

ژباړه :- څه چي بوعلي سمجور وکړل (زه يې حيران کړم) ما دی هوښيار باله، خو دی پاچا ته ياغي سو. ځکه نو ده جنګ ته هغه کسان ورغلل چي د ابو قبيس غرېې له بېخه راکيښ، ده طوس پناه ګاه وټاکه، خو هغه تر طوليس بد فاله سو. (د طوليس څخه مراد طاوس بن عبدالمنعم دئ چي د صدراسلام له ښو سازندګانو څخه و. يادنامه بيهقی، ۷۵۹ مخ).

په کشف الظنون ۱۳۳٦ مخ کي د ابـوالفتح يـوه قصيده د (قصيده البستی) تر نامه لاندي سته چي مطلع يې دا ده :-

زياده الـــمرء في دنيا النقصان
وربحه غير محض الخير خسران

دا قصيده شپېته بيته ده موضوع يې معارف او زهد دئ. يوه شرحه يې ذوالنون بن احمد سرماري (٦٧٧ هـ ق مړ)، بله شرحه يې نقره کار (سيد عبدالله) کړې ده. بدرالدين جاجرمي شاعر دغه قصيده پارسي کړې ده[۳۴].

د کتابخانه ملی په لسم توک ۱۴۷ مخ کي د يـو بياض پېژندگلوي راغلې ده، چي په دې بياض کي د ابوالفتح بستي اشعار هم سته.

في ذم الزمان الخوان (خيانت کوونکې) :-

معنی الزمان[۳۵] علی الحقيقه کاسمه
فعلام* ترجـــوا انه لايزمـــن
لـــيس الامان من الزمان بممـــکن
و من المـــحال و جور ما لا يمـــکن

اذا حستت من طبعی فتوراً
ولفظی والبراعه والبـــيان

---

(۳۴) تر دې وروسته علامه رشاد رحمة الله عليه کښلي دي : د يتيمة الدهر في محاسن اهل عصر په شپږم باب کي د ابوالفتح بستي او نورو بستيانو په باب له ۳۰۰/۴ مخه تر ۳۴۲ پوري، په تذکرۀ دولتشاه سمرقندي (۲٦ مخ) او د ابن خلکان د وفيات الاعيان په ۱۸۴/۱ مخونو کي تفصيل او بيان سته، (هوتک).

(۳۵) د زمانې لغوي معنی ده : پر ځای پاته سوی.

* پر څه باندي ته دا هيله لرې، چي در څخه پاته به نه سي.

فلا ترتب بفهمی ان رقصی
علی مقدار ایقاع الزمـــان

تالم قلبی لیتنی کنت میـــتاً
و ادرکني ما کنت منه اخـــاف
حذفت و غیری ثابت فی مکانه
کانی نون الجمع حـین یضاف

(نفحة المبین، ۲۲۶ مخ)

ان العـــقول لها مـــوازین بها
تلقی رشاد الامر و هی تجارب

(تاریخ بیهقی، ۹۰۵ مخ)

کظلمه اللیل سخـــطاً کالنـــهار رضیً
کالشـــمس ریاً و رایاً کالحـــیا کرماً
کالیمـــین و الامن الایمان منـــبلجاً
کااللیث والغیث طبعاً ان سمی و حمی

(روضة الجنات، ۷۳ مخ)

## امام عبدالله البستي

ملا معين اخند پخپل بياض کي د هاشم هروي منشاء او بدخشاني مولد د منقولاتو په حواله ليکي چي امام عبدالله د معدل زوی د بست اوسېدونکی د حضرت امام رباني المجتهد فی المذهب بن حسن الکوفي او محمد شيباني صاحب ابي حنيفه رحمة الله عليه، چي په ۱۸۹ هـ کي مړ دئ[۳۶] شاګرد و. په ۲۲۰ هـ کي مړ سو. د ډېرو کراماتو تبنتن و.

[۳۶] محمد الشيباني د جامعين الصغير والکبير او ډېرو نورو کتابو مولف دئ.

## شیخ عبدالله البستي رحمة الله علیه

شیخ عبدالله ابوالعباس بستي د محمد د نافع د مکرم زوی د بست دئ، چي د کندهار له مضافاتو څخه دئ.

وایي :- ده اویا کاله اړخ پر مځکه کېښې نه ښوو او پر دېوال یا ستن یې څنګ ونه لګاوه. دی له نیشابوره حرمینو ته ولاړ. څه عمر په بیت المقدس کي واوسېد. وفات یې د ۳۰۴ هـ د محرمي په میاشت کي پېښ دئ.

جناب شیخ عبدالله بستی
که بود او پیر حق آگاه هادی
بتاریخ وصال او خرد گفت
ابوالعباس عبدالله هادی

(خزینة الاصفیاء ۱۷۸/۲ مخ)

## ابو محمد عبدالله البستي

ابو محمد عبدالله محمد بن عمر بن محمد بن عمر بن رشید الفهري البستي[۳۷].

## ابوالقاسم بستي

د آریانا دایرة المعارف په ۳۹/٦ مخ کي د ابوالقاسم بستي مولفات داسي ښوولي دي :-

کتاب الاشجار و النبات، کتاب وصف هوا و جرجان؟ کتاب جوابه فی قدم العالم، کتاب فی علت الوزیر الموجه بوجهین، کتاب صون العلم و

---

[۳۷] علامه رشاد مرحوم په دغه ځای کي History of Muslim د ۳۲۴ مخ د لیدن چاپ ۱۹۵۲ حواله ورکړې ده او ځای یې ورته پرې ایښی دئ (م. ه).

سیاست النفس، رساله فی سیر العضو الرئیس من بدن الانسان.

او وايي چي د ده د ژوند حالات معلوم نه دي.

د الذریعه الی تصانیف شیعه په ۳۰۹/۶ مخ کي راغلي دي چي کتاب الحدیث د ابوالقاسم بستي تالیف دئ او ابن شهر اشوب په معالم العلماء کي د هغه ذکر کړی دئ.

## ابو الحسن بستي

شیخ ابوالحسن بستي یو تن له هغو مشهورو فضلاوو او عرفاوو څخه دئ چي په څلرمه پېړۍ کې په بست کي استوګه کوله. د شیخ ابو علي فارمدي له شاګردانو څخه و. کله کله به یې اشعار هم ویل. دغه الفاظ د ده له کلماتو څخه دي :-

دیدیم نهان گیتی واصل دو جهان
وزعلت و عار گذشتیم آسان
وان نور سیه زلانقطه برتر دان
زان نیز گذشتیم نه این ماند و نه آن[۳۸]

د کابل مجلې د اول کال د ۷ ګڼې په ۶۱ مخ کي یې کښلي دي چي ابوالحسن محمد بن عبدالله بن جنید بستي لوی فقیه او محدث و.

د تحفة الکرام په ۲۶۱/۲ مخ کې لیکلي دي :-

"خانقاه سکاکیه در شهر سمنان جایی بانام است از مردمش سکاف (سکاک باشد) از اصحاب ابو الحسن بستی بود".

## ابو احمد بستي :-

محمد د ابراهیم زوی د محمد لمسی د محدث بستي جناح ابو محمد

[۳۸] پښتو آریانا، ۹۱۱/۱ مخ.

کړوسی دئ. په ۳۴۶ هـ ق کي د بغداد له لاري حج ته ولاړ او حديث يې د اسحاق بن ابراهيم القاضي البستي او صاحب حامد بن آدم څخه زده کړل [۳۹]

## الامام ابو سعيد محمد بن ابوبکر بستي :-

د امام اعظم رحمة الله عليه د هغي رسالې په سند کي چي عثمان بستي ته يې ليکلې ده، د ده نوم ليکلی دئ :-

عن الامام ابی صالح محمد بن الحسين سمرقندی عن الامام ابی سعيد محمد بن ابی بکر البستی عن الامام ابی الحسن علی بن احمد الفارسی عن الامام نصر بن يحيی فقيه، عن الامام ابی عبدالله محمد بن سماعة التميمی عن الامام قاضی ابی يوسف يعقوب الاصفاری، عن الامام الاعظم سيدی ابا حنيفه النعمان رضی الله تعالی عنه و عنهم.

## عثمان بستي :-

عثمان بستی د حضرت امام ابي حنيفه رحمة الله عليه (۸۰ - ۱۵۰ هـ ق) معاصر و. امام ابي حنيفه صاحب يوه رساله د ده په نامه ليکلې ده چي د مجموعه الرسايل عشره دوهمه رساله او په ۱۲ مخ کي داسي ثبت ده :-

بسم الله الرحمن الرحيم

من ابي حنيفه الی عثمان البستی سلام عليک فانی احمد اليک الله الذی لااله الاهو امابعد او حيک بتقوی الله تعالی و طاعة و کفی بالله حسيبا و جايزا بلغنی کتابک و فهمت فيه من نصيحتک و حفظک لنا ...

---

[۳۹] پښتو آريانا دائرة المعارف ۸۶۴/۱ مخ.

## بونصر بستی (دبیر) :-

بیهقي پخپل تاریخ ۱۵۷ مخ (تالیف ۴۵۰ هـ) کي لیکلي دي :-

بو نصر بستي دبیر چي نـن پرکـار ولاړ دئ، تکړه سړی او نېک دبیر دئ. ښکلی خـط کـاږي. پـه هندوستان کـي يـې د خواجـه احمـد حسـن میوندي خدمتونه کړي وه او کله چي خواجه احمـد حسـن لـه هندوستانه بلخ ته تلئ، بو نصر ورسره ولاړ. خواجـه چـي پـه ۴۲۲ هـ ق کـال د امیر مسعود وزیر سو، بو نصر يې ونازاوه او د مالیاتو په راغونډولو پسې ولېږی. د خواجه عبدالرزاق په وزارت کي بونصر د (صاحب دېوان رسالت) و.[۴۰]

## د ابوالفضل بستي لور :-

بیهقي د خپل تاریخ په ۲۹۹ مخ (نوي چاپ) کي لیکلي دي :-

د ابوالفضل بسـتي لـور ډېره ښکلې ښځـه وه. ډېر محتشمانويـې د غوښتني هڅي وکړې، خو دې تر مرګه پوري مېړه ونـه کـړ. دا ښځـه د هغي مينځي ديني مور (مادر خوانده) وه، چي د غازي سپهسالار سلطان مسعود غزنوي حرم سرای ته يې په خلاصه پښه تګ راتګ درلود. دې ښځـي خـورا ښکلی خط کیښ او په پارسي کي يې ډېره ښه لیکنه کوله[۴۱].

## عبدالله جبلي بستي :-

د دريم هجري قرن په لومړي نيمايي کي په بست کـي عبـدالله جبلـي پورته سو. د بست لـه حـاکم عبـدوس (عبـدالله بـن محمـد) سـره وجنګېـد.

---

[۴۰] پورتنی متن د استاد رحمة الله علیه په یادابښتو کي په پاړسي نقل سوی و. ما يې لنـډيز پـه پښتـو کو، (هوتک).

[۴۱] پورتنی متن د استاد رحمة الله علیه په یادابښتو کي په پاړسي نقل سوی و. ما يې لنـډيز پـه پښتـو کو، (هوتک).

عبدوس سیستان ته وتښتېد. د سیستان حاکم یو لښکر د محمد بن سیف تر مشرتابه لاندي بست ته ولېږه، او هغه دغه اغتشاش ارام کړ. تر دې پېښې وروسته د محمد بن یزید تر مشرتابه لاندي بیا د بست خلک پورته سول. دا پلا عبدوس دغه اغتشاش ارام کړ (۲۲۱ هـ ق).

## حرب بن عبیده بستي :-

د حمزه سیستاني په پیروي حرب بن عبیده په بست کي عربو ته پورته سو. دی د خاش اوسېدونکی و. تر ۱۹۹ پوري یې د خپلواکۍ غوښتلو هنګامه توده ساتلې وه. عربي حاکم اشعث بن محمد دده سره په جنګ کي بندي سو. د سیستان عربي حاکم محمد، چي د اشعث پلار و، د زوی په بند چي خبر سو، پر بست یې برید وکړ خو په ماتي سیستان ته ستون سو. حرب سیستان ته پسي راغی او سیستان یې هم ونیوه. په ۲۱۳ هـ ق کال وژل سوی دئ[۴۲].

## شیخ احمد نوقاني رحمة الله علیه (خوجین خان بابا؟) :-

په تحفة الکرام ۱/۸۸ مخ کې کښلي دي چي نوقان[۴۳] د بست یو کلی دئ او د تاریخ مبارکشاهي په حواله لیکي :-

شیخ ځلور کاله تر مرګ وروسته هماغسي مخ پر قبله پر جای نماز باندي ناست و. د هغه ښار قاضي د مهرباني له مخي شیخ تکیه کړ خو دی

---

[۴۲] تاریخ مختصر افغانستان، ۱/۱۰۳ مخ.

[۴۳] په روضة الجنات في اوصاف مدینة الهرات (تالیف ۸۹۷ هـ ق) کي مولا معین الدین اسفزاري لیکلي دي چي نوقان د بست له مضافاتو څخه دئ، ښایي (نلغام) وي. د نلغام په نامه یو کلی د پنجوایي په اولسوالي کي اوس هم سته.

پخپله ځای پر ځای مړ سو[۴۴] او ډېر خپلوان او دوستان يې ورسره مړه کېدل. دا بخوله تر هغو وه چي شيخ يې بيرته پر خپل پخواني حال کښېناوه.

## ابوالمکارم فيض الله بن محمد نوقاني :-

هاشم هروي د ده يادونه کوي او ليکي چي په ٦٠٠ هـ ق کي مړ دئ.

## شمس الدين البستي :-

شاعر شيوا بيان دئ[۴۵].

---

[۴۴] يادابنت پارسي و (م. ه).

[۴۵] نور تفصيل يې نسته، (م. ه).

# د کندهار مالیه، مســــکوکات، مزلــــونه او...

## د کندهار مالیه او منطقې :-

غبار د افغانستان د رمسیر تاریخ په ۳۰۳ - ۳۰۶ مخونو کې کښلي دي:-

د کندهار ولایت مالیه په ؟ کي شپېته ملیونه درمه وه او دا علاقې په کندهار ولایت کي شاملي وې :-

دوکی، پښین، شال دره، مستنگ، د غلجو قلات (چي غبار د هزاره وو بللی دئ)، تیری (تیرین)، گرمسیر، زمینداور، کشکنخود.

پر دغو روپیو سربېره شپږ څلوېښت زره پسونه، پنځه څلوېښت آسه او څو زره خرواره غله هم د کندهار له ولایته څخه د جنسي مالیې په نامه اخیستله کېدله.

دا د بابر د کورنۍ د زمانې مالیه وه، چي ابوالفضل راوړې ده.

د افغانستان د رمسیر تاریخ په ۳۰۶ مخ کي د کندهار د ولایت مالیه نقده ۵۲۷ تومانه (۱۸ دیناره = تومان، هر تومان = ۸۰۰ درمه).

## کان طلا :-

د امیر شېرعلیخان په پاچهۍ کي هغه وخت چي سردار محمدامین خان د کندهار والي و (۱۲۷۷ هـ ق) دغه کان پیدا سو[1]. دا چي یعقوب علیخان خافي لیکلي دي د طلا کان د بابا ولي د زیارت په شاوخوا کي پیدا سوی دئ، سمه خبره نه ده. د طلا کان د احمدشاهي ښار په شمال کي د مقصود شاه د غره په غربي څنډه کي و. له ښاره څخه پنځه کیلومتره واټن لري.

د ۱۳۱۳ ش کال په کالنۍ کي لیکلي دي :-

---

[1] پادشاهان متاخر، ۱/۸۷ مخ.

په دې کان کې څو پلا د زرو د راکښلو کار سوی دئ. تر ټولو وروستي وار په ۱۳۰۶ هـ ش کال د اعلیحضرت غازي امان الله شاه د پاچهی تر وروستي کال یو کال دمخه و. د حفریاتو په نتیجه کې د دغه کان دوه رګونه، چې ډېر ژور او کښته دي، ډېر ګټور معلومېږي.

محمدانور نومیالي د هنري والټر بیلیو د لیکنو او خپلو مشاهداتو له مخې د آریانا مجلې د ۱۳۷۰ کال د لومړۍ ګڼې په ۳۷ مخ کې لیکلي دي:-

د کندهار د احمدشاهي ښار په شمال کې یو غرګوتی دئ چې ښایي له یوسل و نه ویشت کلونو راهیسې د (کان طلا) په نامه یادېږي. د دغه غرګوتي او د ښار تر منځ واټن د یوه یا یونیم ساعت د پښو لار ده.

هنري والټر بیلیو د ۱۸۷۲ ع کال د فبرورۍ په میاشت کې کندهار ته رسېدلی او د خپلو لیدنو کتنو په جمله کې کلان طلا ته هم رسېدلی دئ[۲]. دی پخپله سفرنامه کې لیکي :-

دغه کان د غرګوتي په یوه وړه شاګۍ کې واقع دئ، چې د شمال ختیځ خوا ته د هغې پزې تر زاویې پورې غزېدلې ده چې د کندهار هواري ورشو ته د باباولي د غره خوا څخه راوتلې ده. نوموړی کان د شاګۍ د سر او تل په منځنۍ نقطه کې موقعیت لري. کان یوه پراخه کنده ده چې تر تله پورې کیندل سوې ده.

دغه کان په ۱۸۶۱ ع کال کې کشف سوی دئ. اوس (۱۸۷۲ ع) نژدې دوولس کاله کېږي چې په کان کې کار روان دئ، خو البته یو څو واره وقفه پکښې راغلې ده. په لومړیو دوو یا درو کلونو کې خورا زیاته طلا لاس ته ځني راتله خو داګړی د یوه ټېکه دار له خوا د کاله په پنځه زره روپو یا پنځه سوه پونډ سټرلینګه اجاره سوی دئ. د کارکنې لګښت یې هم

[۲] له دغه انګرېز سره د کان طلا په کتنه کې سیدنورمحمد شاه او جنرال صفدرعلي خان (د کندهار نظامي حاکم) هم ملګري وو.

۵۰۰ پونډ سټرلینګه پلل سوی دئ خو دا به یوه غټه مبالغه وي.

نومیالی زیاتوي :-

ما دونه اورېدلي دي چي په دغه کان کي د زرو رګونه انګرېزانو له خلکو څخه ورک کړل او کان پر یو مخ کوره سو[۳].

د دغي ګنې په ۳۰ مخ کي راغلي دي :-

د کندهار د کان طلا په یو ټن ډبره کي اوس ۳ (درې) ګرایه طلا سته. که کان ژور وکیندل سي، په وروستیو ډبرو کي زیاته طلا سته.

د شاه مقصود د ډبري کان

په خاکرېز کي واقع دئ. تسپې یې ځني جوړولې. د اعلیحضرت غازي امان الله شاه په تشویق د ښځو امېلونه یې هم ځني جوړ کړل او د افغانستان په سوغاتو کي اعلیحضرت غازي یورپ ته ورسره یووړله او هلته د خلکو خورا خوښ سول.

## د امیتیسټ Amethyst کان :-

امیتیسټ بنفشه یي رنګ لري په احجار کریمه و کي د بلورو له کورنۍ څخه دئ. په جواهر سازۍ کي د زینت له پاره کارېږي. کان یې په دهله (شاولي کوټ) کي پیدا سوی دئ. بل کان یې د خاکرېز د اولسوالۍ په حاجي توپ کي په ۱۳۱۱ ش کال پیدا سوی دئ.

## د ګچو کان :-

ګچ یو راز سپینه خاوره ده، چي اوبه ور ورسېږي یا په اوبو کي خیشته سي، ژر وچېږي. په کندهار کي د ودانیو په پلستر کي کار ځني اخلي. په

---

[۳] د دې موضوع تفصیل د ښاغلي نومیالي له مقالې څخه ما پخپل انتخاب اقتباس کړی دئ. نور تفصیل یې په نوموړې مقاله کي ولولئ، (هوتک).

تزئیناتي قالبونو کي هم د گچو نقشونه په ودانیو کي کاروي. گچ تر کارولو دمخه په کرو کي پخوي. دغه تودوخه چي ورکړله سي، گچ پاسته سي او د استعمال وړ وګرځي.

د کندهار د احمدشاهي ښار ختیزي خوا ته د مزل باغ په جنوب او ختیزه خوا کي یې یو لوی کان سته چي گچ خانې یې بولي[۴]. گچ په فراه او د هرات په تیرپول او د کابل د مرنجان تپې په شمال شرقي لمنه کي هم پیدا کېږي. فورمول یې داسي لیکلی دئ :- $CaSO_4+2H_2O$

**د مسو کان :-**

په دهله (شاولي کوټ) کي کشف سوی دئ. د اوسپني کان هم په دهله کي پیدا سوی دئ.

**مزلونه :-**

له جیکب آباده تر کندهاره د لاري مزلونه واکر د تاریخ افغانستان د ضمیمې په ۷ مخ کي لیکلي دي :-

۱. مزل – روجهان – چارک باندي ۱۱ میله

۲. مزل – باشور – ۲۶ نیم میله. دلته دوې درې اومې کلاوي سته. له دغه ځایه هاله غر ښه معلومېږي.

۳. مزل – استاد – ۱۲ نیم میله. قاسم کوټ ته نږدې لار بیخي خرابه ده. د ناري رود پر غاړه واقع ده، مغرب ته یې گڼ غر دئ. د استاد کلا جگه ده، برجان لري. د بلوڅو غلو له بېري دا کلا ډېره جگه

---

[۴] دغه سیمه د داود خان په جمهوریت کي د کورونو له پاره نقشه سوه او څه برخه یې پر معلمانو باندي په لږ بیه ووېشله سوه. د معلمانو کارته یې بلله. اوس ټوله سیمه د استوگي کورونه دي، (م. هوتک).

جوړه سوېده.

۴. مزل – بهاګ – ۹ میله – د بهاګ کلا اومه ده. بازار لري.

۵. مزل – مئی حصار – ۱٦ میله

٦. مزل – نوښاره – ۱٦ میله. کلا لري.

۷. مزل ـ ډاډر – ۷ میله. له میسار څخه تر دغه ځایه لار په غرونو کې وه د نوښاره څخه چې پنځه میله راتېر سې د بولان رود مخې ته راځي. ډاډر په میدان کې واقع دئ. لار د بولان د رود پر غاړه ځي. څلور واره تر پوري وزي.

۸. مزل – کوهان ویلان – ۱۱ میله. په دغه لار کې د درابي Drabi په نامه یو میدان سته واښه لري قافلې دلته تمېږي. دره دلته تر دوو، درو سوو ګزو زیاته پلنه نه ده، کوهان ویلان په یوه ډېرینه دښته کې پرته ده.

۹. مزل – قط – ۱۱ میله. په دغه مزله کې ۱۷ واره تر رود پوري وزي. له کوهان ویلان څخه دره تنګېږي او د دواړو غرونو تر منځ فاصله تر ۸۰ یا ۱۰۰ ګزو زیاته نه ده.

۱۰. مزل – بي بي نیني – ۹ میله. له دغه ځایه قلات ته لار جلا سوې ده.

۱۱. مزل – ابیګم – ۹ میله. د بي بي نیني مغرب شمال کونج کې واقع دئ.

۱۲. مزل – سربولان – ۱۰ میله.

۱۳. مزل – دشت بی دولت – ۱۴ میله.

۱۴. مزل – سراب – ۱۵ نیم میله.

۱۵. مزل - کوټه[5] – ۹ میله. د ښار پر شاوخوا کلا راګرزېدلې ده. دوې

---

[5] اصل (قطع).

دروازې لري. ښار پر غونډۍ ودان دئ. دا د شال مرکز دئ د کاکړو خان دلته اوسي. د کوټي شمال مغرب ته د چانا رود دئ اوبه يې ډېري خوږې دي. دلته باغونه ډېر دي، شنه سيمه ده.

١٦. مزل – کچلاغ – ١٢ ميله.

١٧. مزل – حيدرزي – ١٠ نيم ميله.

١٨. مزل – هيکل زي – ١١ ميله. له دغه ځايه پښين پيل کېږي.

١٩. مزل – د ارنيني ونه – ١٥ ميله. له دغه ځايه چي شپږ ميله تېر سې، لوړه بهېږي. دلته د ارنيني په نامه يو کارېز هم سته له لوړې شخه اته ميله ليري[٦].

٢٠. مزل – چمن – چامان چولی – ٣٠ ميله. عبدالله کلا له دغه ځايه لږ ليري ده. د اځکزو خان سردار عبدالله خان په دغه کلا کي اوسېدی. د دغي درې د غرونو جګه څوکه اووه زره فوټه لوړه ده او درې ميله ستغه لوړه ده[٧].

٢١. مزل – ډنډ کوکزی[٨] – ١۴ ميله.

٢٢. مزل – فتح الله کلا – ٩ نيم ميله. يوه کنډواله کلا ده.

٢٣. مزل – مېل مانده – ١٢ ميله.

٢۴. مزل – ليلی مجنون – ١٥ نيم ميله. ډورۍ ته نژدې تېرېږي. د ليلی مجنون غربي شمال ته دئ.

٢٥. مزل – حاجي کلی – ٨ نيم ميله. لوی کلی دئ.

٢٦. مزل – کوشهر – ١٢ ميله.

---

[٦] ښايي د ارزبېګي کارېز وي؟

[٧] کوړک.

[٨] ښايي ډنډ کاکوزي وي. کاکوزي د اځکزو د قوم په بادين خانګه کي يوه پښه ده (م. هوټک).

۲۷. مزل – کندهار – ۷ نیم میله.

د جیکب آباد او کندهار تر منځ واټن ۳۵۰ میله دئ. مزلونه یې ۲۷ دي.

د چمن او کندهار تر منځ واټن ۹۹ میله دئ. مزلونه یې اته دي.

د چمن او کوټي تر منځ واټن ۶۸ نیم میله دئ. مزلونه یې پنځه دي.

کوټه او کندهار ۱۶۷ نیم میله واټن لري.

## د کوټي او کندهار تر منځ مزلونه :-

په سیداحمد شهید ۳۲۱/۱ مخ کي داسي ثبت دي :-

۱. کیتر
۲. حیدرزی
۳. سدوزی (چي په ځینو نقشو کي شادي زی لیکلی دئ)
۴. مې زی
۵. کوړک
۶. چوکی
۷. کاریز ملا فتح الله خان
۸. ...
۹. قلعهٔ حاجي یا ده حاجي (اوس په حاجي ده سره مشهور دئ، رشاد)
۱۰. کاریز ملا عبدالله
۱۱. خوشاب
۱۲. کندهار

د سید صاحب سفر له کویټې څخه د ۱۲۴۲ ه ق کال د محرمي په ۱۵ ورځ شروع سوی و.

## د کندهار او غزني تر منځ مزلونه :-

په سیداحمد شهید ۱/۳۲۵ مخ کي راغلي دي :-

۱. کاریز حاجي عبدالله
۲. قلعهٔ اعظم خان
۳. ده ملا نورمحمد (اخند صاحب)
۴. شهر صفا
۵. جلوګیر
۶. نوت
۷. قلعهٔ رمضان خان
۸. جلدک
۹. کوړم
۱۰. خاکه
۱۱. بشمل زی
۱۲. قلعهٔ ملا نورمحمد
۱۳. قلعهٔ ملا تاج محمد
۱۴. کاریز اټک
۱۵. مشکی
۱۶. نانی
۱۷. غزنی

## د کندهار او کابل تر منځ رباطونه :-

**کندهار :-**

۱. د مهمندو رباط
۲. د مانجي رباط

۳. د ښار صفا رباط

۴. د غشي رباط

۵. د جلدک رباط

٦. د کلات رباط (د کندهار او کلات تر منځ اووه رباطه دي)

۷. د سراسپ رباط

۸. د تازي رباط

۹. د شاه جوی رباط

۱۰. د اغوجان رباط (اوس يې جنډه بولي)

۱۱. د مقر رباط

۱۲. د لړمه رباط

۱۳. د قره باغ رباط

۱۴. د نانې رباط

۱۵. د مستوفي (موشکی) رباط

۱٦. د غزني رباط

۱۷. د شش گاو رباط

۱۸. د سيدآباد رباط

۱۹. د شيخ آباد رباط

۲۰. د ارغندی رباط

۲۱. د قلعۀ قاضي رباط

**کابل :-**

ټول ۲۳ رباطه = ۱٦۰ کروه

| | |
|---|---|
| د کندهار او کلات تر منځ فاصله | ۸۵ ميله |
| د کندهار او مقر تر منځ | ۱٦٦ ميله |
| د کندهار او غزني تر منځ | ۲۳۳ ميله |

د کندهار او کابل تر منځ 318 میله

## د اصفهان لاري :-

مسیحي سیاح په عبرتنامه کې کښلي دي :-

له اصفهانه څخه کندهار ته دوې لاري دي :-

1. آباده لار :- قافله په ۹۰ ورځي (درې میاشتي) رسیږي. چاپار په ۵۰ ورځي رسیږي. دا د مشهد و هرات لاره ده. د صفویانو پوځونه له دغي لاري کندهار ته تلل راتلل.
2. وچه د دښت لار، چي د سموم بادونه هم لري.

## مسکوکات او ضرابخانه :-

### قندهاری :-

ابن حوقل لیکي :-

د سنده په منصوره کي چي کومه سکه چلیږي، هغه قندهاری بولي او په پنځو درهمو چلیږي، (تاریخ بیهقي، ۱۰۷۶ مخ).

### کندهاری :-

د سپینو زرو یوه سکه وه چي په کندهار کي ضرب کېدله، شپږ دېرش ایکی یې بیه درلوده. تر غران یې شپږ ایکی (پیسې) بیه زیاته وه.

په کندهار کي د دغو سدوزیو پاچهانو ضرب سوي سکې موندلي سوي دي :-

لوی احمدشاه بابا

سلیمان شاه

تېمورشاه

همایون

زمانشاه

شاه محمود (لومړی وار او دوهم وار)

قیصر

شاه شجاع (دوهم وار)

فتح جنگ د شاه شجاع زوی

د سدوزیو پاچهانو سکې درهم، دینار او فلوس نومېدلې. د تیمور شاه پر یوه سکه باندې چې په ۱۲۰۵ هـ ق کال ضرب سوې ده، ضرب اشرف البلاد احمدشاهي لیکلی دئ. د زمانشاه پر یوه سکه هم، چې په ۱۲۰۸ هـ ق ضرب سوې ده، ضرب اشرف البلاد احمدشاهي لیکل سوی دئ.

شاه شجاع د ۱۲۵٦ هـ ق کال د لومړی خور په میاشت کې له کابل څخه په یوه فرمان کې خپل زوی شهزاده فتح جنگ ته، چې د کندهار نائب الحکومه و، لیکلي دي :-

تا چې د کندهار د ضرابخانې او ابراهیم خان تیمني د خلات په باب څه لیکلي و، هغه مو د پاچا تر نظر تېر کړل. ده وفرمایل :-

پخوا مو هم شهزاده ته لیکلي دي چې د سږ کال له نوروز څخه دي په کندهار کې د کندهاریو ضرب بول بند کړي او د کابلی په وزن او عیار دي روپی ضرب کړي. د کابل روپی ۲ مثقاله و یو نخود خالص سپین زر لري. هیڅ غش پکښې نسته. د کندهار روپی هم په دغه ضرب عیار کړئ.

**شاهی (ښاهی) :-**

شاهی پنځه پوله چې په پخوانی سکه درې پیسې کېدلې[9].

---

[9] پښتو پښتو تشریحي قاموس، ۲۸۵۷ مخ.

په هغه مکتوب کې چې زما (رشاد) نیکه د ۱۳۳۲ هـ ق کال د میانی د میاشتې په ۲۳ ورځ په کراچې کې لیکلی او زما پلار ته یې کندهار ته رالېږلې دئ، وته (د کلداري بیه) یې سل کلداري په ۲۰۸ کابلی لیکلي دي.

په تحفهٔ سنجي ۷۹ مخ کې ليکلي دي :-

شاهي = ۵ پيسه

په ۷۷ مخ کې کښلي دي :-

روپيهٔ پخته (۶۰ پيسې) = ۱۲ شاهی

روپيهٔ خام (۵۰ پيسې) = ۱۰ شاهی

روپيهٔ خام (۵۰ پيسې) = ۵۰۰ ديناره

روپيهٔ پخته (۶۰ پيسې) = ۶۰۰ ديناره

کابلی روپيهٔ پخته = ۶۰ پيسه = ۵ عباسی = ۱۰ سنار

۲۰ شاهی = ۳ تنگه

قندهاری روپيه خام = ۳۶ پيسه = ۳ عباسی

عباسی = ۱۲ پيسې

شاهي قندهار = ۳ پيسې

سنار = ۶ پيسې

تنگه = ۲۰ پيسې

افغانی = ۱۱ سنار = ۶۶ پيسې = پنځه نيمي عباسی

يوه بناهی = ۵۰ دينار

۲۰ بناهی = يو قران

۴ بناهی = يوه عباسی (د شاه عباس سکه

۲۵ بناهی = يو ريال

د جهانگير دوې سکې چې په کندهار کې ضرب سوي دي د تزک جهانگيري په مقدمه کې سته. دا نقش پر کښلی دئ :

۱. پر يوه خوا : زجهانگير شاه اکبر شاه   سنه ۱۴

پر بله خوا : سکهٔ قندهار شد دل خواه

۲. پر يوه خوا : زجهانگير شاه اکبرشاه

**تول (وزن) :-**

د کندهار خروار = ۱۰۰ من

د کندهار من = ۴۰ سېر

سېر = خورد

**په کندهار کي نرخونه :-**

د سراج التواریخ په ۹۳۸/۳ مخ کې کښلي دي :-

په ۱۳۱۱ هـ ق کال جنرال شېرمحمد خان په روزګان کي سل د لاندي پسونه، دانه په اته کابلۍ رانیول.

د ۱۳۱۹ ش کال د دلوي پر ۲۳ د پنجشنبې ورځ وه. په یوه مېلمستیا کي یو اویاکلن سپین ږیري وویل ما پخپله په یوه کندهارۍ (۳٦ پیسې) د کندهار په تاله شپږ منه اوږه رانیولي دي، چي یو من په یوه مثقالۍ سي. مثقالۍ شپږ پیسې وه. دغه سپین ږیري وویل یو چاریاک غوښي مو په یوه عباسۍ یا څه کم (۳ یا ۴ ښاهۍ) رانیولې. عباسۍ ۱۲ پیسې وه.

مولاداد اڅګزي د ۱۳۱۹ ش کال د سرطان په ۲۷ د پنجشنبې په ورځ وویل :-

ما د لاندي پسه په اته کندهارۍ (۴ کابلۍ ۴۸ پیسې) رانیولی دئ خو بیا وروسته وری او سېرلی تر دوې کابلۍ لوړ نه و او د وزګرو او وزو بیه تر پنځه کابلۍ پورته نه وه.

د ۱۸۳۹ ع د مارچ په شپږویشتمه د پرنګیانو پوځ د شاه شجاع په مرسته د کندهار د نیولو په نیامت کوټي ته رارسېدلی دئ. د بنګال د کالم یوه پرنګي سپاهي لیکلي دي :-

دلته غنم د روپۍ درې سیره، اوړه دوه نیم سېره وه. مړ یا مېړه په درې روپۍ خرڅېدله (کوټه ۳۲ مخ).

د امان افغان په یوه ګڼه کي د هیواد د ټولو ښارونو یوه نرخنامه خپره سوې ده. د ۱۲۹۸ هـ ش کال د حوت په میاشت کي یې د کندهار نرخونه داسي ښوولي دي :-

| | | |
|---|---|---|
| غنم | د کابل یو سېر | یوه روپۍ اولس پیسې |
| اوړه | " " " | یوه روپۍ شل پیسې |
| اوربشي | " " " | یوه روپۍ |
| جواري | " " " | ۵۵ پیسې |
| غوښي | " " " | اته روپۍ |
| ژړ غوړي | " " " | پنځلس روپۍ |
| نرۍ وريجي | " " " | دوې روپۍ ۵۰ پیسې |

**د کندهار غرونه :-**

**د تابیان غر :-**

دغه غر د کندهار د خاکریز په اولسوالي کي د شاه مسعود د زیارت جنوبي شرقي خوا ته واقع دئ.

د تویین Toyin غر :- د مېل په شاوخوا کي.

د کړنګ غر :- د مېل په شاوخوا کي.

د باغ غر :- (د کابل - کندهار پر لویه لار د اخوند صاحب د زیارت شمال ته م. هـ).

د مانجې غر :- (د کابل - کندهار پر لویه لار د مانجې کلي پر برابري، م. هـ).

د خیبري غر :- (د پنجوایي اولسوالۍ د مرکز جنوب ته، م. هـ).

د زاړه ښار غر :- (د سرپوزې د غره لړۍ، م. هـ).

## د کندهار رودونه :-

ارغنداو[۱۰]

هلمند

ترنک

ډورۍ

کدنی[۱۱]

ارغسان

لوړه

## د کندهار ولې (ويالې) :-

پاتاو

ده خواجه واله

شاه واله

نهر سراج[۱۲]

بغرا واله

نوشجان واله

روربات واله

منار واله

---

[۱۰] مقدسي د احسن التقاسيم په ۳۰۴ مخ کې د دغه رودو نوم خورداوی کښلی دئ، احسن التقاسيم د ۳۷۵ هـ ق تاليف دئ.

[۱۱] وروستي درې رودونه ما پر زيات کړل (م. هوتک).

[۱۲] سردار محمدعثمان خان په ۱۳۲۵ هـ ق کال افتتاح کړ، (پښن ليک ۲۲۲ مخ). د نهر سراج کيندل په ۱۹۰۷ ع = ۱۲۸۱ ش = ۱۳۲۰ هـ ق پيل سوي دي، (افغانستان در مسير تاريخ، ۷۰۵ مخ). دوهمه پلا د نهر سراج د کيندلو کار د نوموړي سردار محمدعثمان خان زوی غلام فاروق خان په ۱۳۱۴ ش کي بيا پيل کړ. مستر سيمه الماني يې مهندس و

غلام محی الدین واله

د روضې واله

د لاهور واله

د سنزري واله

## د احمدشاهي کندهار د شاوخوا حوضونه او ناورونه :-

- هندو حوض :- د بابا صاحب تر کوتل راکښته د کوتل او میرزا احمد خان کلاچې تر منځ.
- حوض انبار :- د چوڼې او توپخانې دروازې تر منځ د شپږو شهیدانو د زیارت پر برابري، د سړک جنوبي خوا ته.
- د حضرت جي حوض :- د حضرت جي بابا د زیارت جنوب شرقي خوا ته.
- حوض مدد :- په سنگسار کې.
- د ادیرو حوض :- د ملا علم اخوند د کلي غربي خوا ته.
- د توپخانې دروازې دباندې حوض
- د زاړه ښار حوضونه :- د بارانو اوبه له غره څخه ښار ته راتللې، په غره کې یې دوه حوضه ورته جوړ کړي وو.
- د عیدگاه لوېدیزې خوا ته ناور
- د عیدگاه شمال لوېدیزې خوا ته ناور
- د طالبانو د هدیرې پر سر ناور[13]

## د احمدشاهي ښار یخ څهان (سقاوې) :-

1. په ارگ کې د برج د دروازې په خوله کې.
2. د منیر خاه په شاه بازار کې د ده خوجې ولې له پله څخه پنځه

---

[13] دا حوضونه اوس زیاتره کوره سوي او خلکو ودانۍ پر جوړې کړي دي (م. هوتک).

دوکانه‌جنوب ته د بازار پر شرقي درې گزي.

۳. په شاه بازار کي د سدوزدانې په خوله کي د ارگ خوا ته د بازار پر غربي درې گزي.

۴. په کابل بازار کي د یحیٰی خان د کوڅې په خوله کي د بازار پر جنوبي درې گزي.

۵. په کابل بازار کي د قاضي غلام دانې او د ملا گلداد د کوڅې په خوله کي د بازار پر جنوبي درې گزي.

۶. د ښکارپر بازار د ځنځیري کاروانسرای د خولې سره د بازار پر شرقي درې گزي.

۷. د ښکارپر بازار د ساگزو د کوڅې او یحیٰی خان د کوڅې تر منځ د بازار پر شرقي درې گزي.

۸. د هرات بازار د ملا فرح الدین اخوندزاده د کوڅې په خوله کي د بازار پر شمالي درې گزي.

۹. د هرات دروازې دباندي د شهیدانو په زیارت کي.

۱۰. د الف شاه د توپخانې دروازې دباندي عسکري فرقې شمالي دروازې ته نژدې.

۱۱. د توپخانې دروازې او هرات دروازې تر منځ د ښار دباندي د ده خوجې ولې پر شمالي غاړه.

۱۲. په خرقه شریفه کي دوه څهان. یو د خرقې شریفي د احاطې د لوېدیزي دروازې سره، بل د دغه ځاه شرق ته د احاطې د شمال خوا ته.

## کندهار ښار کاروانسرایونه :-

په هرات دروازه کي :-

د موچنې دوزانو سرای شمال خوا ته

په بنکاپر دروازه کې :-

د تاراسنګه سرای د بازار په مدخل کې غربي خوا ته

ځنځیري کاروانسرای غربي خوا ته

د ګنج سرای په مدخل کې شرقي خوا ته

د حاجي حبیب الله خان سرای د سړک شرقي خوا ته

په کابل بازار کې :-

د (راجا) سرای د بازار شمالي خوا ته

د بابړو سرای

د عبدالرزاق خان سرای د قاضي غلام کوځې په خوله کې جنوبي خوا ته

په شاه بازار کې :-

د حاجي انور سرای

د عطاجان سرای

## د کندهار بندیخانې :-

۱. د چارسو سره :- اوس پرهغه ځای د عطاجان سرای جوړ سوی دئ، پخوا د کندهار کوتوالي د چارسو پر سر وه. کوتوالي ته څرمه بندیخانه وه.

۲. د برو شاه برج ته نژدې :- دغه د سید نورمحمد شاه صدراعظم کورونه وو. د ۱۳۱۰ ش په شاوخوا کې بندیخانه له چارسو څخه دلته رانقل سوه.

۳. د سرپوزې بندیخانه :- دا بندیخانه نوې جوړه سوې ده. دا بندیخانه د ډنډ چوک او سرپوزې تر منځ د سړک شمالي خوا ته ودانه سوې ده.

## د لومړي ټوک پای

# د سریو نومونه

## (لومړی ټوک)

# د ځایونو نومونه

## (لومړی ټوک)

# ماخذونه

## (لومړی ټوک)


۱. Gates of India _ د Holdich اثر
۲. The Ancient Geography of India
۳. The Races of Afghanistan _ بیلیو
۴. آئین اکبري _ ابوالفضل علامي
۵. آئینه عظمت هند
۶. آبان یشت
۷. احسن التقاسیم في معرفت الاقالیم _ البشاري مقدسي ۳۷۵ هـ ق تالیف
۸. اخبار الاخیار _ محدث دهلوي شیخ عبدالحق
۹. ادبیات مزدیسنا
۱۰. اریانا دائرة المعارف
۱۱. اشوک اعظم
۱۲. اطلس قریه های افغانستان
۱۳. الاعلاق النفسیه _ابن رسته
۱۴. الاعلام _خیر الدین زرکلی
۱۵. افغانستان درپرتو تاریخ
۱۶. اقبال نامهٔ جهانگیري
۱۷. انشینټ انډیا Ancient India
۱۸. ایران درعهد ساسانیان
۱۹. برهان مآثر
۲۰. البلدان _ ابن واضح یعقوبي
۲۱. بیاض المعین
۲۲. پژوهش در تاریخ هزاره

۲۳. پښتانه کوچیان _ ابراهیم عطایي
۲۴. پښتو _پښتو تشریحي قاموس
۲۵. د افغانستان پېښ لیک _ علامه حبیبي ، ۱۳۵۲، کابل
۲۶. تاریخ ادبیات افغانستان _ عبدالحی حبیبي
۲۷. تاریخ افغانستان بعد از اسلام _ علامه حبیبي
۲۸. تاریخ اودهـ _ نجم الغني رامپوري
۲۹. تاریخ سندهـ _د سید میر معصوم بهکري کندهاري تالیف
۳۰. تاریخ طاهري _ سید محمد نسیاني
۳۱. تاریخ مختصر افغانستان _ دعبد الحی حبیبي تالیف ،۱۳۴۶_۱۳۴۹ کابل
۳۲. تاریخ سیستان _ ملک الشعراء بهار
۳۳. تحفة الکرام
۳۴. تذکرهٔ حسیني
۳۵. تذکرهٔ شعرائي کشمیر
۳۶. تذکرهٔ صبح گلشن _ د سید علي خان لیکنه
۳۷. تذکرهٔ علمای هند
۳۸. تذکرهٔ نصر آبادي
۳۹. تذکرهٔ همایون و اکبر
۴۰. تزک جهانګیري _ د جهانګیر تالیف ، د میرزا محمد هادي راټولونه.د نولکشور چاپ
۴۱. تعلقات هند و عرب _ سید سلیمان ندوي
۴۲. تقویم البلدان _ابوالفداء
۴۳. تواریخ بلوچستان
۴۴. تواریخ حافظ رحمت خاني _ د پیر معظم شاه لیکنه ، پېښور
۴۵. ثقافة الهند _۱۹٦۱ اپریل
۴٦. جغرافیای تاریخي ایران
۴۷. جغرافیایي قاموس

۴۸. جوامع احکام النجوم _ ابوالحسن علي البيهقي
۴۹. جوامع الحکايات و لوامع الروايات _ سديد الدين عوفي
۵۰. چچ نامه
۵۱. حدود العالم _ جوزجانی
۵۲. حدود العالم من المشرق الي المغرب _ جوزجاني،۳۷۲ هـ ق تاليف
۵۳. حيات افغاني _ د ډپټي حيات خان ليکنه
۵۴. حيات سلطان محمود
۵۵. خرد نامۀ سکندري _ نظامي
۵۶. خزانۀ عامره
۵۷. د ۱۳۲۰ کال کالنۍ
۵۸. د افغانستان پخوانی تاريخ
۵۹. د برتيش موزيم فارسي کتلاک
۶۰. د پير بابا بالکی او کدری _ د توپی جمشيد
۶۱. د پښور حال _ رضواني احمدشاه
۶۲. د جنرال سرپرسي سايکس سفرنامه
۶۳. د صوبه سرحد گزيټر
۶۴. د هيون څانگ ژوند
۶۵. دکندهار مشاهير _ ولي ځلمی
۶۶. ديوان عنصري _ ابوالقاسم حسن بن احمد عنصري
۶۷. ذخيرة الخوانين _ د شيخ فريد بهکري تاليف
۶۸. ذيل لب الالباب من واجب الانساب _ مصر
۶۹. راپور سالانه باستان شناسي هند
۷۰. رجال السند والهند _ اطهر مبارکپوري
۷۱. رهنمای ټکسيلا
۷۲. روضة الجنات في اوصاف المدينة الهرات _ معين الدين محمد زمچي اسنفراري هروي ، ۸۹۷_ ۸۹۹ هـ ق تاليف

۷۳. رياض المرتاض ـ علامه صديق الله حسن بهوپالي
۷۴. زين الاخبار ـ گرديزي
۷۵. سراج التواريخ ـ فيض محمد هزاره، ۱۲۹۲، کابل
۷۶. سرزمين هاى خلافت شرقي ـ لستريخ
۷۷. سکندر نامه ـ نظامي گنجوي
۷۸. سلطان التواريخ ـ د رتن سنگهـ زخمي لکهنوي ليکنه
۷۹. سير المتاخرين ـ د سيد غلام حسين طباطبايي ليکنه، ۱۸۹۷، نولکشور
۸۰. شهنامه ـ فردوسي
۸۱. صحيفه خوشنويسان
۸۲. صور الاقاليم
۸۳. صورة الارض ـ ابوقاسم محمد ابن حوقل
۸۴. صولت افغاني ـ د زردار خان ناغر ليکنه
۸۵. طبقات اکبري
۸۶. طبقات ناصري ـ منهاج سراج
۸۷. عجائب البلدان ـ ابوالمويد بلخي
۸۸. عمادالسعادت ـ د غلام علي نقوي ليکنه، ۱۸۹۷، نولکشور لکهنو
۸۹. فتوح البلدان ـ ابوالحسن بلاذري
۹۰. فتوحات اسلاميه
۹۱. فرهنگ توضيحي لغات مغلق
۹۲. فرهنگ واژه هاى اوستا
۹۳. قانون مسعودي ـ البيروني
۹۴. کتاب الجماهير في معرفت الجواهر، البيروني
۹۵. کتاب الصيدنه في الطب ـ ابوريحان البيروني
۹۶. کتاب الهند ـ البيروني
۹۷. لطائف المعارف ـ ابي منصور عبد الملک بن محمد بن اسماعيل
۹۸. مأثر لاهور ـ هاشمي فريد آبادي ، لاهور چاپ

٩٩. ماثر الأمرا _ د صمصام الدوله شهنواز خان ليكنه،١٨٩١ ، كلكته
١٠٠. مجمع التواريخ _ د ميرزا محمد خليل صفوي تاليف
١٠١. مخزن الاسلام _ اخوند درويزه ، پېښور ١٩٦٩ ع
١٠٢. مرآت الهند
١٠٣. المزهر _ جلاالدين سيوطي
١٠٤. المسالک و الممالک _ ابراهيم محمد اصطخري _ د ٣٤٠ هـ ق تاليف
١٠٥. معجم البلدان
١٠٦. مقالات الشعراٴ _ عليشير قانع
١٠٧. مکتوبات سعدالله خان
١٠٨. مناقب المحبوبين
١٠٩. المنجد في الادب و العلوم
١١٠. مهاجرتنامه _ عبد الرحيم هوتک
١١١. المؤتلف في الاماكن _ ابوبكر حازمي
١١٢. نامۀ خسروان
١١٣. نزهة القلوب _ حمد الله مستوفي
١١٤. يوسفزى افغان

# د کندهار یادابښتونه

## دوهم ټوک

لیکوال

علامه اکاډیمیسن پوهاند
عبدالشکور رشاد

# فهرست

(دوهم توک)

## مغول

## هوتکيان

## سدوزیان

## محمدزیان

## د کندهار واکمنان، قضاء، مطبوعات او ...

# ضمایم

**مغول :-**

په تاریخ فرشته ۷۰ مخ کي راغلي دي :-

"در سنه ثلث و اربعین و ستمائه خبر رسید که لشکر مغولی از راه قندهار و طالقان؟ بنواحی سنده آمده اوچ را محاصره کردند سلطان علاوالدین مسعود بن سلطان رکن الدین فیروزشاه بن سلطان شمس الدین التمش امراء را جمع نموده بسرعت بجانب اوچ نهضت کرد، چون بکنار آب سیاه رسید لشکر مغول حصار اوچ راگذاشته روی بانهزام آوردند". سلطان علاوالدین د ۶۴۴ کال د محرمي په ۲۶ خپل اکا ناصرالدین بندي کړ او په هغه بند کي ومړ. د پاچهۍ موده يې څلور کاله و يوه میاشت و يوه ورځ وه.

تاریخ فرشته په ۷۱ – ۷۲ مخونو کي زیاتوي :-

سلطان ناصرالدین بن سلطان التمش چي په ۶۴۴ هـ ق پاچا و، ملک غیاث الدین بلبن ته يې د خان اعظم الغ خان خطاب ورکړ او نایب السلطنه يې کړ. د ده د اکا زوی شېرخان ته يې د خان معظم لقب ورکړ، د پنجاب او ملتان په حکومت يې وټاکه او د مغولو د پوځونو مخنیوي ته يې وګماره. په دغه وخت کي کابل، کندهار، بلخ او هرات د مغولو په لاس کي وو. شېرخان په ۶۴۹ کال پر غزني برید وکړ، له مغولو څخه يې ونیو او هلته يې بیا د ناصرالدین په نامه خطبه وویله.

په ۶۷۸ هـ ق کال په ایران کي د هلاکو لمسی د اباقآن زوی ارغون خان پاچا و. هرات، کندهار، غور، غزنی او بامیان د تېمور خان په لاس کي وو. تېمورخان له لویو چنګېزي امیرانو څخه و، ده له شلو زرو مغولو سپرو سره پر لاهور او دیپالپور برید وکړ. په جنګ کي ماتې د تېمور په برخه سوه. بری د سلطان غیاث الدین بلبن مشر زوی سلطان محمد وموند. د هندوستان د لښکرو د بې پروایی له امله مغول بیرته راوګرځېدل، سلطان محمد يې شهید کړ، د هندوستان لښکرو ماته وکړه او امیر خسرو د مغولو په

لاس بندي سو.

په ۶۸۵ هـ ق کې سلطان غياث الدين بلبن ومړ، ده وصيت کړی و چې زما لمسی کيخسرو د سلطان محمد شهيد زوی زما جانشين دئ. مګر اميرانو د ده بل لمسی معزالدين کيقباد چې د بغراخان ناصرالدين زوی و، پاچا کړ. کيخسرو چې د ملتان او پنجاب حاکم و د ډهلي د پاچهۍ نيولو له پاره يې له تېمورخان مغول سره روغه وکړه، د مرستې غوښتلو په نيامت غزني ته ولاړ، څه موده هلته و، تېمور خان مرسته ورسره ونه کړه، بيرته هندوستان ته ولاړ. رهتک ته چې ورسېد، وواژه سو[1].

د مغولانو په باب خليلي ساپي ويلي دي :-

سـواران خـدانـاترس تاتار
هـمه تهذيب سـوز و آدمی خـوار
بسان شـعله هـای تند و سرکش
به خشك و تردرافـگنده آتش
چو رايات مـغل گـرديد واژګون
شد اوضاع جهان يکسر دګرګون

## ګوډ تېمور په کندهار کې :-

ګوډ تېمور چې د کاشغر د پاچا تغلق تېمور څخه وتښتېد، د افغانستان په جنوبي برخه کې يې ځان پټ کړ. امير حسين قزغني هم ورسره و، چې د تېمور د ماينې ورور و. بيا هرات ته ولاړل ځانونه يې ملک معزالدين کرت ته تسليم کړل. تغلق تېمور له معزالدين څخه دوی وغوښتل. تېمور او امير حسين کندهار ته وتښتېدل او له هغه ځايه په ۷۶۴ هـ ق (۱۳۶۲ ع) سيستان ته ولاړل. د سيستان حاکم جلال الدين محمدکياني د دوی د نيولو هڅه

---

[1] تاريخ فرشته، ۸۲ - ۸۴ مخونه.

وکړله. په دغه جنګ کي تېمور څو ځایه ټپي سو (د ښي پونده او ښی اوږه) د راسته لاس دوې ګوتي یې پرې سوې. د ښي له ټپه ګوډ سو او له دغه امله په تاریخ کي د تېمورلنګ په نامه مشهور سو، چي اروپایان یې تېمورلان بولي.

په ۷۸۵ هـ ق کال چي تېمور سیستان ونیو چي وس یې رسېدی، هغومره یې وران کړ. له سیستانه یې پر بست برید وکړ. په لار کي یې د قلعهٔ طاق ښار او د رستم بند، چي سیستان په ودان و، ونړول.

## د مغولو په وختو کي د کندهار تجارتي اهمیت :-

جادوناتهـ سرکار Fall of the Maghul Impire په ۱۱۴/۱ مخ کي د تیورنیتر د لیکني په حواله لیکلي دي :-

کندهار په اووه لسمه عیسوي سدۍ کي خپل اهمیت تر پخوا زیات کړ، ځکه چي بحري تجارتي لاري د بحري غلو (پرتګالیانو او انګرېزانو) له خوا له زیات خطره سره مخامخ سولې او له شرق الهند او هندوستانه څخه د دغو سیمو پیداوار مالونه تر بحیرهٔ روم پوري د وچي له لاري استول کېدل. کندهار د دغي لاري پر سر واقع و، له ملتانه څخه د چټالی او پښین پر لار کندهار ته مالونه راتلل او پر دغه لار استول کېدل. که څه هم سوداګرو به د محلي مشرانو د رضا له پاره څه مصرفونه کول، حق العبور او سوغاتونه به یې ورکول. بیا هم دغه لار د بحر تر لاري ښه او د تاجرانو په ګټه وه. په دغه وخت کي د ملتان او کندهار تر منځ د یوه اوښ کرېهه ۱۲۵ روپۍ وه، ځکه نو د دغي سیمي کرېکښو خورا ډېري روپۍ ګټلې.

په ۱۶۱۵ ع کال د یوه انګرېز په اټکل پر دغه لار باندي د کاله څورلس زرو اوښانو تجارتي مالونه وړل راوړل. د ترکیې، ایران او هندوستان سوداګر په کندهار کي اوسېدل، دا ځکه چي د دغي لاري د مالونو د

راکړي ورکړي ځای کندهار و. له دغو سوداګرانو سره به نوکران او مزدوران هم په کندهار کي اوسېدل. په کندهار کي تر ښار دباندي ودانۍ زیاته سوه او د خوراکي شیانو بیه هم ورسره لوړه سوه.

## د ملک شمس الدین کرت برید :-

ملک شمس الدین د کرت پاچهانو د سلسلې موسس دئ. دی د رکن الدین زوی او د تاج الدین عثمان لمسی و. تاج الدین د خیسار کلا کوتوال و[2]. د ده تر مرګ وروسته یې زوی رکن الدین د سلطان غیاث الدین محمد غوري لور وکړه. دغه رکن الدین چنګېز ته ایل سو او د ایل خان؟ له خوا د هرات حکومت ورکړه سو. رکن الدین په ۶۴۳ هـ ق ومړ او پر ځای یې زوی شمس الدین کښېناست.

معین الدین محمد اسفزاري د روضات الجنات في اوصاف مدینة الهرات د ۸۹۷ هـ ق تالیف د اوومي روضې په دوهم چمن کي د تاریخ آل کرت په حواله لیکلي دي :- د کرتانو لومړی پاچا ملک شمس الدین بن ملک رکن الدین (۶۴۳ هـ ق مړ) بن ملک تاج الدین عثمان مرغنی بن ... و، ملک تاج الدین (د خیسار حاکم) د عزالدین عمر مرغني ورور و، چي د سلطان غیاث الدین محمود وزیر و. کله چي منکو قاآن د چنګېز پر ځای کښېناست، دی یې دربار ته ورغی. هغه د هرات و نیمروز حکومت ورکړ[3].

---

[2] محمدابراهیم عطایي چي د آریانا مجلې ۱۳۶۷/۴ ش په څورلسم مخ کي کښلي دي : شمس الدین محمد بن ابابکر کورت د مور له خوا د رکن الدین لمسی و. رکن الدین بیا د ملک تاج الدین زوی او د غیاث الدین غوري زوم و. مراد به یې تاج الدین وي.

[3] په تاریخنامهٔ هرات کي چي د منکوقاآن له خوا ملک شمس الدین ته د هرات واکمني وسپارله سوه، په هغو ملکو کي چي په دغه فرمان کي ذکر سوي دي، د تګین آباد، بست او تیرا نوم هم سته.

بیا چې ارغون پاچا سو، د هغه خدمت ته هم ورغی. هغه د اباسین تر غاړې پورې تولي سیمي ده ته وسپارلې. ملک شمس الدین په ٦۴۴ هـ ق کال له سالي نویان سره د ملتان او لاهور سیمو ته د هغو ځایو د نیولو له پاره ولاړ. د ملک شمس الدین په واسطه د لاهور حاکم کرت خان او د ملتان د حاکم چنګېز خان سره روغه وسوله.

په روضات الجنات کې کښلي دي:-

په ٦٥٢ هـ ق کال ملک شمس الدین مهین کرت (٦۴٣ - ٦٧٦ هـ ق) له هراته څخه د کندهار پر لار بلوچستان ته ولاړ؟ د مستنګ ښارېې چې د ګرمسیر له توابعو څخه و، کلابند کړ. د هغې سیمي پاچهان میران شاه، بهرام ،شاهنشاه د پنځو زرو تنو سره خاسک کلا ته وتښتېدل. ملک شمس الدین هغه کلا کلابنده کړه، تر لس ورځي کلابندۍ وروسته میران شاه توره راوکښله، د شپې پر راووت د ملک شمس الدین د لښکرو یو اړخ یې ښه وځبه او ولاړ. سهار ملک شمس الدین کلا ونیوله، شهنشاه او بهرامشاه یې له نوي (۹۰) تنو دوستانو سره ووژل. تر دې سوبې وروسته یې د پښتنو په سیمه کې د کندهار په شمال کې د تیري (تیرین کلا)[۴] کلابنده کړه. نهه پنځوس ورځي سخت جنګونه وسول. پای ته یې کلا ونیوله او د کلا پښتون کوتوال. چې (المار) نومېد د ملک شمس الدین په امر دوې شغې سو. د کلا خلک یې ځیني ړانده کړل، ځیني یې سله کړله او ځیني یې په لرګو ووهل.

د تیري تر سوبې وروسته یې د کهبرا کلا ونیوله او شعیب پښتون یې وواژه. د دوکی کلا یې پسې ونیوله او سندان پښتون یې وواژه. د ساجي کلا یې هم په جنګ ونیوله، کلا یې ونړوله او زیاتره خلک یې ووژل. په ٦٥٦ هـ ق کال کې تر څلورو کلو جنګو وروسته هرات ته ستون سو.

---

[۴] اوس د ارزګان ولایت مرکز دئ.

د پنجاه مقاله په ۴۳۳ مخ کې د تاریخنامه هرات په حواله لیکلي دي:-

ملک شمس الدین د تیري کلا ونیوله. په دغه کلا کې د پښتنو مشر الماړ نومېد پسله سخته جنګه یې تیری ونیو، تر دغې سوبې وروسته له افغانستانه تګین آباد ته راغی، ملک عزالدین تولک او مبارزالدین محمد لهي یې له دریو زرو مېړو سره په تګین آباد کې پرېښوول او پسله شلو ورځو یې د خیسار کلا ته مخه کړه.

په تاریخنامهٔ هرات (۲۲۷ - ۲۷۰ مخونو) کې راغلي دي:-

څرنګه چې په سنه ٦٦٠ هـ ق کې نکودر له اباقاخان پاچا سره مخالفت وکړ او له مرغابه ولاړ، اباقاخان خپل ورور شهزاده تبسین اقول ته لارښوونه وکړه چې د جګړې یا سولې له لارې نکودر راوګرزوي. شهزاده تبسین د خپل ورور له لارښوونې سره سم خپل لښکر ته حرکت ورکړ. هرات ته چې ورسېد ملک شمس الدین کرت ۱۵۰۰ په وسلو سمبال سپاره د ده په خدمت کې ورکړل او په نکودر پسې روان سول. نکودر په هغه وخت کې په اندخای (اندخوی) کې و، د شهزاده تبسین اقول او د ملک شمس الدین کرت د لښکر د راتګ خبر چې واورېد، له اندخای څخه د اوغانستان پر خوا وتښتېد. شال او بیني کاو ته چې ورسېد، شهزاده تبسین اقول او ملک شمس الدین ورپسې ورسېدل او تر لږه مقاومت وروسته نکودر مات سو.

تاریخنامه وروسته زیاتوي:-

... ملک اختیارالدین تولک چې د بیني کاو اووه فرسنګی ته ورسېد، هلته د اوغانانو یوه قبیله وه چې دوه زره سرې یې درلودل او د هغو مشر هرموزتري و. ملک اختیارالدین تولک او پهلوان محمد نهي او مجد عرض؟ چې کله د دې قبیلې په وژلو او تکولو لاس پورې کړ، هرموزتري له خپلې خیمې څخه نشه راووت او پر خپل قوم یې ږغ وکړ. دوه زره اوغانان د

جګړې له پاره د ده پر شاوخوا راټول او د جګړې ډګر ته داخل سول. په یوه حمله یې مجد عرضي له اوو تنو نورو سره وواژه. د هرموزتري ورور له ملک تاج الدین کرت څخه، چي په بیني کاو کي و، مرسته وغوښته او هغه د هرموزتري په پلوي له شپږ زره اوغانانو سره د ملک اختیارالدین پر ضد جنګ ته داخل سو، ملک اختیارالدین تولک او د هغه اکثره لښکریان اسیر سول.



## د ملک رکن الدین(۵) برید :-

د ملک شمس الدین اول تر مرګ وروسته په ٦٧٧ هـ ق کي ملک رکن الدین (٦٧٧ - ٧٠٥ هـ ق)، چي په تاریخ کي په ملک شمس الدین کهین سره مشهور دئ او د ملک شمس الدین اول زوی و، د مغول پاچا اباقاخان (٦٦٣ - ٦٨٠ هـ ق) له خوا د هرات، خراسان او کندهار واکمن وټاکه سو. د خراسان ټول مشران او حاکمان یې مبارکۍ لره هرات ته ورغلل، مګر یو د کندهار حاکم ورنغی. دا خبره پر ملک رکن الدین بده ولګېدله او په ٦٨٠ هـ ق کال یې له یوه درانه پوځ سره پر کندهار برید وکړ. دیرلس ورځي سخت جنګونه وسول. څورلسمه ورځ ملک رکن الدین پخپله له ټول سپاه سره پلي برید وکړ او کلا ته یې نژدې ځانونه ورسول. نژدې و چي د ښار دروازې ته اور ورته کړي. په دې وخت کي د کلا خلکو امان وغوښت. څه مالونه یې (د کلنګ په توګه) ورته راولېږل. ملک رکن الدین بیرته هرات ته ستون

---

(۵) ملک رکن الدین په ٦٨٠ هـ ق کال د اباقاخان تر مرګ وروسته خپل یو زوی علاوالدین د هرات نائب الحکومه مقرر کړ او بل زوی یې فخرالدین (٧٠٦ هـ ق مړ) اووه کاله بندي کړ، په پای کي د مغولي سردار نوروز په مرسته له بنده خلاص سو. پلار یې له حکومته خلعه کړ او پخپله یې پر ځای کښېناست. رکن الدین د خیسار کلا ته پناه یووړه او هلته په ٧٠٥ هـ ق کال ومړ.

(٦).

## ...لطان غياث الدين کرت :-

په روضات الجنات کې لیکلي دي :-

له آمو رود څخه تر سنده رود پوري دا ټولي سیمي د سلطان غیاث
...دین (۷۰۸ - ۷۲۹ هـ ق) په لاس کي دي.

ملک فخرالدین د ملک رکن الدین زوی د ملک شمس الدین اول
...ی چي په ۷۰٦ هـ ق ومړ، پر ځای یې زوی غیاث الدین پاچا سو. اکا یې
...والدین ورته پورته سو، ده مجبوراً سلطان محمد خدابنده ته پناه یووړه،
...۷۰۸ هـ ق کال بیرته هرات ته راغی. غور، اسفزار او خیساریې هم ونیول.
...۷۲ هـ ق کال حج ته ولاړ او په ۷۲۹ هـ ق کي ومړ.

# تیموریان

## پر کندهار باندي د ګوډ تېمور برید :-

په حبیب السیر کې لیکلي دي :-

ګوډ تېمور چې هرات ونیوه د سیستان د نیولو په تکل کې سو. شاه جلال الدین فراهي هم ورسره مل سو. د ده په لارښوونه او ملګري، تېمور د زره کلا او سیستان ونیوه. وروسته تر هغه یې مخ د کندهار خوا ته کړ او کندهار ښاریې په ډېر قهر و غضب ونیوه. ګوډ تېمور ژمی په کندهار کې تېر کړ. په دغه موده کې یې د کندهار ټول سرداران په دار کړل.

## میرزا غیاث الدین جهانګیر :-

د ګوډ تېمور (۸۰۷ هـ ق مړ) په ژوند د ګوډ تېمور زوی میرزا غیاث الدین جهانګیر د کابل، غزني، کندهار، قندوز، بغلان او د بلخ سیمې د هند تر سرحد پورې اداره کولې او د دغو ځایونو حاکم و. جهانګیر د پلار په ژوند ... هـ ق کال ومړ.

## میرزا پیرمحمد :-

جهانګیر غیاث الدین چې ومړ. تېمور د کندهار، غزني، کابل، ... حکومت خپل لمسي میرزا پیرمحمد ته ورکړ، چې د جهانګیر غیاث الدین زوی و. په ۸۰۷ هـ ق چې تېمور ومړ، ده د استقلال او پاچهۍ اعلان وکړاو

کابل یې پایتخت وټاکه. (میرزا پیرمحمد) په ۸۰۹ هـ ق کال په شبرغان کې وواژه سو.

## میرزا شاهرخ :-

د میرزا پیرمحمد تر مرګ وروسته د کندهار، کابل، ... سیمې د شاهرخ تر اداري لاندې سوې، چې د تیمور زوی و او هرات یې پایتخت وا و د شاهرخ ځلرم زوی سیورغتمش تر هنده پورې د کابل - زابل والي سو.

سیورغتمش په ۸۳۰ هـ ق کې ومړ.

علامه حبیبي په تاریخ مختصر افغانستان ۱۷/۲ مخ کې لیکلي دي :-

په ۸۱۱ هـ ق کال ینال تګین (د شاهرخ په امر؟) پر فراه برید وکړ. شاه اسکندر او پهلوان شمس دراز؟ یې د فراه په کلا؟ کې کلابند کړل. هغوی ایل سول، د جوین او اوک کلاوي یې ونیولې، د ملک محمود سیستاني زوی ملک قطب الدین ته یې بیرته د سیستان واک وسپاره. د کندهار، غزني او کابل واک یې تر اباسینه پورې میرزا قیدو ته ورکړ، چې د غیاث الدین جهانګیر زوی او د تیمور لسمی و.

## د پیرک کندهاري او مودود ګرمسیري مخالفت :-

په ۸۱۲ هـ ق کال د امیر کتلو د زوی پیرمحمد کندهاري[1] چې په پیرک مشهور و، او د ګرمسیر د مشهور مودود تر منځ مخالفت پېښ سو. دواړه د نیاوله پاره هرات ته ولاړل. شاهرخ د ګرمسیر حکومت پیرک کندهاري ته وسپاره او مودود یې د هرات په دربار کې مقرر کړ[2].

---

[1] پیرمحمد د امیر تومان کندهاري ورور و.

[2] تاریخ مختصر افغانستان، ۱۸/۲ مخ.

## د سیفل کندهاري د زوی او ملک محمد شخړه :-

په ۸۲۰ هـ ق کال د کندهار د دوو مشرانو تر منځ مخالفت پېښ سو. دغه محلي مشران یو د سیفل کندهاري زوی او بل ملک محمد و او د کندهار پښتانه له گرمسیر څخه د اباسین تر غاړو پوري پورته سول. شاهرخ د دوی د اېلولو له پاره د دغه کال د رجب په پنځلسمه وخوځېد او د برات په پنځلسمه یې د صدرعالي صدرالدین ابراهیم په واسطه د هزاره گانو کلانتران وروغوښتل. له بدخشانه څخه د شاهرخ د زوی سیورغتمش لښکري هم د بدخشان له امیرانو سره هرات ته راغلې. شاهرخ له هزاره وو او د بدخشان له لښکر سره مخ پر کندهار راوخوځېده، په لارکي د سیستان حاکم ملک قطب الدین هم له خپلو لښکرو سره د شاهرخ ملگری سو. پر کندهاریې برید وکړ. له غزني څخه د هزاره گانو کلانتران او د برملي پښتانه ملکان د خواجه لقمان یا (نعمان) په مشری د شاهرخ حضور ته راغلل او اطاعت یې ومانه. شاهرخ د کابل حکومت میرزا قیدو ته وسپاره او پخپله د هلمند پر غاړه د اغرق له لاري هرات ته ستون سو. د گرمسیر حکومت یې میر عبدالصمد ته ورکړ. د کندهار کوتوال یې میر حسام الدین وټاکه.

په حبیب السیر کې لیکلي دي :-

شاهرخ ژمی د هلمند پر غاړه تېر کړ. یاغیان (د سیفل زوی او محمد؟) یې ووژل.

## د میرزا قیدو یاغي کېدل او د سیور غتمش مقرري :-

په ... هـ ق کال میرزا قیدو یاغي سو. په جنگ کي میرزا قیدو د شاهرخ د لښکرو په لاس کښېووت او په هرات کي زنداني سو. په ۸۲۱ هـ ق کال د کابل، کندهار او غزني سیمي تر اباسینه پوري د شاهرخ له خوا د ده زوی سیورغتمش ته ورکړلي سوې. سیور غتمش نهه کاله د دغو سیمو واکمن

واو د ۸۳۰ هـ ق کال د محرمي په میاشت کې یې خوله پټه سوه. شاهرخ د ده زوی سلطان مسعود میرزا د ده پر ځای مقرر کړ.

## شیخ علي مغول :-

د سیورغتمش تر مرگ (۸۳۰ هـ ق) وروسته شیخ علي مغول د کابل والي سو. دغه شیخ علي په ۸۳۴ هـ ق کال پر هندوستان باندي بریدونه وکړل. ده د شمالي هندوستان د پولاد نومي امیر په بلنه د هند پر لور لښکري وخوځولې. پولاد د ډهلي د پاچا مبارکشاه (۸۲۴ - ۸۳۷ هـ ق) د زمانې له امیرانو څخه و. مبارکشاه ته یاغي سو او د پتهرهند په کلا کي یې شپږ میاشتي کلابندي وگالل. شیخ علي تر دیپالپوره پوري ملکونه ونیول[۳].

## امیر خلیل :-

ابوالقاسم بابر (۸۶۱ هـ ق مړ) د شهزاده بایسنغر (۸۳۷ هـ ق مړ) زوی د شاهرخ (۸۰۷ - ۸۵۰ هـ ق) لمسی د گوډ تېمور (۸۰۷ هـ ق مړ) کړوسی چي په ... هـ ق کال هرات ته راستون سو، د تېمور کړوسی د غیاث الدین جهانگیر لمسی د میرزا پیرمحمد (۸۰۹ هـ ق مړ) زوی امیر خلیل یې د ملک حسین ځبلو ته وگوماره. ملک حسین د ملک علي زوی د سیستان والی واو د هرات مغولي دربار ته یې د مالیې له ورکړي او اطاعت څخه نټه کړې وه. امیر خلیل چي د میرویس تر خان په مرسته سیستان ونیو، د دې سوبې په افتخار د ابوالقاسم بابر له خوا د نیمروز او زاول ملکونه ده ته د سیورغال په شکل وروبخښل سول. معین الدین اسفزاري په ۸۹۷ هـ ق کال په روضة

---

[۳] لودي پښتانه، ۵۳ مخ.

الجنات کي ليکلي دي چي د امير خليل له ظلمه څخه تر اوسه پوري له کندهاره څخه نيولې تر اسفزاره پوري او له زاوله څخه تر کابله پوري دا ټولي سيمي خرابي ويجاړي دي.

باران دوصد ساله فرو نه نشاند

اين گرد بلا را که تو انگيختهء

امير خليل د دغو ټولو سيمو د مشرانو او ملکانو جايدادونه ضبط کړل او وروسته تر هغه يې ووژل. او وروسته د هرات مرکزي حکومت ته ياغي سو او هرات يې کلابند کړ. په ۸۶۵ هـ ق کال امير خليل سلطان سعيد ميرزا (۸۷۲ هـ ق مړ) د سلطان محمد زوی د جلال الدين ميران شاه لمسي د گوډ تيمور کړوسي ته ايل سو او کندهار، کابل، فراه او سيستان چي د امير خليل د حکومت ساحه وه، د سلطان ابو سعيد تر اداري لاندي راغله (روضة الجنات).

## پر کندهار باندي د شمس الدين سيستاني بريد(۴) :-

د سيستان والي ملک قطب الدين د شاهرخ دربار هرات ته تللی و. سيستان ته چي ستنېدی پر لاري د ۸۲۲ هـ ق کال د محرمي پر ۱۵ ومړ.

ملک شمس الدين علي د ۸۲۲ هـ ق کال پای ته د هرات له درباره څخه د سيستان والي مقرر سو. ملک شمس الدين علي، چي د سيستان خلک يې شاه علي ولي بولي، د شاهرخ په امر پر کندهار بريد وکړ. تر سوبي وروسته يې د کندهار کيلی هرات ته يووړلې. شاهرخ د دغي سوبي

---

(۴) علامه رشاد رحمة الله عليه تر دغه عنوان وړاندي د (کندهاري خواجه علي قصه چي د گرماو په حدودو کي د علاوالدين او خسروشاه په جنگ کي زخمي سوی او بيا يې ۱۵ کاله نور ژوند کاوه) عبارت راوړی دئ او د (آداب الحرب والشجاعه، ۵۷ مخ) حواله يې ورکړې ده (م. هـ).

په صله کي د اوق کلا (قلعهٔ کاوه و جوین)، د کچ او مکران حکومت ده ته ورکړ. ملک شمس الدین علي په ۸۴۲ هـ ق کال د ۵۱ کلو په عمر تر یوویشت کاله حکومت وروسته ومړ[۵].

## شهزاده محمد جوګي :-

دولت شاه سمرقندي پخپله تذکرة الشعراء ۳۴۱ مخ کي، چي په ۸۹۲ هـ ق کې تالیف کړیده، لیکي :-

مولانا علي شهاب ترشیزي د شاهرخ (۸۰۷ - ۸۵۰ هـ ق) د زوی شهزاده محمد جوګي، چي په ۸۴۸ هـ ق کي مړ دئ، مداح شاعر و. وایي یو وخت چي سلطان جوګي له خپلو لښکرو سره کندهار ته تللی و، مولانا شهاب یې هم له ځانه سره بیولی و. یوه ورځ شهزاده دا بیت له ځاه سره ووایه :-

کنون که باد صبا مشکبار می گذرد
دریغ عمر که بی روی یار می گذرد

مولانا سمدستي ورته راوځغستل او ورته وې ویل، دا بیت داسي نه دئ :-

کنون که باد صبا مشکبار می گذرد
دریغ عمر که در قندهار می گذرد

شهزاده جواب ورکړ :- "رشتیا هم دغسي ده" او ډېر ژر (په لنډو ورځو کي) یې له کندهاره هرات ته لښکر وکوچاوه او د کندهار د بد بویه هوا له سختۍ څخه خلاص سو[۶].

---

[۵] وګ : احیاء الملوک د ملک شاه حسین سیستاني تالیف.

[۶] د شهزاده جوګي په ستاینه کي د مولانا شهاب د قصیدې یو بیت دا دئ :-

خدیو ملک محمد ستوده جوگی شاه
که ختم گشت برو منصب جهان داری

## د نظام الدین احمد برلاس او میرزا محمد عمر حکومتونه :-

د ۸۷۴ هـ ق کال په شاوخوا کې د هرات د تېموري دربار له خوا نظام الدین احمد برلاس د کندهار نائب الحکومه و. د هرات تېموري حکومت ته پورته سو. د هرات تېموري دولت چې د نظام الدین احمد برلاس په یاغي کېدلو خبر سو، یو تېموري شهزاده یې، چې میرزا محمد عمر نومېد، د برلاس د ځبلو له پاره وګوماره. میرزا محمد عمر چې د برلاس په ځبلو بریالی سو د کندهار د حکومت واګې یې پخپله واخیستلې.

## د سلطان حسین بایقرا برید :-

سلطان حسین بایقرا چې پاچا سو، خپل زوی بدیع الزمان یې کندهار ته ولېږه، چې د ذوالنون ارغون په مرسته پر بلخ او شبرغان برید وکړي، خسرو شاه به د بدخشان، ختلان او قندوز له امیرانو سره د شرق له لوري پر بلخ راسي. بدیع الزمان چې د کندهار د ګرمسیر خوا ته نژدې سو، ذوالنون له خپلو دوو زامنو شجاع او مقیم سره د ده مخې ته راغلل. بدیع الزمان چې کندهار ته راغی د امیر ذوالنون له لور سره یې واده وکړ.

## د شیخ علي او ذوالنون مخالفت :-

ذوالنون په زمینداور کې یوه زیارت ته تللی و. ناڅاپه یوه ناپېژندلي سړي د چړې واری پر وکړ، خو ذوالنون بچ سو. ذوالنون دا برید د امیر شیخ علي په تهونګ وباله. د ده او د کورنۍ د وژلو اراده یې وکړله. امیر شیخ علي بدیع الزمان ته پناه وروړله، خو د ذوالنون د لښکرو د ټینګار په سبب یې امیر شیخ علي په دې شرط ذوالنون ته وسپاره چې وژني به یې نه. شیخ علي چې څه موده د ګرمسیر په کلا کې د بندي په توګه تېره کړله، خوشي سو او دستي هرات ته ولاړ او د سلطان په امراوو کې قبول سو.

# ارغونیان

## (له ۸۸۴ څخه تر ۹۲۸ هـ ق پورې)

**امیر ذوالنون :-**

د میر حسین زوی امیر ذوالنون بېگ د هرات له گورگاني امیرانو څخه و. په ۸۸۴ هـ ق د سلطان حسین بایقرا (۸۷۳ - ۹۱۱ هـ ق) له خوا د غور او داور (زینداور) حکومت ورکړه سو، کندهار او فراه یې ونیول. زمین داور یې خپل پایتخت کړ. دی په ۹۱۳ هـ ق کال ومړ. زامن یې شاه بېگ (شجاع بېگ) او محمد مقیم د کندهار والیان سول.

لوی استاد حبیبي صاحب د محمدظهیرالدین بابر په ۱۱ مخ کې د میر معصوم د تاریخ سنده په حواله لیکلي دي :-

امیر ذوالنون د ابو سعید میرزا (۹۵۴ - ۹۷۲ هـ ق) له لښکریانو څخه و. په خراسان او ماوراء النهر کې یې د زړه ورتوب ږغ تللی و. سلطان حسین بایقرا په ۹۰۴ هـ ق کال د غور - زمینداور، فراه او کندهار واکمن و.

د سلطان حسین بایقرا تر مرگ وروسته یې استقلال ومونډ. شال و مستنگ یې ونیول او سنده ته یې لښکر واستاوه.

په ۹۱۳ هـ ق کال چې شیباني خان پر هرات برید وکړ، دی په دغه جنگ کې وواژه سو.

امیر ذوالنون د هرات له شاهي کورنۍ سره خپښي درلوده. د سلطان

حسین بایقرا زوی شهزاده بدیع الزمان د ده زوم و. په ۹۰۲ هـ ق کال دغه واده سوی و.

د بابرنامې په ۱۲۲ مخ کې لیکلي دي :-

په ۹۱۲ هـ ق کال زه (بابر) له هراته څخه د غور پر لار کابل ته تلم. له غرجستانه څخه چخچران ته راغلم. د چخچران حکومت د ذوالنون په قلمرو کي و. د ده له خوا څخه میرک خان ابرو د چخچران حاکم و. مور د ګدام غلې او دانې تولي له ده څخه په بیه رانیولې.

## د سلطان حسین بایقراء له خوا د کندهار حکومت ته د امیر ذوالنون ارغون مقرر یدل :-

میر معصوم د تاریخ سنده په دریم توک کي لیکي :-

امیر ذوالنون بن میر حسن بصري د سلطان ابو سعید میرزا په وخت کي د ده په ملازمانو کي و او پر سلطان باندي تر خپلو خپلوانو او ورونو ګران و. د قراباغ تر پیښي وروسته امیر ذوالنون له خپل پلار سره په هرات کي یو ځای و او د سلطان یادګار میرزا په خدمت کي یې څه موده تیره کړه. دوه دري کاله هورې و. وروسته سلطان حسین میرزا د زمینداور او غور واکمن وټاکه. امیر ذوالنون په ۸۸۴ هـ ق کي له څه لښکر سره هغه لور ته وخوځېد. په هغه وخت کي پر دغو سیمو باندي د هزاره وو او نکودریو لاس بر و. امیر ذوالنون درې څلور کاله له هزاره وو سره جنګونه وکړل او هغوی یې وځبل او پر کندهار و فراه و غور باندي یې خپله سلطه ټینګه کړه[1].

د روضات الجنات في اوصاف مدینة الهرات په ۳۴۳ مخ کې کښلي دي:-

---

[1] علامه رشاد مرحوم تر پورتني سرلیک وروسته خالي ځای پرې ایښی دئ. ما دغه پورتنی برخه د یادابنتو د لومړي توک له ۹۶ مخ څخه پخپل انتخاب راوژباړله (م. هوتک).

د شاهرخ له وختو څخه بیا تر اوسه (۸۹۷ ـ ۸۹۹ هـ ق) پوري غور و گرمسیر و کندهار د نکودري او هزاره وو له چورچپاو څخه ډېر په عذاب و. خوارغون ذوالنون شجاع الدین چي د سلطان حسین بایقراء (۸۷۳ ـ ۹۱۱ هـ ق) له خوا د کندهار والي سو، د هزاره گانو د چپاو مخه یې ونیوله. په غور و گرمسیر کي خو د هزاره وو د چپاوونو له امله څوک نه اوسېدل. په کومه ورځ چي د سلطان یعقوب خط د هرات دربار (سلطان حسین بایقراء) ته راغی، په دغه ورځ د سلطان ابو تراب او ارغون امیر ذوالنون له خوا له گرمسیره څخه د هزاره گانو دوه سوه سره هرات ته راورسېدل او سلطان یعقوب چي دربار ته تلی، دغه سرونه یې د ده په لار کي ورته ایښي وو. د سلطان یعقوب د خط په جواب کي چي د سلطان حسین بایقراء له خوا کوم خط ورولېږل سو، د هزاره گانو د چپاوونو په باب یې داسي لیکلي دي :-

جمعی از اضالیل باغیه واباطیل طاغیه که کمیت ایشان نامعلوم و به هزاره آغا موسوم اند. بکثرت عدت و اعداد و فورقوت و استعداد و شوامخ جبال و شواهق تلال مستظهر و پای در دائرهٔ بغی و عناد نهاده سر از گریبان بغی و فساد بر آورده داشتند و اراقهٔ دماء مسلمانان هدر و غارت اموال ایشان غنیمت می پنداشت. بنیان ایمان از ساحت سینهٔ ناپاک شان منقطع وطرق و سبل بلاد و دیار مسلمانان از شومی تعرض آن بی دینان منقطع. گویی ان یاجوج و ماجوج مفسدون في الارض آیتی در شان ایشان نازل شده و موادای : و هم من کل حدب ینسلون از نسل بد اصل ایشان حاصل آمده، للسید حسین :-

بخلق و خلق زشت و بد
بقول و فـــعل دام و دد
باصـــل ذات دون ورد
ببخت و طبع شور و شر

ذوالنون ارغون له ۸۸۴ هـ ق څخه تر ۹۱۳ هـ ق پورې د کندهار واکمن و.[۲]

## کندهار ته د شهزاده بدیع الزمان تګ :-

د بابرنامې په ۲۹ مخ کې لیکلي دي :-

بدیع الزمان د سلطان حسین بایقراء مشر زوی او د پلار له خوا د بلخ حاکم و او د بدیع الزمان زوی محمد مومن بیګ د استرآباد حاکم و. سلطان حسین بایقراء چې د استرآباد حکومت خپل بل زوی مظفر حسین ته ورکړ، بدیع الزمان د استرآباد له ورکړې څخه نته وکړله. د پلار و زوی (سلطان حسین بایقراء او بدیع الزمان) ترمنځ جنګ پېښ سو (۹۰۲ هـ ق). سلطان حسین بایقراء پر بلخ برید وکړ او مظفر حسین پر استرآباد حمله وروړله. په دواړو ځایونو کې شکست په یوه ورځ د بدیع الزمان او زوی په نصیب سو.

بدیع الزمان لومړی خسروشاه ته پناه یووړله چې د قطغن حکمدار و قندوز یې د حکومت مرکز و. خسرو شاه په خورا درنه سترګه ورته وکتله. څه موده پس بدیع الزمان کندهار ته ولاړ. ذوالنون ارغون او د هغه زوی شاه بیګ ارغون ته یې پناه وروړله. ذوالنون هم ډېر ونازاوه. یو پېشکش یې ځلوېښت زره پسونه وو.[۳]

## کندهار ته د سلطان حسین بایقراء راتګ :-

په حبیب السیر کې یې کښلي دي :-

د جمادي الاول په لومړۍ ورځ سلطان حسین بایقرا د کندهار او

---

[۲] علامه رشاد رحمه الله د امیر ذوالنون په باب د بابرنامې ۱۲۹ مخ ته حواله ورکړې ده (م. هـ).

[۳] په دې برخه کې د تاریخ روضة الصفا د ۲۲۰/۷ مخ حواله هم ورکړه سوې ده (م. هوتک).

گرمسیر و خوا ته د بدیع الزمان مقابلې ته لښکري وخوځولې، که څه هم د باشلنګ په جنګ کي د ذوالنون پښه ګوډه سوې وه خو د بدیع الزمان سره د مرستي په خاطر يې سنګرونه ټينګ کړل. شجاع بيګ (شاه بيګ) د کندهار د کلا او مقيم د زمينداور د کلا استحکامات ټينګ کړل. د سلطان حسين بايقرا لښکري په زين داور کي له لوږي ډېري په عذاب سولې، نژدې و، چي سره تيت و پرک سي، خو د دوی له ښه مرغه يې واورېدل چي عبدالرحمن ارغون د بست کلا ګدامونه په غلو ډک کړيدي. د بست پر کلا يې بريد وکړ کلا يې ونيوله او ډېره غله او وچ واښه يې په لاس کښېوتل. د بست تر نيولو وروسته يې هرات ته مخ ونيو[۴].

## د کابل نيول :-

په ۹۰۷ هـ ق کال په غزني کي د الغ بيګ تر مرګ وروسته ورو کي زوی يې عبدالرزاق د کابل واکمني خپله کړله. ذوالنون او کشر زوی مقيم له کندهاره پر کابل بريد وکړ. کابل يې له عبدالرزاقه ونيوه، مقيم په ۹۰۸ هـ ق کال د کابل د تېموري والي الغ بيګ بن سلطان ابو سعيد ميرزا د لور ظريف خاتون سره واده وکړ[۵].

---

[۴] علامه مرحوم په دې برخه کي د تاريخ روضة الصفا په ۱۵۴/۷ مخ حواله هم ورکړې ده (م. هوتک).

[۵] د دغې ښځي لور حاجي ماه بېګمه وه چي تر ۹۵۷ هـ ق کال وروسته د محمدباقي ميرزا په بند کي ومړله. دې درې مړونه کړي وه.

اول  قاسم کوکه. چي د محب برلاس مانيه ناهيد بېګمه يې لور وه.

دوهم  شاه حسن ارغون (۹۲۸ - ۹۶۲ هـ ق)، خپل د اکا زوی. اولاد يې ځني ونه سو.

دريم  ميرزا عيسی ترخان (۹۶۲ - ۹۷۲ هـ ق). اولاد يې ځني ونه سو.

د ميرزاتر خان له زوی ميرزا باقي (۹۷۲ - ۹۹۲ هـ ق) څخه د ناهيد بېګمي لور رايحه بېګمه وه.

## شاه بېګ ارغون :-

په مآثر رحيمي ۲۸۴ مخ کي د ده نوم شاهي بېګ ليکلی دئ. دی د ذوالنون ارغون مشر زوی او له ۹۱۳ ھ ق څخه تر ۹۲۸ ھ ق کال پوري د کندهار واکمن و.

په روضة السلاطين ۹۷ مخ کي فخري هروي د لسم هجري قرن په شپږمه لسيزه کي کښلي دي :-

د ذوالنون ارغون زوی شاه شجاع په کندهار کي مدرسې، خانقاوي او نوري خيري موسسې جوړي کړلې او مدرسان و ملايان يې له شاوخوا څخه راوبلل. اوس کندهار د ده په برکت دارالقرا ګرزېدلی دئ.

شاه شجاع (شاه بېګ) په مکه معظمه کي ښخ دئ. دی د پارسي ژبي شاعر او (نفسي) يې تخلص و. دا بيت د ده دئ :-

بگسل و پيوند کن خود را، به از خود رسته‌ء

ميوه‌ء کـــز شاخ پيوندی بود شيرن تر است

## پر سنده باندي د شاه بېګ بريد :-

د تاريخ سنده په ۱۰۴ مخ کې ليکلي دي :-

د جام نظام الدين د واکمنۍ په وروستيو کلو کي شاه بېګ پر سنده بريد وکړ. د کندهار لښکر ترا کړی - چاندوکی او سيدبچه پوري راغی او دا سيمي يې لوټ کړلې. جام نظام الدين يو تکړه لښکر د شاه بېګ مدافعې له پاره ور ولېږئ. د جلوکشير؟ په سيمه کي جنګ ونښت. په دې جنګ کي د شاه بېګ ورور وواژه سو او لښکر په ماته کندهار ته ستون سو.

د تاريخ سنده په ۱۰۸ ۱۵۴ مخونو کي راغلي دي :-

په ۹۲۶ ھ ق کال د محرم پر ۱۱ شاه بېګ د سنده نيولو ته مخه وکړله. په دغه وخت کي د جام نظام الدين زوی جام فېروز د سنده واکمن و. په

نښتې کې د کندهار د پوځ او د سنده د لښکر، چې د درياخان په مشرتابه جنګېده، سخت جنګ وسو. د سنده لښکر مات سو او درياخان وواژه سو. جام فېروز د ګجرات پاچا سلطان بهادر ته پناه يووړله[٦].

## د مغل بابر لومړی برید :-

په ۹۱۳ هـ ق کې بابر له کابله څخه د کندهار د نیولو په نیامت خپلې لښکرې راوخوځولې. کلات ته چې راورسېد سمدستي جنګ ونښت. تر ماخستنه کلک جنګ وسو. پای ته فرخ ارغون چې د ارغون میرزا مقیم له خوا د کلات واکمن و، امان وغوښت. کلا يې بابري پوځ ته وسپارله. پخپله يې توره و شخولی (تیردان) په غاړه کې اچولي، بابر ته ورغی. بابر هم وباخښه. بابر بیا د کلات جنوبي دډي ته مخ ونیو. د سنګ ا والاتغ[٧] پښتانه يې ولوټل. کلات يې خوشي پرېښود او کابل ته يې بېرته ترپلل[٨].

د مآثرالامراء په ۵۵۱/۲ مخ کې کښلي دي :-

سلطان حسین بایقراء چې په ۹۱۱ هـ ق کال ومړ، زامنو يې (بدیع الزمان – مظفر حسین) په ګډه پاچهي کوله. په دغه وخت کې شیباني خان اوزبک پر خراسان برید وکړ. د ۹۱۳ هـ ق کال د محرمي په ۱۱ يې هرات ونیو. شجاع بېګ ارغون (شاه بېګ) د شیباني خان حضور ته ورغی او هغه

---

[٦] وګ : د معصومي د تاریخ سنده په دریمه برخه کې د کندهار د ارغونیانو بیان.

[٧] د پښتنو تاریخ ۱۶/۱ مخ کې کښلي دي : د غلځو د قلات لمر ختیز پلو ته (هوتک) اوسي. د دوی علاقې ته (هولاتغ)، (غونډان) او (پتون) وایي. د عبدالرحمن کلا د دې لتو صدر مقام دی او د غلځو پاچهانو د اولاد لویه کلا ده. دا د غوري مرغې په ضلعه کې واقع ده. د هولاتغ لمر خاته او قطب ته د کراسته او کتواز علاقه ده.

په بابرنامه ۱۰۰ مخ کي دغه نومونه سوراخ سنګ او اله تاغ لیکلي دي. اله تاغ ترکی نوم دئ، د برګ غره معنا لري(؟)

[٨] بابر نامه، ۹۹ – ۱۰۰ مخ.

ونازاوه. په دغه کال بابر له کابله پر کندهار برید وکړ. پسله جنګه يې کندهار ونيو او خپل کشر ورور ناصر ميرزا ته يې وسپاره[۹]. شيباني خان چې خبر يې د الغ بېګ زوی ميرزا عبدالرزاق ته وسپاره. شيباني خان چې خبر سو، پر کندهار يې برید وکړ. ناصر ميرزا تر څو ورځو کلابندی وروسته کندهار شيباني خان ته وسپاره، پخپله کابل ته ولاړ. شيباني خان بيرته کندهار ارغونيانو ته وسپاره. په ۹۱٦ هـ ق کال په مروه کې د شيباني خان تر وژني وروسته شاه طهماسب د خراسان واکمن سو. شجاع بېګ د شاه طهماسب صفوي اطاعت ومانه. د هرات له صفوي والي درويش خان شاملو سره يې دوستانه رابطې او پيوندونه ونښلول.

په دغه وخت کي بابر له کابله پر کندهار برید وکړ. شجاع بېګ په کندهار کي کلابند سو او د هرات والي ته يې حال ولېږه. د هرات صفوي والي بابر ته وکښل چې د شاه اسماعيل او بابر تر منځ د دوستی تړون و. د هغه تړون تقاضا دا ده چې ته د کندهار کلابندي خوشي کړې. بابر کلابندي پرېښووله او کابل ته ولاړ. په دغه وخت کي شجاع بېګ خراسان ته ولاړ او کندهار يې خپل معتمد او باوري ملا باقي ته پرېښوو. ملا باقي له بابر سره جوړه وکړه. کندهار يې بابر ته وسپاره او هغه خپل زوی ميرزا کامران د کندهار والي مقرر کړ[۱۰].

---

[۹] بابر نامه. ۱۲۹ مخ.

[۱۰] علامه مرحوم په دې باب د ګلبدن بېګمي د همايون نامې له ۵۳ مخه څخه څلور ليکي رانقلوي. څرنګه چې مکررات وو، نو تر تېر سوم (هوتک).

## د شيباني خان بريد[11]:-

د ۹۱۳ ه ق کال د محرمي په مياشت کې د شيباني خان لښکري تر مرغاب راتېري سولې هرات يې ونيو. فراه او گرم سيرېې هم خپل کړل.

شاه بېگ او مقيم چي دا واورېدل، ظاهراً يې د شيباني خان اطاعت ومانه د کندهار خطبه او سکه يې د ده په نامه کړله او له کابله يې بابر خپل مرستي او د شيباني خان مقابلې ته راوغوښت[12]. بابر چي کندهار ته راغی شاه بېگ او مقيم کلابند سول. په خاليشک[13] کې جنگ وسو بابر بريالی سو او شاه بېگ شال و مستنگ ته وتښتېد او مقيم زمينداور ته ولاړ.

ميرزا مقيم چي د بابر له لاسه زمينداور او شاه بېگ شال و مستنگ ته تښتېدلي وو. شيباني خان ازبک يې د کندهار نيولو ته ولمساوه او شيباني خان هم سمدستي پوځونه د کندهار خوا ته ولېږدول. زمينداور ته چي راورسېد، مقيم او شاه بېگ ډېر پېشکشونه ور وړاندي کړل او د شيباني خان په قراول کې د عبدالله سلطان سره را روان سول. کندهاريې کلابند کړ. د کلات حاکم ميرزا عبدالرزاق د کابل خوا ته تر پلل[14]. د کندهار مشرانو د عبدالله سلطان او ارغوني مشرانو ډېر ښه هرکلی وکا. د شيباني خان لښکري هم ورپسې ور ورسېدلې. پر ناصر ميرزا مځکه تنگه سوه، امان يې وغوښت او

---

[11] د تلفيق الاخبار په ۵۰۴/۲ مخ کې کښلي دي: د تېموريانو تر سقوط وروسته د ازبکانو خاني په ماوراء النهر کي لومړی وار محمدخان جوړه کړه. چي په شيباني خان سره مشهور دئ او شيبک خان يې هم بولي. ابوالفتح محمد خان شيباني د شاه بداق زوی د ابوالخير خان لمسی د دولت شيخ کړوسی د ابراهيم کوسی د فولاد کودی او د منگ تېمور (ملقب په کولوک) پردی دئ. منگ تېمور د باداقل زوی د جوجي لمسی د بهادر خان کړوسی د شيباني خان کوسی د جوجای (جوجي) خان کودی او د چنگېز پردی دئ.

[12] ظهيرالدين محمد بابرشاه، ۱۴ مخ.

[13] خاليشک د ارغنداو رود پر لوېديخه غاړه کوهک ته نژدې يو کلی دئ (هوتک).

[14] بابرنامه، ۱۲۵ مخ.

څو اسونه يې د پېشکش په نامه شيباني خان ته د کندهار له کلا څخه راولېږل. ناصر ميرزا کابل ته ولاړ او شيباني خان هرات ته ازبک پوځونه ولېږدول. کندهار بيرته د شاه بېګ او مقيم په لاس ورغی. په دغه وخت کې مقيم ومړ او د کندهار پاچهي يوازې شاه بېګ ته پاته سوه[۱۵].

شيباني خان چې په هرات کې و، د سيستان ارغون حاکم امير سلطان علي يې سلام ته ورغی. شيباني خان ډېر ونازاوه او بيرته يې سيستان ته رخصت کړ. چې پسله څو مياشتي هلته ومړ او پر ځای يې قاضي منصور ميرزا د شيباني خان له خوا مقرر سو[۱۶].

د بابرنامې په ۱۳۴ مخ کې کښلي دي :-

زه (بابر) چې د کندهار له نيولو وروسته کابل ته ورسېدلم. شپږ اووه ورځي وروسته د ناصر ميرزا يو نوکر راغی، حال يې راووړ چې شيباني خان پر کندهار بريد وکړ. ښار يې کلابند کړ "ناصر ميرزا امان وغوښت. شيباني خان کندهار د ذوالنون زامنو ته وسپاره". بابر وايي ما چې دا واورېدله له شيباني خان څخه مي د نجات لار لټوله. پای ته مو سلا پر دې سوه چې مخ پر هندوستان وخوځېږو. زه لمغان (لغمان) ته رهي سوم. عبدالرزاق چې له کلاته راتښتېدلی و، کابل مي ده ته پرېښوو.

د تاريخ عالم آرای عباسي په ۴۸ مخ کې ليکلي دي :-

د تېموريانو د پاچهی لړۍ چې په هرات کې وشلېدله، خراسان د شيباني خان په لاس ورغی. شاه بېګ ارغون[۱۷] له کندهاره څخه د شيباني خان حضور ته ورغی. هغه ونازاوه. په دغه کال بابر پر کندهار بريد وکړ. کندهار يې ونيوه او خپل ورور ناصر ميرزا ته يې وسپاره. کابل ته ستون سو.

---

[۱۵] له شاه بېګ شيباني څخه د بابر خور خانزاده بېګم وه (همايون نامه، ۴۶ مخ).

[۱۶] روضة الصفا، ۱۱۰/۷ مخ.

[۱۷] په عالم آرای عباسي کي شجاع بېګ ليکلی دئ.

شيباني خان چي خبر سو، له ډېر لښکر سره مخ پر کندهار وخوځېده، د ذوالنون ارغون زامن يې مخي ته راغلل. د شيباني له لښکرو سره يې پر کندهار بريد وکړ. ناصر ميرزا تر څو ورځو کلابندي، وروسته کابل ته وتښتېده او کندهار د شيباني خان په لاس ورغی. ده بيرته ارغونيانو ته وسپاره.

شيباني خان چي په ٩١٦ هـ ق کال وواژه سو، خراسان د شاه اسماعيل په لاس کښېووت. مگر کندهار د ارغونيانو په لاس کي و. بله پلا چي بابر پر کندهار بريد وکړ، شاه بېگ کلابند سو. د کلابندۍ په وخت کي يې له درمېشه څخه مرسته وغوښتله. درمېش خان د شاه اسماعيل له خوا د هرات والي و. د درمېش خان په غوښتنه بابر د کندهار کلابندي پرېښووله کابل ته ستون سو. شاه بېگ ملا باقي ته د کندهار واک د وکالت په توگه وسپاره. پخپله خراسان ته ولاړ. د ده په غياب کي ملا باقي بابر ور وباله او کندهار يې ور وسپاره. بابر خپل زوی ميرزا کامران د کندهار والي کړ.

په ٩٤١ هـ ق سام ميرزا بن شاه اسماعيل د کندهار نيولو ته ملا وتړله. کندهار يې کلابند کړ، په دغه وخت کي د ميرزا کامران له خوا خواجه کلان د کندهار نايب و، شپږ مياشتي يې کلابندي وگالل څو ميرزا کامران له لاهوره د ده په مرسته راغی او سام ميرزا ته يې شکست ورکړ. کامران ميرزا تر بري وروسته بيا خواجه کلان ته کندهار وسپاره.

په ٩٤٣ هـ ق شاه طهماسب له هرات څخه د کندهار د نيولو په نيامت وخوځېده. خواجه کلان چي دا واورېدل، کندهار يې کنجي خواجه ته وسپاره او خپله سنده ته ولاړ. شاه طهماسب چي کندهار ته نژدې سو، کنجي خواجه يې مخي ته راووت او د کندهار کيلۍ يې د شاه طهماسب مخي ته کښېښوولې. شاه طهماسب چي فارس ته ستنېدی براق خان يې د کندهار والي وټاکه. د شاه طهماسب تر تگ وروسته کامران ميرزا بيا پر کندهار بريد وکړ، براق خان کندهار ور وسپاره پخپله ايران ته ولاړ. دغه

براق خان بیا له همایون سره د یوه پوځ په مشری بیرته کندهار ته راغی او همایون کندهار ونیوه، تر نیولو وروسته یې ده ته وسپاره.

اېرانی شهزاده سلطان مراد چې په کندهار کې ومړ. براق خان بیرته اېران ته ستون سو او د کندهار اداره د همایون له خوا بیرم خان ته وسپارله سوه.

بیرم خان چې له همایون سره هندوستان ته ولاړ، له خپلې خوا یې شاه محمد کلاتی د کندهار نائب الحکومه کړ. په ۹۶۳ هـ ق کال د زمینداور حاکم بهادر خان ازبک پر کندهار برید وکړ. شاه محمد کلاتي له شاه طهماسب څخه مرسته وغوښتله. د شاه طهماسب له خوا د بهرام میرزا زوی د شاه اسماعیل لمسی سطان حسین میرزا د شاه محمد کلاتي مرستي ته ولېږی. علي یار سلطان افشار او ولي خلیفه شاملو هم ورسره وو. ولي خلیفه پر بهادر خان ازبک برید وکړ. بهادر خان هندوستان ته وتښتېد. زمینداور اېرانیانو ونیوه. له دغه بري وروسته مخ پر کندهار وخوځېدل.

شاه محمد کلاتی کلابند سو. طهماسب چې خبر سو. په ۹۶۵ هـ ق کال یې علي سلطان تاتی اغلی د کندهار نیولو ته وګوماره او کندهارو کلات یې د نوموړي سلطان حسین میرزا په نامه کړل. شپږ میاشتي کلابندي اوږده سوه. پای ته شاه محمد کلاتي امان وغوښت، کندهار یې سلطان حسین ته وسپاره. پخپله هندوستان ته ولاړ. سلطان حسین میرزا تقریباً شل کاله د کندهار والي و او د اسماعیل میرزا د جلوس په وخت کې ومړ.

## د بابر دوهم برید :-

په ۹۱۳ هـ ق کال بابر له کابله کندهار ته وخوځېد. دی لیکي ما د ارغوني حکومت سره خراسان ته د شیباني ازبک له لښکرو سره د مقابلې په

پوځونه کندهار ته ولېږدول. په کلات کې يې پښتانه ولوټل. تر کلات
نیامت وروسته
وروسته، خان میرزا او عبدالرزاق میرزا له کندهاره وروتښتېدل. په
چې ورتېر سول
دغه وخت کې بابر د کندهار ارغونیانو ته یو لیک راولېږه چې زه غواړم
خراسان د ازبکو له لاسه وکاږم. مگر ارغونیانو د ده راتګ کندهار ته ونه
مانه. بابر پوځونه پسې راولېږل. په ښار کې يې د جنګ تیاری ونیولې.
کندهار ته چې د بابر پوځونه راورسېدل، د دې له پاره چې د لخشک له
لاري له کندهاره څخه د اوبو ولې (ویالې) وتړي، د بابا صاحب (حسن
ابدال) او خالیشک خوا ته يې پوځونه وگومارل.

ارغون شاه بېگ او مقیم ورور يې سرپوزه ورته نیولې وه. بابري پوځونه
د پیرپایمال تر پوزې تېر سول. د اولانکی؟ پر واله يې چې د کندهار ښار ته
راتلله، واړول. بابري پوځونه چې د شپو شپو وږي وو. په تالا بوخت سول.
شپږ اووه زره ارغوني پوځونه له دوو خواوو پر راغلل. د یوې ډلې مشر تـوب
شاه بېگ او د بلې مشرتوب میرزا مقیم کاوه. د میرزا مقیم پوځونو د بابر پر
میسره مځکه تنگه کړه. څو پلا يې له بابره مرسته وغوښتله. مگر د بابر د پوځ
مخې ته شاه بېگ زنگون وهلی و، ویې نه کولای سوای چې د میسرې په
مرسته ورسېږي. د بابر پلي لښکري د شاه بېگ پر لښکرو راوخوځېدلې مگر د
ارغونیانو ټینگار بیرته تر شا راووهلې. په بل برید کې د شاه بېگ پوځ تر شا
تړلل او سري بېگ ترکمن او وروڼه يې د بابر پوځو تـه اېل سـول. د مقیم
پوځونو غوښتله د بابر پر میسره ورتوی سي خو د پیرپایمال کمو ویالو یې
مخه ونیوله. د مقیم پوځونه د شاه بېگ د پوځو تېښتې مجبور کړل چې تر
شا سي. د بابر پوځونه د مرغان د غره ډډې ته راواوښتل. ارغونیان د
کندهار ښار ته وتښتېدل او بابر په چارباغ کې واړول[18]. شاه بېگ د شال او
مستنگ او مقیم د زمینداور خوا ته مخ ونیو. په کلا کې دننه احمدعلي تر

---

[18] چهارباغ فرخزاد.

خان پاته سو، امان یې وغوښت او د ماشور دروازه یې خلاصه کړه. بابر په ښار ورننوت د مقیم او شاه بېګ درنې خزانې یې لاس ته کړې. بابر لیکي:-

په دغو خزانو کې دومره سپین زر وه چې تر اوسه نه موږ لیدلي او نه مو له چا څخه اورېدلي وه. لښکرو ته هومره اولجې په لاس ورغلې چې د آسونو، پسونو او نفیسو توکرانو شمېر ممکن نه و. بابر کندهار خپل ورور ناصر میرزا ته وسپاره او پخپله یې لښکري بیرته کابل ته ولېږدولې. په قره باغ کې یې اولجې سره ووېشلې.

بابر لیکي چې روپۍ تر شمېر وتلي وې، نو مو په ترازو سره ووېشلې او په سوو سوو غابه سپیني تنګې نوکرانو ته لا ورسېدلې.[19]

د ترنک د سیمي (کلات) حکومت یې میرزا عبدالرزاق ته وسپاره. په تاریخ معصومي ۴۸۷ مخ کې کښلي دي چې بابر د ۹۲۸ هـ ق کال د کوچنی اختر په دیرلسمه = ۱ سپتمبر ۱۵۲۲ ع کندهار ونیو. د روضة الصفا په ۱۱۰/۷ مخ کې لیکلي دي چې بابر مغل زینداور هم ونیو.

## د ملک جلال الدین مرسته غوښتل :-

د ازبکانو حملو سیستانیان پکو کړل. په ۱۰۰۴ هـ ق کال ملک شاه حسین سیستاني کیاني (د احیاء الملوک مولف) د مرستي غوښتلو له پاره کندهار ته ولاړ. د کندهار مغلولي حاکم شاه بېګ خان د مولتان له مغولي دار الحکومته څخه تر اجازې اخیستلو وروسته دوه درې زره تنه د سیستانیانو مرستي ته تیار کړل. په دغه وخت کې ملک شاه حسین ته حال راغی چې ازبکانو سیستان خوشي کړ. دی سیستان ته ولاړ، خو د ۱۰۰۵ هـ ق کال په وروستۍ نیمایي کې ازبکانو بیا پر سیستان برید وکړ، د سیستان واکمنان د ترقون په کلا کې کلابند سول.

---

[19] بابرنامه، ۱۳۱، ۱۳۲، ۱۳۳، ۱۳۴ مخونه.

د ۱۰۰٦ هـ ق کال په پسرلي کې د نيمروز ملکان لکه ملک جلال الدين
محمود، ملک شاه حسين، ملک ابوالفتح، ملک مظفر، شاه علي، شاه ابو
سعيد له خپلو کورنيو سره کندهار ته ولېږدېدل. د دغې قافلې شمېر تر پنځو
زرو کورنيو زيات و.

ملک جلال الدين محمود غوښتل، چې د مرستي غوښتلو له پاره د
جلال الدين اکبر (۹٦۳ – ۱۰۱۴ هـ ق) دربار ته ولاړ سي. په دغه وخت کې
شاه عباس صفوي مشهد ته راغی او جلال الدين محمود، ملک شاه حسين
او د ده ورور ملک محمود مشهد ته ورغلل او له شاه عباسه څخه يې يو فرمان
وغوښت، شاه حسين د هغه فرمان له مخې کندهار ته ولاړ او د سيستان
څخه زره کورنۍ د گرمسير او رودبار له لاري د ۱۰۰۷ هـ ق کال د لومړي
مياشتي په اوله قلعهٔ فتح ته ورسېدلې (وگ : احياء الملوک).

## پر کندهار باندي د جلال الدين محمود حمله :-

د ۱۰۱۵ هـ ق کال په پيل کې ملک جلال الدين محمود او ملک شاه
حسين سيستاني چې څو تنه صفوي اميران هم ورسره وه، له لسو زرو سپرو
سره د گرمسير له لاري پر کندهار بريد وکړ. يوولس مياشتي يې د کندهار ښار
کلابند کړ.

د کندهار مغولي حاکم له ډهلي څخه مرسته وغوښتله، د دغې مرستي
په رارسېدل د سيستاني لښکرو ستنېدل و[20].

## سيد محمد جونپوري په کندهار کې :-

د تذکرهٔ علمای هند په ۱۹۸ مخ کې ليکلي دي :-

سيد محمد جونپوري د مهدويت مدعي و، پلار يې سيدجان او مور

[20] احياء الملوک، ۴۷٦ مخ.

یې اغا ملکه نومېدله. دی په ۸۳۷ هـ ق په جونپور کې زېږېدلی دئ. په ۹۰۱ هـ ق کال حجاز ته ولاړ، هلته یې د مهدویت دعوه وکړله. هندوستان ته راغی د مهدویت تبلیغ یې پیل کړ. له ګجراته څخه حکومت ویوست سنده ته ولاړ. د سنده واکمن یې د وژلو امر وکړ چې له ملګرو سره یې ووژني. بیا د ځینو خلکو په سپارښت له مرګه خلاص سو، له ملکه یې ویوست. سید محمد جونپوري له اتو سوو مریدانو سره کندهار ته راغی. دلته د شاه بېګ ارغون حکومت و. شاه بېګ یې ارادتمند سو. دلته (په کندهار کې) یې د کندهار له علماوو سره مشاجره وکړله. هغو که څه هم سخت ورته وویل خو دی په خښم نه سو. قرآني وعظ یې پیل کړ.

بیا له کندهاره فراه ته ولاړ. هلته د ۶۳ کالو په عمر په ۹۱۰ هـ ق کال مړ او په فراه کې ښخ سو.

## درویش علي بېګ په کندهار کې :-

د امیرعلیشیر نوایي کشر ورور (درویش علي بېګ) څه موده د بلخ حاکم و. په ۹۱۷ ؟ هـ ق کال چې بابر کندهار ونیو، دی کندهار ته راغی او دلته مېشت سو. په بابرنامه کې یې بې هنره او کوردماغ بللی دئ.

## د شاه حسن تښتېدل کابل ته :-

د شاه بېګ ارغون زوی شاه حسن په ۹۲۱ هـ ق کال = ۱۵۱۴ ع په کندهار کې له خپله پلاره خوابدی سو او کابل ته بابر ته ورغی. بابر ډېر ونازاوه. په ۹۲۲ هـ ق کال بابر بیا د کندهار نیولو ته ملا وتړله. کندهار یې کلابند کړ او په ۹۲۳ هـ ق کال یې کندهار ونیو[۲۱].

---

[۲۱] علامه رشاد رحمه‌الله د شاه حسن په باب د یادانښتو په ۱۱۸ مخ کې د مآثر رحیمي ۲۹۷ مخ ته حواله ورکړې ده (هوتک).

## د عسکري میرزا حکومت :-

په ۹۳۷ هـ ق کال بابر په اګره کې ومړ. میرزا کامران زوی یې چې په خبر سو، کندهار یې میرزا عسکري ته وسپاره او پخپله یې هندوستان ته مخ ونیو. تر لودهیانې پورې پر مخ ولاړ او له همایون څخه یې د کندهار، کابل او پنجاب واک تر لودهیانې پورې واخیست[۲۲].

## د خواجه کلان بیګ حکومت :-

په ۹۳۹ هـ ق کال چې عسکري میرزا له کندهاره کابل ته تئ، هزاره وو مخه ورته ونیوله او عسکري میرزا ته یې کلکه ماته ورکړه. دا خبره چې کامران میرزا ته په لاهور کې ورسېدله عسکري میرزا ته په قهر سو د کندهار حکومت یې ځني واخیست او خواجه کلان بیګ ته یې وسپاره[۲۳].

## د سام میرزا یرغل :-

صفوي شاه طهماسب په (... هـ ق) کې عبدالله خان ازبک ته چې پر خراسان یې یرغل کړی و، ماتې ورکړه. نو خپل ورور سام میرزا ته یې د خراسان واک وسپاره او پخپله د عثماني سلیمان پاشا مقابلې لره عراق ته ولاړ.

د ۹۴۲ هـ ق کال په سر کې سام میرزا پر کندهار یرغل وکا[۲۴]. اته میاشتې یې د کندهار ښار کلابند کړ او د کندهار مغولي حاکم خواجه کلان بیګ هم ښه ځان ورته ټینګ کړ[۲۵]. کامران مغل یې د برات په لومړۍ ورځ ۹۴۲ هـ ق کال[۲۶]. له کابله یا لاهوره[۲۷]. مقابلې ته راغی او سام میرزا ته یې

---

[۲۲] مآثر رحیمي. ۵۲۱/۱ مخ.

[۲۳] هماغه اثر. هماغه مخ.

[۲۴] نامه خسروان. ۱۰۰/۳ مخ.

[۲۵] [۲۶] [۲۷] مآثر رحیمي. ۵۲۹/۱ مخ.

کلکه ماتې ورکړه. د قزلباشو د پوځ یو ستر مېړه، غرپور[۲۸] په دې جنګ کې
وواژه سو[۲۹] او قزلباشو په خورا خره ورځ د خراسان پر لور ترېلل.

کامران مغول حاکم خواجه کلان ونازاوه او بیرته لاهور ته ځني
ولاړ[۳۰]. د تاریخ سلاطین افاغنه په ۱۳۶ مخ کې کښلي دي:-

شاه طهماسب صفوي چي د هرات حکومت له اعزنواز شاملو څخه
واخیست، صوفیان خلیفه ته یې وسپاره. اعزنواز د سام میرزا په پوست
ورننوت د کندهار نیولو ته یې وپاراوه. د سام میرزا لښکري چې پر کندهار
راغلې د کامران له خوا د کندهار حاکم خواجه کلان بیګ کلابند سو.
کامران له لاهوره د خواجه کلان په مرسته ور ورسېد. د کندهار په شاوخوا
کي یې سام میرزا مات کړ. اعز نواز په جنګ کي ونیول سو او سام میرزا په
تېښته ایران ته ولاړ.

## د شاه طهماسب یرغل :-

کله چي صفوي سام میرزا له کندهاره په ماتې خراسان ته ستون سو، د
عبدالله خان ازبک لښکرو په بیړه د خراسان خوا ته په خوځېدو پیل وکا.
شاه طهماسب چي دغه و، د عثماني سلطان سلیمان پاشا (۹۲۶ - ۹۷۴ هـ

---

[۲۸] په مآثر الامراء ۵۵۲/۲ مخ کي یې دغه نوم میرزا اغوزپور کښلی دئ؟

[۲۹] تحفة الکرام، ۱۴۱/۲ مخ. مګر مآثر رحیمي (لومړی ټوک، ۵۲۹ مخ) لیکي چي
اغزپورخان چي د سام میرزا اتالیق و، له ډېرو قزلباشو سره ونیول سو او بیا ووژل سو.

[۳۰] مآثر رحیمي (لیکي): "سام میرزا له ۹۲۸ هـ ق کال څخه تر ۹۳۰ هـ ق پوري یعني د پلار
تر مرګه پوري په هرات کي د خراسان د حاکم په حیث و. ... خان یې سرپرستي کوله. په
۹۶۹ هـ ق ورور ته پورته سو. ده تحفهٔ سامي په ۹۵۷ هـ ق کښلې ده". مګر د لومړي شاه
اسماعیل صفوي زوی سام میرزا بل سړی دئ چي د تحفهٔ سامي مولف دئ. په ۹۲۳ هـ ق
کال زېږېدلی دئ. په ۹۶۹ خپل مشر ورور شاه طهماسب بندي کړ او په ... کال دوهم شاه
اسماعیل وواژه (د تحفهٔ سامي مقدمه).

ق) له جنګو څخه فراغت موندلی و، په خورا تلوارېږي د خراسان خوا ته لښکري راولېږدولې. ازبکان بلخ ته ستانه سول او شاه طهماسب د خراسان او هرات له لاري د همهغه ۹۴۲ هـ ق کال په پای کي د کندهار خوا ته يرغل وکا. پسله ډېره زياره يې د کندهار حاکم خواجه کلان مجبور کړ چي د کلا کيلي ور وسپاري او پخپله لاهور ته مخه ونيسي. شاه طهماسب چي کندهار ونيو[۳۱] بداغ خان قاچار ته يې د کندهار واک وسپاره. شاه طهماسب ته په کندهار کي د عبدالله خان ازبک[۳۲] استاځی (قاصد) راغی او په دې وسيله د ازبکو او قزلباشو تر منځ روغه وسوه او شاه طهماسب په خوښی سره د ايران خوا ته وخوځېد[۳۳].

د شاه طهماسب صفوي له خوا د کندهار دوهمه پلا نيول په ۱۵۵۸ ع = ۹۶۵ هـ ق کي ښوول سوي دي.

## د مغول ميرزا کامران يرغل :-

د کندهار حاکم خواجه کلان بېګ چي له کندهاره وتښتېد، د تهتهې (سندھ) او اوچ له لاري لاهور ته ميرزا کامران لره ورغی[۳۴]. په ۹۴۳ هـ ق کال ميرزا کامران له کابله يا لاهوره څخه کندهار ته راغی. صفوي واکمن بداغ خان قاچار يې له کندهاره ايران ته وتښتاوه، کندهار يې بيا د مغولي واک په خند (دايره) ننه يوست[۳۵] او پخپله لاهور ته ځني ولاړ[۳۶].

---

[۳۱] مآثر رحيمي، ۵۲۰/۱ مخ.

[۳۲] عبدالله ازبک په ۱۰۰۵ هـ ق کي ومړ او په ۹۹۱ هـ کي پاچا سو. عبدالله خان ازبک د سکندر خان (جلوس ۹۶۸ هـ ق) زوی و. تر عبدالله وروسته يې زوی عبدالمومن پاچا سو.

[۳۳] نامهٔ خسروان، ۱۰۰/۳ مخ.

[۳۴] مآثر رحيمي، ۵۳۰/۱ مخ.

[۳۵] تحفة الكرام، ۱۰۱/۲ مخ.

[۳۶] مآثر رحيمي، ۵۳۰/۱ مخ.

معصومي په تاریخ سنده ۲۲۷ مخ کي لیکلي دي :-

په ۹۴۶ ه ق کال د سنده واکمن شاه حسن ارغون لـه خـوا میرخوش محمدارغون، میرزا کامران ته د کنـدهار د نیولـو او د اغضـوارخان؟ د وژلـو مبارکی له ولېږل سو.

## د مغول میرزا کامران دوهم یرغل :-

د ۹۴۷ ه کال د دهې په ورځ چي همایون مغول له درو ورنـو سره لـه شېرخان پښتانه څخه کلکه ماتې وموندله. نو یې د پښتونخوا پر لور راتړپلل. میرزا کامران له میرزا عسکري او خاونـد محمـود او خواجـه عبدالحق سره چُناب ته نژدې له همایونه جلا سو، کابل ته ولاړ[۳۷]. همایون بهیرې ته ولاړ او میرزا عسکري د رجب په میاشت کي د پنجاب پـه بهیـره کـي ځنـي بېل سو[۳۸] او د کابل لاریې په خوله ورکړه. پخپلـه همـایون تـر سـنده پـوري د پښتني پوځو له تعاقبه څخه چي خواص خان یې مشر و، نوک ټېک نه کړای سوای. کله چي بهکر ته ورسېد، میرزا هندال ورور یې[۳۹] هم چي پـه ملتـان یا بهکر کي و. د کندهار خوا ته مخ ځني راونیو او همایون پـه سـنده کـي د میرزا شاه حسن ارغون سره دوه کاله په ټک و ټوک کښېووت.

میرزا کامران چي په کابل کي واورېدل، چي د ده مېرېزی ورور میرزا هندال کندهار ته د مغولي واکمن قراچه خان پـه بلنـه د مخالفت پـه نیت راغلی دئ، له کابله یې د کندهار لور ته لښکري راوخوځولې. میرزا هندال او قراچه خان یې د کندهار په کلا کي شپږ میاشتي کلابند کړل. په پای کي

[۳۷] تاریخ معصومي، ۱۲۹ مخ.

[۳۸] بهیره، نوشهره (فرشته، ۱۱۹ مخ).

[۳۹] میرزا هندال په ۹۵۸ ه په هغه شبخون کي چي خلیلـو او مهمندو پښتنـو د کـامران پـه طرفداری د همایون پر لښکر وروور، وواژه سو.

چې يې د ۹۴۸ هـ کال د دريمي خور په اووه لسمه ورځ کندهار ونيو، عسکري ميرزا خپل سکه ورور ته يې کندهار وسپاره او هندال يې له ځانه سره کابل ته بوت او ننګرهار يې په جاګير ورکړ[۴۰]. که څه هم دمخه يې د غزني وعده ورسره کړې وه مګر هندال ننګرهار ته نه ولاړ او بدخشان ته وتښتېد او په خوست کې کښېنوست[۴۱].

## د قراچه خان حکومت :-

د طبقات اکبري په ۴۸/۲ مخ کې ليکلي دي :-

په ۹۴۷ هـ ق کال د کندهار واکمن قراچه خان و، ميرزا هندال ته يې وليکل چې کندهار ته راسه. په دغه وخت کې هندال په سنده کې له همايون سره و. هندال ته چې حال ورسېد د همايون ملګري يې پرېښووله او کندهار ته يې مخ ونيوه.

په اکبرنامه ۲۴۶/۱ مخ کې ليکلي دي :-

په ۹۵۰ هـ ق کال چې همايون ايران ته د کندهار له لاري تئ، په زمينداور کې امير بېګ او په بست کې چلمه بېګ حاکم و.

## همايون د کندهار په ګرمسېل کې :-

همايون چې له شېرشاه وتښتېد، (...) کال يې په سنده کې تېر کړ، بيا نو مخ پر کندهار وخوځېد. شال و پوشنج ته چې ورسېده، ميرزا عسکري د همايون د نيولو له پاره يو پوځ له کندهاره را رهي کړ. همايون چې خبر سو د رېګ له لاري د کندهار ګرمسېل ته ولاړ او له هغه ځايه سيستان او خراسان

---

[۴۰] تحفة الکرام، ۱۴۴/۳ مخ. ګلبدن بېګمه ليکي : قراچه خان، هندال له بهکره ور وباله او د کندهار حکومت يې ور وسپاره (همايون نامه ۱۰۸ مخ).

[۴۱] همايون نامه، ۱۱۰ مخ.

ته ولاړ[۴۲].

گلبدن بېگمه دا هم زياتوي چي د رېگ له لاري همايون خان بابا حاجي (اوسني باباجي) ته ورساوه. دا کلا د هلمند پر غاړه په گرمسيل کي واقع ده[۴۳].

همايون چي له ايرانه بيرته کندهار ته راغی د ۹۵۲ هـ ق کال د محرمي اوومه وه.

## له سنده څخه د مغول همايون راتگ :-

همايون چي د شاه حسن ارغون سره په سنده کي له شخړو سترې سو په ۹۵۰ هـ کال يې مخ د کندهار خوا ته راونيو. شال ته يې، چي له کندهاره ۴۰ فرسنگه ليري دئ، لښکر راورسېد، د کندهار له خوا يو سپور ورورسېد او له آسه سره په سراپرده ورننووت. همايون ته يې د ده د کندهاري هواخواهانو له خوا خبر راووړ چي عسکري ميرزا ورور يې د شاه حسن ارغون په لمسون له کندهاره د مقابلې او د همايون د نيولو په نيامت له دوو زرو سپرو سره[۴۴]، د رو خوځېد. همايون چي د عسکري ميرزا مخالفت واورېد له هغه ځايه څخه يې د خپلي ښځي حميده بانو بېگم او ۲۲ تنو سره، چي بيرم خان هم پکښې و، د مستنگ له لاري د سيستان خوا ته تړپلل او خپل يو کلن زوی اکبر[۴۵] يې په لښکر کي پرېښود. عسکري ميرزا چي د

---

[۴۲] تاريخ حاجي محمدعارف کندهاري. ۲۱ مخ.

[۴۳] په تذکره بيات ۹ مخ او اکبر نامه ۱/۲۰۴ مخ کي هم بابا حاجي کلا د هلمند پر غاړه ښوول سوې ده.

[۴۴] همايون نامه ۱۱۴ مخ.

[۴۵] اکبر د ۹۴۹ هـ کال د رجب پر پنځمه د حميده بېگمي له نسه په سنده کي زېږېدلی دئ.

۹۵۰ه کال د شوال پر ۱۷ مه د همایون لښکر ته راورسېد، خبر سو چې همایون تښتېدلی دئ. لاسونه یې پرله ومونښل او د همایون باروبنه یې له شهزاده اکبر سره کندهار ته یووړل. اکبر یې خپل ماندینې سلطان بېگم ته وسپاره[۳۶] او پسله څه وختو یې میرزا کامران ته، چې په کابل کې و، واستاوه[۳۷].

---

[۳۶] مآثر رحیمي، ۱/۵۶۰ مخ.

[۳۷] په مآثر رحیمي کې یې لیکلي دي چې شال د میرزا کامران د یوه خورا ورتېر امیر جلال الدین جاګیر و. د همایون له لښکرو څخه دوه تنه تر ټولو دمخه چینې ته ورغلل. هلته د جلال الدین خلکو بندیان کړل. یوه یې ځان په څه چم همایون ته ورساوه او همایون مستنګ ته ترپلل او پاینده محمد ویس یې له خپل لیک سره عسکري میرزا ته واستاوه. مګر پاینده محمدویس چې هم ناکام راستون سو، نو همایون له مستنګه سیستان ته ترپلل.

# کندهار

# د گورګانیانو او صفویانو تر منځ

(له ۹۵۰ څخه تر ۱۱۱۹ هـ ق پورې)

### د بیرم خان راتګ غزني ته :-

په ۹۵۷ هـ کې چې میرزا کامران د داودزیو، خلیلو او مهمندو پښتنو په مرسته له کابل څخه د همایون د ایستلو له پاره زیار ایست. همایون، بیرم خان ته ولیکل چې له کندهاره غزني ته پوځ راولېږدوي او غزني له حاجي محمدخان څخه، چې په غزني کې د کامران له خوا واکمن و، ونیسي. بیرم خان له کندهاره غزني ته ولاړ او حاجي محمد خان یې دلاسا کړ. کابل ته یې د همایون حضور ته بوت. بیرم خان د کندهار سیمې له پښتنو، نکودریو او هزاره وو څخه پاکې کړې.

د پیر روښان په حالنامه کې لیکلي دي :-

زه چې کندهار ته ولاړم، هلته مې پر پښتنو داسې ظلمونه ولیدل چې د هغه تریخوالی تر مرګه نه سم هېرولای، مثلاً یوه ښځه مې ولیدله چې د بیرم خان سپاهیانو په کوځیو په ژرنده پورې تړلې وه، ژرنده چې به ګرزېدله دا به هم ورسره چورلېدله.

## د همايون[1] راتګ کندهار ته :-

په ۹۶۱ هـ ق کي ځينو درباريانو د همايون پر غوږ ورکښېښوول، چي "بيرم خان د قزلباشو سره د مذهب د يووالي له امله لا رلري. بېره ده چي کندهار صفويانو ته ونه سپاري".

همايون هم د ۹۶۱ هـ ق کال په ژمي کي د څرخ، خروار او غزني له لاري کندهار ته راورسېد. بيرم خان د پنځو، شپږو تنو سره مخي ته ورغی. همايون کندهار ته راغی او هغه بېره، چي د بيرم له خوا په زړه کي ورلوېدلې وه، هيسته سوه، له مولانا ذين الدين محمود سره يې، چي د خپلي زمانې غوث و، وليدل. دوې مياشتي يې په خورا انند دلته تېري کړې. بيرم خان يې ونازاوه او سره له دې چي بيرم خان څو ځله د رکاب ملګري وغوښتل، ونه منل سوه او د کندهار حکومت هغسي ده ته پاته سو او د وداع په وخت کي يې د بيرم خان په معرفي د عليقلي خان سيستاني ورور بهادر خان د زمينداور په حکومت ونمانځه[2] او کابل ته وخوځېد. بيرم خان تر مقره پوري له همايون سره د مشايعت په توګه ولاړ[3].

## د بيرم خان تګ :-

د ۹۶۲ هـ ق د صفري په مياشت کي چي همايون له کابله څخه د هند د استرداد له پاره ملا وتړله، بيرم خان يې له کندهاره له غښتلو سره وروغوښت. بيرم خان کندهار، کلاتي شاه محمد ته وسپاره او په پېښور کي د همايون په پوځ پسې ور روسېد او په سپهسالارۍ ونمانځل سو.

په ۹۶۳ هـ ق کال د خانزمان ورور بهادر خان په زميندار کي د خواجه

---

[1] همايون په ۹۶۳ هـ ق د لومړۍ خور پر پنځمه په ډهلي کي ومړ.

[2] فرشته، ۲۴۱ مخ.

[3] تذکرهٔ همايون و اکبر، ۱۷۲ مخ.

قاسم هزاره د زوی فرخ حسین په ملګري د بغاوت نغاره وډنګوله او پر کندهاریې لښکر راوبهاوه ځکه چې اکبر له پښتنو سره په جنګ اخته و.
شاه محمد کلاتي له طهماسبه مرسته وغوښته او هغه هم درې زره سپاره د یارعلي بېګ افشار تر مشرتابه لاندې په مرسته ورته راولېږل. دا مرسته چې شاه محمد خان ته ورسېدله پر بهادر خان یې بری وموند او د فرخ حسین سره یې وواژه، د ایران راغلی پوځ بیرته ایران ته ستون سو[۴].

## د قزلباشو یرغل :-

کوم وخت چې اکبر مغول په هند کې د پښتنو له لښکرو سره لاس و ګرېوان و د شاه طهماسب صفوي په امر د قزلباشو لښکر د سلطان د وراره سلطان حسین میرزا تر مشرتابه لاندې پر کندهار راغلل. کندهاریې کلابند کړ. ځکه چې د هند له خوا د مرستې هیله نه وه، نو مجبوراً د کندهار واکمن شاه محمد کندهاري یا شاه محمود خان[۵] کندهار د شاه طهماسب وراره سلطان حسین میرزا ته چې د بهرام میرزا زوی و، وسپاره او پخپله یې د هندوستان خوا ته مخ ونیو.

دغه شاه محمد خان په ۹۶۸ هـ کال چې اکبر پر مالوه لښکري وروبهولې او د پښتانه بازبهادر؟ سره یې جنګ کاوه، د مغولي لښکرو دهراول مشر مقرر سو (وګ : مآثر رحیمي ۱/۶۸۰ مخ).

سلطان حسین په ۹۸۰ هـ ق، کې یوه ډله د خواجه محمد رحیم تر مشرتابه لاندې د ایلچي په ډول د سکهر واکمن سلطان محمود[۶] ته ولېږله.

---

[۴] مآثر رحیمي. ۱/۱۵۴ مخ.

[۵] شاه محمد خان په فرشته کې محمدشاه خان دئ او د بیرم خان له نوکرانو څخه یې ګڼي.

[۶] سلطان محمود د شاه حسن ارغون تر مرګ وروسته د شمالي سنده واکمن سو. موریې د ...نال کاسي پښتنه وه. په ۹۸۲ هـ ق کې ومړ.

دا هیئت په هغه وخت کي، چي د سلطان محمود او مجاهد خان په منځ کي په سکهر کي جنګ و، هلته ورسېدل.

## له اېرانه د مغول همایون یرغل پر کندهار:-

همایون مغول چي د شېرشاه پښتون له لاسه له هنده اېران ته تښتېدلی و، د شېرشاه پښتون (۹۴۷ - ۹۵۲ هـ ق) تر شهادت وروسته د شاه طهماسب صفوي (۹۳۰ - ۹۸۴ هـ ق) له دوولسو زرو[۷] لښکرو سره، چي د قاچار بداغ خان تر مشرتابه لاندي و، د مشهد او ګرمسیر له لاري پر کندهار راغی. په دې یرغل کي شاه طهماسب خپل زوی، چي د زانګو هلک و، هم ورسره کړی و. همایون چي د ګرمسیر کلاوي ونیولې، میرزا عسکري خبر سو. اکبر د همایون زوی یې چي د ده په لاس کي بندي و، په کابل کي میرزا کامران ته ولېږه. پخپله میرزا عسکري د بابر زوی[۸] چي د کندهار واکمن و، جنګ ته راووت، ماتې وکړه او په کندهار کي کلابند سو[۹]. همایون هم پسې راورسېد او د محرمي پر اوومه یې د کندهار د ماشور دروازې دباندي د شمس الدین قاضي په باغ کي واړوله، مورچې یې سره ووېشلې او کلابندي یې ټینګه کړه[۱۰]. تر درو میاشتو او د ګلبدن بېګمي په قول تر څلوېښتو ورځو کلابندۍ وروسته د بابر د خور خانه زاد بېګم (د

---

[۷] تاریخ فرشته د لښکرو تعداد لس زره بولي.

[۸] میرزا عسکري په کندهار کي د همایون له لاسه بندي کړه سو. په ۹۵۶ هـ ق کي چي همایون د طالقان په کلا کي پر میرزا کامران بری وموند، میرزا عسکري یې له کندهار ور وغوښت او میرزا کامران ته یې وسپاره. میرزا عسکري په ۹۶۵ هـ ق کال د شام او مکې معظمې په لار کي ومړ.

[۹] مګر تاریخ فرشته دا کلابندي شپږ میاشتي ګڼي، وایي پسله شپږو میاشتو کلابندۍ همایون، بیرم خان، میرزا کامران ته په ایلچګري ولېږه.

[۱۰] مآثر رحیمي، ۱/ ۵۹۶ مخ.

شيباني خان کونډه) په سفارش، چې کامران ميرزا له کابله کندهار ته را استولې وه، همايون ته د ۹۵۰ هـ کال د ډريمې خور په مياشت کې[۱۱] د کندهار کيلۍ وسپارلې سوې.

د تذکرهٔ همايون و اکبر په ۳۵ مخ کې کښلي دي :-

شاه طهماسب له همايون سره لس زره کسه د کندهار نيولو لره وګومارل. د دغه لښکر د سردارانو نومونه دا دي :-

1. ميرزا مراد د شاه طهماسب زوی
2. بداغ خان قچ (قاچار) د ميرزا مراد معلم (اتاليق)
3. محمد خليفه د سيستان حاکم
4. قراء محمد خان شرف الدين اوغلي تکلو د هرات حاکم
5. سخاد سلطان افشار د فراه حاکم

دا لس زره تنه د هلمند پر غاړه په همايون پسې ور ورسېدل. همايون له دغه ځايه علي سلطان چې د پنځو سوو تنو مشر و، له څو نورو غښتلو سره د بست نيولو ته وګوماره. بايزيد بيات وايي :-

زه هم په دغه پوځ کې وم چې کلا ته ور ورسېدلو، او ويس محمد خلج د کلا ساتندوی او جاګير دار کلابند سو او د جنګ له پاره يې ترتيب ونيو. په جنګ کې پر علي سلطان غشی وموښت او ومړ او د ده پر ځای يې دوولس کلن زوی د لښکر مشر سو. سبا ته د کلا خلکو امان وغوښت او سبا يې کلا د همايون لښکرو ته تسليم کړه. همايون هم د سلطان علي زوی ته د بست جاګير ورکړ. بل سبا ته همايون هم د بست کلا ته راورسيد او له دغه ځايه يې ۵۰۰۰ تنه له څو خانانو سره د کندهار نيولو ته وګومارل. کندهار له کلابسته څخه شل ميله ليرې دئ. په دريمه ورځ دا پوځ د ماشور دروازې ته واړول او د عسکري ميرزا له پوځه سره يې سپکه نښته هم وسوه. پنځه

[۱۱] مآثر رحيمي، ۵۹۹/۱ مخ.

ورځي پس (په ۷ محرم ۹۵۲ هـ ق) همايون کندهار ته راورسېد.

د خانزاده بېگم (د بابر خور) په واسطه، د عسکري ميرزا او همايون ترمنځ سوله وسوه، کلا د همايون پوځونو ته وسپارله سوه. څو ورځي پس چي همايون کابل ته روانېدی، د کندهار حکومت يې بيرم خان بهارلو ته وسپاره، د کلات حکومت يې نواب قاسم حسين خان شيباني ته او د زميداور حکومت يې تر دې پخوا ميرزا الغ بېگ ته وسپاره.

## د ابدالي پښتنو جنگ :-

په ۹۶۱ هـ ق کال چي همايون له کندهاره کابل ته تلی، د کندهار مغولي نايب الحکومه بيرم خان تر مقره پوري ورسره و. له مقره څخه چي بيرم خان کندهار ته رخصت سو، په کلات کي يې د چينې کلا مخې ته، چي قهر قلات يې هم بولي، اړولي و، خبر ورته راورسېد چي ابدالي پښتنو په دغو نژدو حدودو کي ټولنه کړېده. بيرم خان، بهادر سلطان، حبيب علي، شاه قلي محرم، بابا زنبور، حاجي قره تېموريکه او حسين قلي بېگ وګومارل چي پر ابداليو بريد وکاندي. دوی مازيګر اسونو ته دانه ورکړله، روان سول. سبا څاښت هغو ابداليو قبيلو ته ورسېدل. بايزيد بيات وايي زه هم په دغه لښکر کي وم. مغولو سپاهيانو او پښتنو د مېړاني جنګونه وکړل. پای ته پښتانه تر شا سول. مغولو سپاهيانو يې رمې را په مخه کړې. کلات ته يې راوستلې[۱۲].

## د زميداور د حاکم بغاوت :-

همايون چي له ايرانه څخه د راستنېدلو په وخت کي کندهار ونيو، بهادر خان شيباني (د خانزمان کشر ورور) يې د زميداور حاکم وټاکه. ده

---

[۱۲] تذکرهٔ همايون و اکبر، ۱۷۴ مخ.

هلته بغاوت وکړ او د کندهار د نیولو په نیت یې پر کندهار برید وکړ. په دغه وخت کې د کندهار حاکم شاه محمد خان کلاتی و. شاه محمد خان کلابند سو او د ایران له پاچا څخه یې کومک وغوښت. قزلباشو پر بهادر خان برید وکړ او دی وتښتېده[13].

## پر کندهار د کامران برید :-

د افغانستان در عصر گورگانی هند په ۴۶ مخ کې یې لیکلي دي :-

په ۹۵۴ هـ ق کال چې همایون له کابله پر بدخشان برید وکړ، میرزا کامران او وروریې، چې سنده ته تښتېدلي وو، همایون یې لیري ولید. پر کندهار یې د سنده له خوا برید وکړ خو په بیرم خان یې زور ونه رسېد. بې له دې چې کندهار ونیسي د کلات له لارې غزني ته ولاړ او هغه یې ونیوه. د همایون له خوا د غزني حاکم زاهد بیگ یې وواژه، کابل ته پسې ورتېر سو او هغه یې هم ونیوه.

## د صفویانو حمله په ۹۶۴ هـ ق کال او د کندهار نیول :-

کوم وخت چې شاه طهماسب خپلې مرستیالی لښکرې له همایون سره کولې، له همایون څخه یې عهد اخیستی و چې کندهار به تر نیولو پس صفوي لښکرو ته سپاري. نو د همدغه عهد په اساس یې څلرمه ورځ د کندهار کلا بداغ خان قاچار ته وسپارله او پخپله یې په ارغنداو کې واړوله[14]. همایون او مغولي ټبر چې دغه ژمې کوم ټاټوبی نه درلود، په دې

[13] آئین اکبري، انګرېزي ترجمه ۳۴۷ مخ.

[14] شهزاده مراد، ابوالفتح سلطان افشار او صوفي ولي سلطان شاملو له بداغه سره کندهار ته ننوتل او نور قزلباش امراء و ایران ته ستانه سول. چغتایي امراء د کندهار د کلا د سپارلو په سبب له همایونه خوابدي سول او له بېرې کابل ته وتښتېدل. عسکري میرزا هم وتښتېد او سړي پسې وګومارل سول او بیرته یې راوګرزاوه.

مګر کي سو چي کندهار بیرته له بداغ خان څخه واخلي. له بده مرغه په
هغه وخت کي سلطان مراد شهزاده ومړ او همایون په عاریت کندهار له
بداغ خانه وغوښت چي د کابل او بدخشان تر نیولو وروسته به یې بیرته
پرانیو ته سپاري. مګر بداغ خان ونه منل. همایون و بیرم خان، الغ میرزا
و حاجي محمد خان ته پټ وویل چي د کندهار کلا باید ونیول سي. هغه
وچي یوه ورځ د اوښو یو قطار په ښار ننوت. حاجي محمد د هغه قطار په
سیوري کي کلا ته ورننوت. دروازه وانان یې تر تیغ تېر کړل. بیرم خان او
الغ میرزا هم له پوځه سره په ښار ور ننه وتل او پر بداغ خان باندي ناخبره
د مغول پوځونه چارپیر سول. بیرم خان غوښتل کابل ته ځان ورسوي. په
لار کي یوه ډله هزاره ګان پر بیرم خان راتوی سول مګر بیرم خان بری
وموند او کامران ته ورغی او د کندهار د کلا د تسلیم په باب یې خبري
ورسره وکړې، مګر کامران ونه منلې او بیرم خان نامېنده کندهار ته راستون
سو. د قزلباشو لښکر هم د کلا بندۍ له اوږدوالي په عذاب سول مګر په دغه
ترځ کي محمد سلطان میرزا، الغ میرزا، قاسم حسین میرزا، میرزا میرک،
شیر افګن بیګ او د کابلي منعم خان ورور فضل بیګ له کامرانه همایون ته
راوتښتېدل. د کندهار څه مخور هم له کلا څخه همایون ته راووتل. عسکري
میرزا ترهور سو او امان یې وغوښت او د خپلو امراوو سره په خورا ...
همایون ته راغی او کندهار یې ور وسپاره[۱۵]. همایون د ظلم او زیاتی په
تور کندهار بیرته له بداغ خانه واخیست. بداغ خان ایران ته ستون سو او
همایون کندهار بیرم خان (خان خانان) ته وسپاره. د اکبر مور حمیده بانو
بېګم یې په کندهار کي پرېښووله او پخپله یې د کابل خوا ته، چي د ده د
ورور میرزا کامران په لاس کي و، مخ ونیو[۱۶].

---

[۱۵] تاریخ فرشته ۲۳۷ مخ.

[۱۶] سیرالمتاخرین.

## د مغولي اکبر يرغل پر کندهار باندي :-

د اکبر د تخت نشيني په دريم کال چي محمدخان کلاتي د مغول پاچا اکبر په حکم کندهار شاه طهماسب ته وسپاره، طهماسب خپل وراره سلطان حسين ته وسپاره. ميرزا مظفر حسين او ميرزا رستم (د سلطان حسين ميرزا زامن) او ميرزا بهرام (۹۵۶ هـ ق مړ) لمسيان او د شاه اسماعيل کړوسيان چي د شاه طهماسب صفوي بن شاه اسماعيل وړرونه وو[۱۷]. د ۱۰۰۰ هـ ق په حدودو کي ميرزا رستم د زمينداور او مظفر حسين د کندهار؟ واکمن و. په پارس کي چي د لومړي شاه عباس د پلار سلطان محمد بن شاه اسماعيل ثاني صفوي (۹۸۶-۹۹۶ هـ ق) په وختو کي کومي شخړي او انقلابات پېښ سول، دوی په کندهار کي د پاچهی اعلان وکړ. کله چي له يوې خوا په ۹۹۶ هـ لومړی شاه عباس (۹۹۶ - ۱۰۳۸ هـ ق) پاچا سو[۱۸] او له خپلو داخلي شخړو څخه يې فراغت وموند، دوی د شاه عباس له پرتمه وډارېدل او ترهور سول چي څه وکړي؟ او چيري پناه يوسي؟ او له بلي خوا پر خراسان د ازبکو پله پوري يرغلونو دوی وارخطا کړل. مغولي اکبر (۹۶۳ - ۱۰۱۴ هـ ق) چي دا واورېدل خورا خوښ سو. شاه بېگ خان ارغون مخاطب په خان دوران (د ابراهيم بېگ چريک زوی) يې د يوه خورا درانه لښکر سره د کندهار لور ته وګوماره. مغولي لښکر چي تر ملتان راتېر سو، ميرزا رستم[۱۹] د خپل ورور مظفر حسين[۲۰] څخه په کندهار کي

---

[۱۷] په تحفة الکرام ۳ ټوک او فرشته کې ليکلي دي چي ميرزا مظفر حسين او ميرزا رستم د سلطان حسين ميرزا زامن او د بهرام ميرزا لمسيان او د شاه اسماعيل صفوي کړوسيان دي. په تزک جهانګيري ۷۷ مخ کي هم دغسي ضبط دي. بهرام ميرزا بل زوی هم درلود ابراهيم نومېدی او په ۹۷۹ هـ ق کال مړ سو.

[۱۸] لومړی شاه عباس د فارس پايتخت له قزوينه اصفهان ته رانقل کړ.

[۱۹] ميرزا رستم په ۱۰۵۱ هـ ق کال د ۸۲ کالو په عمر ومړ (سيرالمتاخرين). د ميرزا رستم زوی شهنواز خان د اورنګزېب خسر و.

ماتې وکړه او د اکبر مغولي د دربار پر خوا يې وترپلل او په لاهور کي د اکبر په حضور له څپلو څلورو زامنو سره باریاب سو[۲۱]. پنځ زري منصب او د ملتان و بلوچستان جاگیر ورکړه سو. ابو سعید میرزا ورور يې وریسې بهرام میرزا د مظفر حسين زوی او وریسې پخپله میرزا مظفر حسين هم په ۱۰۰۳ هـ کي د مغولي اکبر دربار ته راغلل. له دغي نېټې څخه کندهار د مغولي اکبر په مملکت کي داخل سو او خان دوران چي په شاه بېگ خان سره مشهور او د کابل صوبه دار و، د کندهار په صوبه داری وگومارل سو[۲۲] او د خان خانان لښکري له ملتانه څخه د تهتهې د تسخير له پاره وگومارلي سوې[۲۳].

د تاريخ افغانستان در عصر گورگانی هند په ۶۳ مخ کې ليکلي دي :-

شاه طهماسب صفوي (۹۳۰ - ۹۸۴ هـ ق) څپلو وریرونو سلطان حسين ميرزا او بديع الزمان ميرزا (د بهرام ميرزا زامن) ته په ؟ کال د سيستان حکومت ورکړ. درې کاله چي تېر سول، سلطان حسين ميرزا د کندهار او زميندآور والي مقرر سو او بديع الزمان ته يوازي د سيستان حکومت پاته سو.

---

[۲۰] د مظفر حسين لور (قندهاری محل) په ۱۰۱۷ هـ ق کال شاه جهان وکړه، د اقبال نامهٔ جهانگيري په ۳۸ مخ کې ليکلي دي : مظفر حسين د سلطان حسين زوی د بهرام ميرزا لمسی د شاه اسماعيل صفوي کړوسی و.

[۲۱] سيرالمتاخرين (د ۱۱۹۵ هـ ق تالي) دا واقعه په ۱۰۰۱ هـ ق کي ضبط کړې ده، اما تحفة الکرام يې په ۱۰۰۲ کي گڼي. تاريخ فرشته (د ۱۰۳۳ هـ ق تالي) هم ۱۰۰۲ ليکلی دئ.

[۲۲] سيرالمتاخرين ۲۰۲/۱ مخ.

[۲۳] تحفة الکرام ليکي چي په ۱۰۲۳ هـ ق کال يې د تهتهې په حکومت هم ونمانځه او د خزانې سره يې په جاگير کي ورکړه. دوه لکه روپۍ يې د مدد خرخ په نامه ورکړې او مظفر حسين ته يې سنبل په جاگير کي وباخښه. دواړو ورونو شعر وايه. د ميرزا رستم تخلص فدا و. د تاريخ فرشته له مخي خان خانان عبدالرحيم خان د ۹۹۸ هـ د لومړی خور پر ۱۴ مه په گجرات کي د مبارک خان لودي له لاسه وژل سوی دئ او دا واقعه په ۱۰۰۰ هـ کي ده. د دې واقعې مشرتوب د بيرم خان زوی عبدالرحيم خان ته منسوب دئ.

د سلطان حسين ميرزا زامن پنځه وو:-

۱. محمد حسين د شاه طهماسب په وختو کي ايران ته تللی و. اسماعيل ميرزا وواژه[۲۴].
۲. مظفر حسين. تر پلار وروسته د کندهار واکمن سو.
۳. رستم ميرزا. تر پلار وروسته د زميندا‌ور او گرمسير واکمن سو.
۴. ابو سعيد ميرزا
۵. سنجر ميرزا

ملک محمود چي سيستان آزاد کړ او تر دغه دمخه د سلطان حسين ميرزا د ورور بديع الزمان په لاس کي و، له کندهاره يې لښکر راويوست. پر سيستان يې بريد وکړ. روغه وسوه چي مظفر حسين ته د ملک محمود لور (چي د ده په کورنۍ کي لو سوې وه) او د ملک محمود زوی جلال الدين ته د حمزه بېگ لور ورکړه سوه. حمزه بېگ د کندهار د شهزاده گانو لاله و. مظفر حسين چي د حمزه بېگ د وژلو اراده وکړله. حمزه بېگ خبر سو. زميندا‌ور ته وتښتېد. رستم ميرزا يې د کندهار د نيولو له پاره وپاراوه. رستم ميرزا پر کندهار بريد وکړ. د ارغنداو د رود پر غاړه جنگ وسو. مظفر حسين وتښتېد په کلا ننووت، رستم ميرزا د ماشور په دروازه کي ورته واړول. روغه وسوه. رستم ميرزا زميندا‌ور ته ولاړ، حمزه بېگ کندهار ښار ته ولاړ او بيا د مظفر حسين وکيل سو. درې کاله حمزه بېگ دا حکومت وچلاوه. مظفر حسين ته بيا د حمزه بېگ د وژلو اراده پيدا سوه. حمزه بېگ رستم ميرزا له زميندا‌وره راوغوښت، بې خبره په ښار ننوت او د کندهار حکومت د ده سو. مظفر حسين يې کلات ته واستاوه او هغه له کلاته سيستان ته وتښتېد او هلته يې واده وکړ. وروسته ملک محمود ته ياغي سو. د ۹۹۰ هـ ق کال د صفري په لسمه جنگ پېښ سو. ميرزا مات سو خو روغه وسوه. ملک محمود درې

---

[۲۴] تاريخ عالم آراء عباسی ۳۲۶ مخ.

زره تنه د کندهار د نیولو له پاره ورسره کړل. رستم میرزا کندهار پرېښود، زمینداور ته ولاړ. د سیستان پوځ رخصت سو. مظفر حسین څو ورځې پس حمزه بېگ وواژه. رستم پر کندهار برید وکړ. مظفر حسین کلابند سو او د سیستان پوځ یې په مرسته راغی. رستم میرزا مجبور سو بیرته زمینداور ته ستون سي. محمدبېگ، چي د حمزه بېگ پر ځای د مظفر حسین وکیل و، د دوی تر منځ هم دوستي په دښمني بدله سوه. مظفر حسین بیا سیستان ته وتښتېد او د کندهار حکومت محمدبیگ ته پاته سو.

مظفر حسین بیا هلته یاغي سو، جنگ پېښ سو او بیا روغه وسوه. مظفر حسین بیا کندهار ته ولاړ. په ۱۰۲۰ هـ ق کال د میرزا جاني بېگ ترخان زوی د میرزا پاینده لمسی د میرزا محمد باقر کړوسی او د میرزا عیسی ترخان کوسی میرزا غازي د جهانگیر مغول له خوا د کندهار والي سو. زمین داور، بست او گرمسیر هم په ده پوري اړه درلوده. مرشد خان بروجردي یې هم ورسره بوت. طالب آملي او محوی اردبیلي د مرشد خان په وسیله کندهار ته راغلل[۲۵].

جهانگیر په خپل تزک (۳۳ - ۳۴) مخونو کي لیکلي دي چي د ۱۰۱۵ هـ ق کال د محرمي تر ۹ = ۱۸ می ۱۶۰۶ ع وروسته مي لوی پوځ د میرزا غازي خان په مشرتابه کندهار ته واستاوه. څو تنه مغولي امیران مي لکه قرابیگ خان د قره خان په خطاب، پخته بېگ[۲۶] د سردار خان په خطاب ورسره ولېږل. میرزا غازي خان ته مي پنځه زري منصب ذات او سوار ورکړ.

---

[۲۵] مآثر رحیمي.

[۲۶] دغه نوم بل ځای توخته بېگ لیکلی دئ. د اکبر په زمانه کي دی څه موده په کابل کي مقرر و. د کنور مان سنگه او زین خان کوکه سره یې د یوسفزو په ځبلو کي برخه درلوده. بیا په پېښور کي تهانه دار و. له روښانیانو سره یې جنگونه وکړل. کندهار ته چي یې لېږه دوه زری منصب او د سردار خان لقب یې ورکړ.

نغاره مي ورکړله. خواجه عاقل مي بخشي ورسره مقرر کړ. ۴۳۰۰۰ روپۍ مي بقراخان او ۱۵۰۰۰ روپۍ مي تقدي بېگ او قليچ بېگ ته د مدد خرڅ په نامه ورکړلې. دوی د ميرزا غازي ملگري وو.

ميرزا غازي د ۱۰۲۱ هـ ق کال د صفري په مياشت کې په زهرو وواژه سو. عمر يې د مرگ په وخت کې ۲۷ کاله و. ۱۰ کاله يې حکومت کړی دئ. ۳ کاله په تهتهه او ۷ کاله په کندهار کې. ځيني وايي د خسروخان چرکس زوی لطف الله چې په بهايي خان مشهور و، په خفه وواژه[۲۷].

د ميرزا غازي بيگ په باب يې د اقبال نامۀ جهانگيري په ٦٧ مخ کې ليکلي دي :-

ميرزا غازي بېگ د شرابو سره ډېره مينه درلوده. شعر يې وايه او وقاري يې تخلص و. تر ميرزا غازي وروسته ابوالنبي يا ابوالغني ازبک د جهانگير له خوا د بهادر خانی خطاب وموند او د کندهار په حکومت مقرر سو (۱۰۲۱ هـ ق). د اقبال نامې په ۱۷۷ مخ کې دغه راز ليکلي دي چې بهادر خان مکرراً له جهانگيره غوښتي وچې حضور ته يې ور وغواړي او د سترگو درد او د باصرې لړوالی يې پلمه کړی و. جهانگير وپوهېد چې د کندهار په حکومت خوشاله نه دئ، ځکه يې په ۱۰۲۹ هـ ق کال چې د کشمير له سفره لاهور ته راستون سو، د کندهار حکومت او ساتنه يې خواجه عبدالعزيز نقشبندي ته وسپارله او حکم وسو، چې عبدالعزيز چې کندهار ته ورسي او د کندهار کلا له بهادرخانه تسليم کړي، بهادر خان دي مخ پر هندوستان را رهي سي[۲۸].

---

[۲۷] د ميرزا غازي بېگ د پلار ميرزاجاني بېگ پايتخت تهتهه وه. په ۱۰۰۰ هـ ق کال عبدالرحيم خان خانان بريد پر وکړ، جاني بېگ ورته تسليم سو (ذخيرة الخوانين ۱۹/۲ مخ). د جهانگير له خوا غازي بېگ ته اووه زری منصب او د فرزند خان لقب ورکړه سو او د کندهار والي يې وټاکه.

[۲۸] تزک جهانگيري ۳۲۸ مخ.

## میرزا شاه بېګ خان ترخان :-

د سنده له امراوو څخه و. د ورونو د میرڅی (دښمنی) له امله د تهتې د واکمن میرزا باقي بېګ (۹۸۰ - ۹۹۲ هـ ق) په وختو کي له سنده څخه د اکبر مغولي دربار ته ورغلی[۲۹]. د جهانګیر مغولي په وختو کي (۱۰۱۴ - ۱۰۳۷ هـ ق) د کندهار حاکم مقرر سو. په ۱۰۱۵ هـ کال د قزلباشو له لاسه یو کال په کندهار کي کلابند و. د جهانګیر له خوا د سنده واکمن میرزا غازي بېګ له کلابندۍ خلاص کړ او پر ځای یې د کندهار حاکم سو. ده ښه طبعه درلوده. نکته سنجه سړی و، طاهر (تاریخ طاهري) د ده له پاره لیکلی دئ[۳۰].

د تزک جهانګیر په ۲۴ مخ کي لیکلي دي چي زما د جلوس په لومړي جشن مي د کندهار د حاکم شاه بېګ منصب پنځه زرۍ کړ.

د میرزا شاه بېګ په باب د اقبال نامۀ جهانګیري په ۳۰ مخ کي لیکلي دي :-

په ۱۰۱۶ هـ ق کال چي جهانګیر د کابل له سفر څخه جلال آباد ته ورسید شاه بېګ له کندهاره ورته راغی. شاه بېګ د جلال الدین اکبر له تربیت یافته ګانو څخه و او د مغلو له پاره یې ښې توري کړي وې او لوړو منصبو ته رسېدلی و. ډېر وخت د کندهار حاکم و او په ډېر شوکت یې ژوند تېراوه. په دغه وخت کي د جهانګیر له خوا د خان دوران خطاب ورکړه سو. د کابل حکومت او د افغانستان ضبط و اداره ور وسپارله سوه، یو مرصع خنجر و پیل و آس خاصه وروبخښل سو او له حسن ابداله څخه یې رخصت کړ.

---

[۲۹] د میرزا عیسٰی خان ترخان زوی میرزا باقي بېګ په ۹۹۳ هـ ق کال کي ووژل سو. د حکومت میعاد یې ۱۳ کاله و (تحفة الکرام ۳/۷۲۸ مخ).

[۳۰] تحفة الکرام ۳/۹۰ مخ.

په اقبال نامه کې لیکلي دي چي خان دوران د سپین ږیرتوب په نسبت د کابل له حکومت څخه معزول سو. اقبال نامې (۱۲۷ مخ) دغه راز زیاته کړېده چي په ۱۰۲۸ هـ ق کال خان دوران د سپین ږیرتوب په نسبت له عسکریت څخه هم مستعفي سو او جهانګیر یې استعفا منظوره کړه او خوشاب یې په جاګیر کي ورکړ او زامنو ته یې منصبونه ورکړل.

## بهایي خان لطف الله :-

د تهتهې د واکمن خسرو خان چرکس زوی دئ[۳۱]. د میرزا غازي بېګ سره کندهار ته راغلی و. د میرزا غازي بېګ له خوا د کندهار د حدودو د پښتنو د سر څبلو له پاره وګومارل سو. په کندهار کي یې ښورا درانه خدمات وکړل[۳۲].

## میرزا محمدامان خان ترخان :-

کله چي میرزا غازي بېګ د کندهار تر سوبي پس په لاهور کي جهانګیر مغول له خوا ونازول سو او کندهار، سیوې او څه ملتان هم د سنده په ایالت ورپوري کړل سو، نو میرزا چي ملتان ته راستون سو، میرزا محمد امان ته یې پیل و توغ وباخښه او د کندهار په نیابت یې وګوماره. مګر ده عذر وړاندي کړ، چي زه به یو وار تهتهې (خپل کور) ته ولاړ سم بیا چي مي هري خوا ته لېږې ځان نه ژغورم. دی چي نه ولاړ نو یې احمدبېګ سلطان د کندهار په نیابت ولېږه. میرزا امان په (ملک اما) مشهور و.

---

[۳۱] وایي چي چرکس د چنګیز له زاهوزاده څخه و چي د قبچاق د دښت واک یې درلود.
[۳۲] تحفة الکرام ۹۲/۳ مخ.

## ملا گدا علي بهائيخان :-

د مهتر عسل زوی او د میرزا جاني بېگ له امراوو څخه و، په کندهار کي د میرزا غازي بېگ سره ووژل سو[۳۳].

## د میرزا غازي بېگ ترخان[۳۴] یرغل :-

په ۱۰۱۴ هـ ق کي چي اکبر مغول ومړ، د قزلباشو سترگي بیا د کندهار خوا ته سرې سوې. هغه وچي په ۱۰۱۵ هـ ق کي د کندهار د واکمن شاه بېگ ترخان (کابلي) د یوه نوکر میرزا حیدر په لمسون او د روه د قزلباشو لښکري له خراسانه څخه د هرات د حاکم حسین خان شاملو په مشری پر کندهار راوبهېدلې او یو کال یې شاه بېگ د کندهار په ښار کي کلابند کا. له ډهلي څخه میرزا قره خان ترکمن (د بهکر جاگیردار) ته د کندهار واک وسپاره سو او له یوه درانه پوځ سره یې د کندهار لور ته وگوماره. د میرزا جاني بېگ زوی میرزا غازي بېگ ترخان چي د ټهټې واکمن و، هم د دې پوځ په مرستیو مشرانو کي ورسره کړل سو[۳۵]. پر لاره د قره بېگ ساه وختله

---

[۳۳] تحفة الکرام ۹۲ مخ.

[۳۴] میرزا غازي بېگ د میرزا جاني بېگ ترخان زوی د میرزا پاینده بېگ لمسی د میرزا باقي بېگ کړوسی دئ. میرزا جاني بېگ پلار یې د میرزا باقي بېگ ترمرگ وروسته په ۹۹۳ هـ کي د ټهټې پاچا سو. پخپله میرزا غازي بېگ په ۱۰۰۹ هـ ق د پلار ترمرگ وروسته د ټهټې واکمن سو. پلار یې په ۱۰۰۰ هـ کي عبدالرحیم خان خانان د اکبر مغول دربار ته ورووست، بیا یې ټهټې ته راپرې نښود او په برهانپور کي ومړ (تزک جهانگیري ۱۱۰ مخ).

[۳۵] د اقبال نامهٔ جهانگیري په ۱۸ مخ کې کښلي دي چي دا لښکر اصلاً د غازي بېگ په مشری او میرزا قراخان او تخته بېگ کابلي چي په سردار خان مخاطب و، ورسره مله وو. په ۱۷ مخ کې کښلي دي چي په ۱۰۱۵ هـ ق کال د هرات صفوي حاکم حسین خان شاملو د اکبر مغول مرگ او د خسروپورته کېدل واورېدل د فراه او سیستان حکام یې له ځانه سره مله کړل او پر کندهاریې برید وکا. د تزک جهانگیري په ۳۴ مخ کي د شاه بېگ د مړاني او استقامت ډېره ستاینه سوې ده.

او ده د لښکرو مشرانو دا غوره کړه چې د مړه خان پاته مړي او لښکر بهکر ته ستانه کړي او هلته يې د ده زوی ته وسپاري. يوازې ميرزا غازي بېګ دا ونه منله او د لښکرو مشر ته يې وويل :-

د قره خان په مړينه به دا سوبه نيمګړې نه پرېږدو، ځکه چې زما لښکري لا له تهتهې څخه تر اوسه رارسېدلي نه دي. نو دا پوځ ما ته وسپارئ چې دا مهم تر سره کړم. د پوځ مشرانو لا سلا سره کوله چې ميرزا باقي بېګ د کندهار لور ته د لېږد (کوچ) ډول وواهه. پاته مشرانو نور ځنډ د مغول شاه جهانګير د عصيان سبب وګڼه او مخ د کندهار پر خوا ورسره را ولېږدېدل. مغولي لښکري لا کندهار ته نه وې را رسېدلي چې د خراسانيانو لښکر شا ته تړپلل او د کندهار د سوبې رغ د ميرزا غازي بېګ په نامه وسو[٣٦]. جهانګير، شاه بېګ خان خپل حضور ته وروغوښت او د کندهار نايب الحکومه ګي يې سردار خان (تخته بېګ کابلي) ته وسپارله. څو وخته پس سردار خان له حکومته معزول سو او غازي بېګ ته د تهتهې پر حکومت سربېره د کندهار حکومت هم ورکړه سو[٣٧].

د يوه کال کلابندۍ په کندهار کي غله ټوله تمامه کړې وه. د ميرزا غازي بېګ د پوځ ډېر مېړونه او اسونه له لوږې ومړل. نو غازي بېګ جهانګير مغول ته، چې په دې ورځو کي په کابل کي و، حال واستاوه. له هغې خوا فرمان راغی چې :-

پوځ دي بهکر ته ولېږدوه. دی هم له کندهاره بهکر ته ولاړ او له هغه ځايه کله چې شاه له کابله لاهور ته ورسېد، په حضور مشرف سو. مغول جهانګير ونازاوه، منصب يې ور لوړ کړ او د ملتان او کندهار په حکومت يې ونمانځه.

---

[٣٦] د ميرزا غازي بېګ لښکري د ١٠١٥ هـ ق کال د شوال په ١٢ په کندهار ننوتلې.

[٣٧] اقبال نامهٔ جهانګيري ١٨ مخ.

## د میرزا غازي بېګ نایب :-

میرزا غازي بېګ له ملتانه څخه میرزا محمدامان ترخان د کندهار په نیابت ونمانځه، مګر ده د ځینو معاذیرو له امله نټه وکړه. نو احمد بېګ سلطان ته یې د (اعتماد خان) خطاب ورکړ او کندهار ته یې په نیابت را واستاوه[۳۸]. وایي اعتماد خان د کندهار په ودانی کې، چې د درنو لښکرو د یرغلو له امله یې خورا وران حالت لاره، زیار ویوست او تر پخوا یې لا ودان کا.

خواجه عاقل توراني د میرزا غازي په وختو کي د کندهار بخشي وا او په کندهار کي ومړ. بیا د امبالې اوسېدونکی شیخ یوسف د میرزا غازي بخشي سو. دی هم په کندهار کي ومړ[۳۹].

## پښپله د میرزا غازي بېګ راتګ :-

میرزا غازي بېګ چي د ملتان چاري سره سمي کړې نو بهکر ته راغی او دلته یې د کندهار د سفر ترتیب ونیو. په ؟کي د سیوی او ګنداوې له لاري کندهار ته راورسېد. د دې میرزا تر واک لاندي کندهار، داور، بست، سیوې، تهتهه او ملتان لا هم و[۳۰]. ده د خسروخان چرکس زوی بهائیخان د پښتنو د سرځبلو ته وګوماره او هغه په دې لار کي مغلو ته د قدر وړ خدمتونه وکړل.

---

[۳۸] د تزک جهانګیري په ۱۱ مخ کې لیکلي دي چي شاه بېګ خپل جاګیر ته ولاړ. غازي بېګ چي له کندهاره ولاړ، لږ وخت پس سردار خان د کندهار نایب مړ سو. د جهانګیر له خوا غازي بېګ پر تهتهه سربېره د کندهار نایب هم و.

[۳۹] ذخیرة الاخوانین ۳۸۷/۲ مخ.

[۳۰] وایي دا میرزا دومره بذال سړی و، چي له دې دومره لوی جاګیر سره به تل بې خرڅه و.

میرزا غازي د رای کهوریه زوی رای مانکچند یې د میرزا شاه بېګ کابلي د نوکر میرزا حیدر لمسوونکي د ایداد له پاره وګوماره. میر عبدالله سلطان یې د میرخانی په خطاب ونمانځه د صفوي شاه عباس دربار ته یې له ډېرو سوغاتو سره استاځی (قاصد) واستاوه، چې د مغولو او قزلباشو تر منځ د میرځی او منازعې لار وتړي.

د رای کهوریه زوم سایدینه یې ټهټهې ته د مستوفي په نامه واستاوه چې د ده د ګومارلي حاکم خسروخان چرکس مالیاتي دروه او غبن، چې اوازې یې پخوا لا رارسېدلي وې، وپلټلې او د یوې ورانې نتیجې سره کندهار ته راستون سو. میرزا غازي دی د خسرو خان پر ځای د ټهټهې په حکومت ونمانځه او د ده اخښی رای مانک چند او شهباز خان یې د خسرو خان د راوستلو له پاره ورسره کړل. خسرو خان چې د دوی په ور رسېدلو د کندهار د راتلو په نیت د هارکندی قصبې ته راورسېد، د میرزا غازي بېګ د مرګ رغ ور ورسېد.

میرزا غازي بېګ په ۱۰۲۱ هـ ق کال په کندهار کي د عبداللطیف نامي له خوا ووژل سو. په ۱۰۲۲ کي د میرزا مړی ټهټهې ته یووړ او په مکلي غره کي یې د پلار په هدیره کي خاورو ته وسپاره.

میرزا غازي بېګ چې په کندهار کي ومړ، د کندهار حکومت یې رستم میرزا ته ورکړ[۴۱]، مګر په تزک جهانګیري ۱۱۰ مخ او اقبال نامه کې کښلي دي، چې تر غازي بېګ وروسته د کندهار حکومت ما بوالنبي ازبک ته ورکړ. ابوالنبي په ملتان کي په خدمت بوخت و. درې زرې منصب او د بهادر خان خطاب مي ورکړ. ورپسې ازبک بهادر خان په ۱۰۲۵ هـ ق له کندهاره څخه ۷ عراقي اسان او ۹ ... توکران جهانګیر ته د تحفې په ډول ور ولېږل او

---

[۴۱] مخزن افغاني ۳۷۵ مخ.

جهانګير يو پيل ور وباخښه[۳۲].

ميرزا غازي بېګ وقاري تخلص درلود او شعر يې هم وايه. د (مغلون کې ملک الشعراء) په ۱۸۰ مخ کې ليکلي دي چې د ميرزا غازي بېګ په وختو کې کندهار ته شاعران راغلل. وايي يو بل شاعر هم په کندهار کې و، چې وقاري تخلص يې درلود. ميرزا غازي ډېر خلاتونه له آس او روپو سره ورکړل او تخلص يې يوازي ځني ځان ته کړ.

## طالب آملي په کندهار کي*:-

طالب د ايران د آمل اوسېدونکی و، آمل په مازندران کې مشهور ښار دئ. دی په آمل کې زېږېدلی او لوی سوئ دئ. له آمله کاشان او بيا مروي ته ولاړ له هغه ځايه هندوستان ته ولاړ، هلته چې يې زيات وکم يو کال تېر کړ، غازي بيګ ترخان چې په ۱۰۱٦ هـ ق د کندهار مغلي حاکم سو کندهار ته وباله. غازي بيګ پخپله هم شاعرو**. وقاري يې تخلص و. شاعران پر راټول وو لکه وصلي شېرازي، مرشد بروجردي او نور.

طالب کندهار ته ورغی او غازي بېګ ونازاوه. دی چې هم کندهار ته ورسېد په تصلفاتو يې پيل وکړ او دا قطعه يې خپره کړله:-

پيمبر منم معـــــجزات سخن را
سنايي و خـــــاقاني از امـــتانم

---

[۳۲] تزک جهانګير ۱۵۷ – ۱۵۸ مخونه.

* دغه عنوان د علامه مرحوم په يادانبتو کي دوه ځايه راغلی دئ. ما له دواړو څخه دغه متن جوړ کړ (م. هوتګ).

** ميرزاترخان په ۱۰۲۰ هـ ق کال په کندهار کي ومړ (د ميخانې په حواله). په ذخيرة الخوانين کي ۱۰۲۱ کښلي دي. د مړيني تاريخي ماده يې "از دست غلام گل برون رفت دريغ" ښوولې ده. غلام (۱۰۷۱) - گل (۵۰) = ۱۰۲۱ هـ ق.

کلیم الله داشتم بی تکلف

کلام الله نطق نازل فشانم

مولی کلام و مصغی ضمیرم

ملمع بیان بیان و مرصع زبانم

تو دانی و انصاف و من نیز دانم

که یکتای عصر وحید زمانم

دا تصلف د غازي خان د دربار پر نورو شاعرانو بد ولگېده او د ده په آزار پسې سول او له هري خوا د ایرادونو کرکنډې پر را اورېدلې. دې هجوم دی اړ یوست خپل مربي غازي خان ته دا قطعه ولیکي:-

چه باعث است مر این فتنه را نمی دانم

که عالمی بمن افگنده اند حرج جدال

چگونه خویش را فاضل نمایم و کامل

کدام فضل که من دارم و کدام کمال؟

بصدق نیت و اخلاص خویش می نازم

نه بر مراتب فضل و کمال و ذهن و خیال

د ۱۰۲۱ هـ ق کال په صفره کي چي غازي ترخان ته د حرمسرای په سازش کي زهر ورکړه سوه او ومړ، طالب هم کندهار پرېښوو هندوستان ته ولاړ. ده پخپله ویلي دي:-

دلامزاج ترا قندهار در خور نیست

بیا که دیده ام از اشك. ملك پنجاب است

په ۱۰۲۰ هـ ق کال د میخانې مولف عبدالنبي ورسره لیدلي دي. طالب هلته په ۱۰۲۸ هـ ق کال د جهانگیر د دربار ملک الشعراء سو او په ۱۰۳٦ هـ ق کال په لاهور کي ومړ او هلته خاورو ته وسپارل سو.

په دیوان کي قصیدې او غزلي سته. لطیفي استعارې یې راوړي دي.

## د لومړي شاه عباس صفوي یرغل :-

کندهار چي مغول اکبر له صفویانو څخه ونیو. نو څکه چي په ایران کي اړودوړ و، صفویانو د کندهار د بیرته په لاس راوړلو فرصت ونه موند. په ۱۰۳۱ هـ ق کي شاه عباس پر کندهار راغی[۴۳] او تر ۴۵ ورځو کلابندی پس یې ښار ونیو. گنج علي[۴۴] یې د کندهار واکمن مقرر کړ. ښاریې ده ته وسپاره او پخپله د فارس خوا ته ستون سو[۴۵].

اغا مومن د کندهار د فتحي نامې له پاره د موسیقی یو تصنیف (کمپوز) جوړ کړی چي په غزال کي ویل کېده[۳۶].

د دغه جنگ په باب د اقبال نامهٔ جهانگیري په ۱۹۲ مخ کې لیکلي دي :-

د ۱۰۳۱ هـ ق کال د دریمي خورپای ته جهانگیر خبر سو چي د ایران پاچا پر کندهار باندي د برید خیال لري. څکه نو ده د زین العابدین بخشي په واسطه شهزاده خرم ته، چي په دغو ورځو کي په دکن کي د یاغیانو په

---

[۴۳] په عبرتنامه کي دا واقعه د شاه عباس د پاچهی په ۳۴ کال ښوول سوې ده.

[۴۴] گنجعلي خان په خته زیگ و. زیگ په کردانو کي یوه پښه ده. وایي گنجعلي له ازبکانو سره په جنگو کي ښه توره کړې وه، څکه نو د صفوي پاچا له خوا د ارجمند بابا لقب ورکړه سوی و. علیمردان خان چي د پلار تر مرگ وروسته د کندهار واکمن سو، شاه عباس د بابای ثاني لقب ورکړ. په کندهار کي د گنجعلي په نامه باغ دده نامه ته منسوب دئ. گنجعلي د کندهار تر حکومت دمخه د کرمان حاکم و. دی د لومړی شاه عباس له خوا په ۱۰۰۴ هـ ق کال د کرمان حاکم سوی و په ۱۰۳۱ هـ ق د کندهار نایب الحکومه سو. (وگ : ایل ها چادرنشینان و طوایف عشایری ایران ۸۹۱/۲ مخ).

[۴۵] لومړی شاه عباس په ۱۰۳۸ هـ کي ومړ او پر ځای یې شاه صفي (سام میرزا) پاچا سو او تر ۱۰۵۲ پوري یې د فارس پاچهي په لاس کي وه. تر ده وروسته دوهم شاه عباس پاچا سوی دئ.

[۳۶] هنر و مردم ۲۸، ۹۸ مخونه. علامه رشاد مرحوم د کندهار د نیولو په باب د عالم آرای عباسي ۶۸۲ مخ ته هم حواله ورکړې ده او ځای یې تش ورته پرې ایښی دئ (هوتک).

ځبلو اخته و، ولیکل چي ژر پایتخت ته راځه. څو ورځي پس د خان جهان لودي (د ملتان نایب الحکومه) لیک جهانګیر ته ورسېد چي :-

شاه عباس د عراق او خراسان له لښکرو سره پر کندهار برید کړی دئ او خواجه عبدالعزیز نقشبندي له درو سوو سپاهیانو سره کلابند دئ. تر دې لیک وروسته زین العابدین له دکنه راورسېد او حال یې راوړ چي شهزاده خرم له لښکرو سره ماندو ته راورسېد او د برسات د موسم تر تېرېدو وروسته به پایتخت ته ځان راورسوي. ځکه نو جهانګیر میرزا رستم صفوي ته امر وکړ چي ژر لاهور ته ځه او د کندهار د جنګ له پاره له لښکرو سره مرسته وکړه. یو لک روپۍ یې نغدي هم ورکړې. په اقبال نامه ۱۹۴ مخ کې لیکلي دي :-

پخپله جهانګیر چي لاهور ته روان سو د نورجهاني په لمسون یې کندهار ته د تلونکو لښکرو مشرتوب شهزاده شهریار ته، چي د نورجهاني زوم و، وسپاره او میرزا رستم یې د شهزاده اتالیق او سپهسالار وټاکه او امر یې ورته وکړ چي لاهور ته ولاړ سي او سپاه و لښکر سره راغونډ کړي. مګر کندهار ته دا لښکرکښي په دې نسبت پاته سوه چي شاه جهان خپل پلار ته پورته سو او جهانګیر د زوی په ځبلو بوخت سو.

په ۱۰۳۴ هـ کي ګنجعلي ومړ او پر ځای یې زوی علیمردان خان د کندهار واکمن سو، چي بیا یې د مغولي امراوو په لاړ کي جګ مقام وموند.

## د کندهار په باب د امام قلیخان لیک :-

لومړي شاه عباس چي د جهانګیر مغول (۱۰۱۴ - ۱۰۳۷ هـ ق) له لښکرو څخه کندهار ونیو، د بلخ او بخارا امیر امام قلي خان (۱۰۲۰ - ۱۰۵۳ هـ ق) د عبدالرحیم خواجه په لاس یو لیک جهانګیر ته ولېږه، په هغه کي یې کښلي وه :-

"که ته پر کندهار برید وکړې زه او ورور به مي، نذیر محمد خان د بلخ

والي په مرسته درسو". دا ليک سره د سوغاتو جهانګير ته ورسېدی. مګر جهانګير په نورو لانجو بوخت و[۴۷] او د ليک جواب يې ور نه کړ. خواجه عبدالرحيم هم په هندوستان کې ومړ.

شاه جهان چې پر تخت کښېنوست د دغه خط جواب يې د حکيم همام ګيلاني (۲۷ شعبان ۱۰۶۷ هـ ق مړ) په لاس د يو نيم لکو روپو له سوغاتو سره امام قلي خان ته ور ولېږه[۴۸].

## د شاه جهان مغول يرغل :-

مغول شاه جهان (۱۰۳۷ – ۱۰۶۸ هـ ق) په ۱۰۴۷ هـ کې د کابل واکمن سعيد خان[۴۹] ته وليکل چې د کندهار د نيولو له پاره زيار وکاږي. هغه و، چې سعيد خان يو استازی، چې ذوالقدر خان نومېد، عليمردان ته د تطميع له پاره واستاوه. عليمردان خان له ذوالقدر خان سره ډېره ښه وضعه وکړه او ورته ويې ويل :-

جواب به بيا د يو معتمد سړي په لاس در ولېږم. عليمردان خان د مغول شاه جهان له دې ارادې څخه شاه صفي د ايران پاچا وغوړاوه. د ايران پاچا پر ده په قهر سو، ويې ويل :-

---

[۴۷] د نورجهاني په لمسه جهانګير غوښتل چې شاه جهان له وليعهدی څخه ايسته کړي. دې ارادې د پلار او زوی تر منځ خوابدي پېدا کړه. شاه جهان ياغي سو.

[۴۸] عمل صالح ۱/۳۱۷ مخ.

[۴۹] سعيد خان د کابل تر حکومت دمخه د پېښور محلي حاکم و. په ۱۰۳۸ هـ ق چې پښتنو د عبدالقادر روښاني تر ادارې لاندي پېښور محاصره کړ، د دغه سعيد خان په تدبير پښتانه بې اتفاقه سول، کلابندي يې پرېښووله او سعيد خان د روښاني پښتنو په مغلوبولو کې بريالی سو. عبدالقادر او بي بي الايي او رشيد خان يې ونيول او پاچا ته يې ولېږل. عبدالقادر په بند کې ومړ. د دغې کاميابۍ په اثر له سعيدخانه څخه شاه جهان خوشاله سو او د کابل حکومت يې ورکړ.

"چي دی پر موږ ځان تلي. داسي سړی بویه چي د زاهوزادو سره تپ
کړل سي". سیاوش قولرآقاسي يې پسي واستاوه. علیمردان خان ته چي د
درباري خپلوانو له خوا دا حال راورسېد، سمدستي یې مغول شاه جهان ته
ولیکل :-

"زه ستاسي د دربار په خادمانو کي شاملېږم او غواړم چي کندهار
ستاسي سړو ته وسپارم".

سعید خان د کابل صوبه دار ته يې ولیکل :-

"که ناست يې راولاړ سي که ولاړ يې را روانېږه". سعید خان خپل مشر
زوی محمد شیخ او عوض خان له یوه واړه پوځ سره مخ پر کندهار راهي
کړل او پخپل تر شا پسي د یوه غښتلي پوځ سره را روان سو.

مغول شاه جهان له دهلي څخه د لاهور حاکم قلیچ خان ته پنځ زري
منصب ورکړ او د کندهار د حکومت له پاره يې د ۵۰۰۰ پوځ سره کندهار ته
راولېږی. تر شا يې خپل زوی شهزاده شجاع هم د یوه لوی پوځ سره د
ایرانیانو د احتمالي پوځ مقابلې ته پسي راولېږه.

محمدسعید خان چي له کابله کندهار ته ورسېد. علیمردان ورته
وویل :-

"سیاوش د یوه واړه پوځ سره د علیمردان د نیولو له پاره له ایرانه
څخه مامور سوی دئ، تر څو چي د سیاوش شخړه ونه شلېږي. د کندهار
خلک به له زړه څخه د دهلي د دربار حکم ته غاړه نه کښېږدي. هغه و، چي
ژر تر ژره سیاوش راورسېد او پر (سنځري) يې واړول. له دې خوا
محمدسعید خان او علیمردان خان د اتو زرو سپرو سره ورووتل. په جنګ
کي سیاوش مات سو او د ایران خوا ته په منډه وتښتېد. او د آینده امید او
حفاظت په فکر يې څه تفنګدار پوځ د روښان سلطان تر مشرتابه لاندي د
زمینداور په کلا کي پرېښوول. محمدسعید خان د شاه جهان له امره سره سم

د قليچ خان تر را رسېدو پوري په کندهار کي و، چي قليچ خان راورسېد،
کندهار يې ور وسپاره او پخپله د عليمردان خان او خپل زوی محمدشيخ
سره د دهلي د دربار په نيت کابل ته وخوځېد.

سعيد خان ته د دې سوبي په ويار د بهادر ظفر جنگ خطاب او د شپږو
رو سپرو خاني او زوی ته يې د (خانه زاد خان) خطاب ورکړه سو.

قليچ خان په خورا بېړه زمينداور ته ځان ورساوه او هغه کلا يې هم
نيول. بيا يې نو د (بست) د کلا خوا ته مخ ونيو. محراب خان د بست د
کلا واکمن له کلابندۍ وځورېد، امان يې وغوښت. پسله امان مونډلو څخه
ې د اېران خوا ته ترپلل. په دې صورت په ۱۰۴۷ هـ کي د کندهار ټولي
لاوي د مغولي لښکرو په لاس کښېوتلې[۵۰].

د مآثرالامراء په ۷۸۳/۲ مخ کې کښلي دي :-

د حسين خان تکړه لمسی د يوسف خان زوی عزيز الله خان په کابل
ي مقرر و. د جهانگير د پاچهۍ تر پايه دوه زري ... يو زر سپرو ته ورسېد. د
شاه جهان د پاچهۍ په اووم کال يې د غيرت خان لقب ورکړ. د شاه جهان د
چهۍ په يوولسم کال له سعيد خانه سره کندهار ته نژدې له قزلباشو سره
جنگېد. دښمن ماته وکړه. له پردل خانه سره د بست فتحې ته وگوماره سو.
دوولسم کال د پاچهۍ نغاره ورکړه سوه او د بست او گرشک حاکم مقرر
و.

عليمردان خان په ۱۰۴۸ هـ ق کال په لاهور کي د شاه جهان په حضور
شرف سو. يو زر اشرفۍ يې پاچا ته د نذرانې په توگه وړاندي کړې. پاچا
پېر، توره، مرصعه بگړۍ، خلات، شل اسان، ځلور پيلان ور وبخښل، د
يرۍ لقب او شپږ زری منصب يې ورکړ. له کندهار څخه تر لاهوره پوري
د لاري د خرڅ په نامه لس لکه روپۍ ورکړې. په ۱۰۴۹ هـ ق کال چي

---

[۵۰] سرالمتاخرين ۲۶۷/۱. په عبرت نامه ۳ مخ کي دغه تاريخ ۱۰۵۰ ښوول سوی دئ.

شاه جهان له کابله لاهور ته راغی، علیمردان یې حضور ته ور وغوښت. اووه زری منصب او د لاهور و کشمیر حکومت یې ورکړ. په ۱۰۵۱ هـ ق کال یې د امیرالامرایی لقب او د کابل حکومت هم ورکړ. امیرالامراء علیمردان چې مغولو ته تسلیم سو، یو زوی یې صفوي حکومت په ایران کې بندي کړ. علیمردان خان په ۱۰۶۶ هـ ق یا ۱۰۶۷ هـ ق کال د اسهال په ناروغي د سرهند په ماچي دایره نومي ځای کې چې له دهلي څخه لاهور ته تلی ومړ. زوی یې ابراهیم د ده جنازه لاهور ته یووړ او د علیمردان د مور څنگ ته یې په هغه هدیره کې چې علیمردان د مور له پاره په ایراني طرز جوړه کړې وه، ښخ کړ. د مآثر الامراء په قول د علیمردان ۴ زامن پاته سول :-

۱. ابراهیم، چې د بنگال نایب الحکومه و.

۲. عبدالله بېگ. چې د عالمگیر په پاچهۍ کې یې د فتحعلي خان خطاب وموند.

۳. اسحاق بېگ. یو نیم زری منصب یې درلود.

۴. اسماعیل بېگ. یو نیم زری منصب یې درلود.

## د حمزه خان سیستاني یرغل :-

په ۱۰۴۸ هـ ق کال حمزه نامي چې د صفوي پاچا له خوا د سیستان واکمن و، یو پوځ د بست د کلا د نیولو له پاره راولېږه او بست یې د شاه جهان د پوځونو له لاسه وکیښ. اما په دغه کال کې بیرته شاه جهاني پوځونو د بست کلا د حمزه سیستان له سرو څخه په خورا زیار ونیوله او د کندهار یو مشر، چې عیدل = عبدل نومېد، د حمزه سیستاني سره د اړیکي په تور وواژه سو[51].

دوهم شاه عباس په ژمي کې پر کندهار برید وکړ او د ۱۶۴۸ ع کال د

---

[51] سیرالمتاخرین ۱/ ۲۷۰ مخ.

دسمبر پر شپاړسمه يې کندهار کلابند او د ۱٦٤٩ ع کال د فبروري په يوولسمه يې کندهار ونيو.

## د داراشکوه راتګ :-

د ۱۰۵۱ هـ کال په پای کي (د ۱۰۵۲ کال د محرمي په مياشت کي) اوازه سوه چي ايرانيان سږکال د کندهار د بيرته نيولو له پاره په ترتيباتو بوخت دي، نو د مغول شاه جهان له حضوره شهزاده داراشکوه ته دوولس لکه روپۍ او پنځوس زره لښکر ورکړه سو، چي د کندهار مدافعې ته وخوځي. تر شايې د شهزاده مرادبخش په مشرتابه بل لښکر پسي راوګومارل سو چي د نيلاب د سيند پر دې ژۍ به اړوي او د ضرورت پر وخت به د داراشکوه مرسته کوي. داراشکوه تر غزني نه و تېر سوی چي د شاه صفي د مړيني بڼغ خپور سو. شاه جهان د دې بڼغ تر رشتيا کېدلو پوري داراشکوه امر کړ چي په غزني کي واړوي.

د شاه صفي[٥٢] د مړيني په تصديق داراشکوه بيرته د پوځه سره دهلي ته ستون سو[٥٣] او د همدې غيبي سوبي په وياړ يې د شهزاده (بلنداقبال) خطاب وګاټه. د شهزاده مراد بخش پوځ له حسن ابداله ګرځېدلی و.

د ۱۰۵۲ هـ ق کال د روژې په مياشت صفدرخان د کندهار له حکومته معزول او پر ځای يې سعيد خان بهادر[٥٤] مقرر سو*.

---

[٥٢] شاه صفي د ۱۰۵۲ هـ ق کال د صفري په مياشت (مى ۱٦٤٢ ع) کي مړ سو.

[٥٣] اله ويردي خان سلجوقي چي پنځه زري منصب يې درلود په دغه لښکر کي د داراشکوه ملګری و.

[٥٤] ښايي محمدسعيد خان بهادر ظفرجنګ وي.

* سيرالمتاخرين ۲۷۲/۱ مخ.

## پر کندهار باندي د مغولو او اېرانيانو درې جنګونه :-

د شاه جهان په پاچهۍ یا د یوولسمي هجري پېړۍ په شپږمه لسیزه کي د هندوستان د مغولو او د اېرانيانو تر منځ درې جنګونه سوي دي :-

1. د اورنګزېب او سعدالله خان په مشرۍ
2. د اورنګزېب او سعدالله خان په مشرۍ
3. د شهزاده داراشکوه په مشرۍ

## د دوهم شاه عباس [55] یرغل :-

په ۱۰۵۹ هـ ق [56] د کندهار واکمن دولت خان بیتني د دهلي دربار ته وليکل :-

"دوهم صفوي شاه عباس (۱۰۵۲ - ۱۰۷۷ هـ ق) د کندهار ښار کلابند کړی دئ". د شاه جهان له خوا وزیر سعدالله خان او څه نور امراء د کندهار د مرستي له پاره وګومارل سول. شهزاده اورنګزېب یې وګوماره چي له ملتانه څخه مخ د کندهار خوا ته ونیسي. وزیر سعدالله خان او نور پوځ به هم ځان ورپسي ورسوي. پخپله شاه جهان د کابل خوا ته وخوځېد. شاه عباس د دغه کال د لوی اختر په ورځ د کندهار د ښار په شاوخوا کي د ګنجعلي خان په باغ کي واړول.

دلته د اېران پوځ د کلا پر برجونو ور وختل. دولت خان امان وغوښت. امان ورکړه سو او د شادخان، قبچاق خان، نورالحسن او عبداللطيف دېوان او نورو ... سره یې د شاه عباس تر لیدو پس د هند لار واخیسته.

محراب خان چي د شاه عباس له خوا د بست د نیولو له پاره ګومارل

---

[55] کوچنی شاه عباس، تاریخ مرصع ۲۳۰ مخ.

[56] د دغې واقعې کال په عبرتنامه کي ۱۰۶۰ هـ ق ښوول سوی دئ.

سوی و، کلابست یې کلابند کړی و. پردل خان[57] تر ۵۵ ورځو کلابندی پس د کندهار د تسلیم د خبر په اروېدلو کلا محراب خان ته وسپارله، محراب خان له ځانه سره د شاه عباس حضور ته راووست او پخپله خوښه ایران ته ورسره ولاړ. د کندهار د تسخیر بېغ د زمینداور د کلا ساتندوی سید اسدالله خان او سید باقر مجبور کړل چې صفوي منصبدار ساروخان ته، چې له څه وخته یې کلابند کړی و، زمینداور وسپاري. پخپله د کندهار د پخواني واکمن دولت خان بیتني سره هند ته رهي سول.

دوهم شاه عباس ۱۰ زره توپچي پوځ د محراب خان تر مشرتابه لاندې په کندهار او څه پوځ یې د دولت اوغلي زنګي تر مشرتابه لاندې په

---

[57] په تاریخ مرصع ۲۳۰ مخ کې (پردل خان برېڅی) کښلی دئ.

پردل خان برېڅي ته د شاهجهان له خوا یو ستاینلیک لېږلی سوی دئ، څکه سعدالله خان وزیر د ۱۰۵۹ هـ ق کال د صفري د دریمي په لیک کي شاه جهان ته کاږي :-

"از نقل عرضداشت پردل خان و آنچه جعفر خان موافق ارشاد والا در جواب آن نوشته بر حقیقت مطلع گشت، تحسینی که از جناب سلطنت به پردل خان واقع شده بسیار بجا است و او مستحق زیاده ازین انعام های اسمانی است و مظهر آن زبان خلیفهٔ الهی مکتوبی مشتمل بر تقویت تمام و رسیدن کومک بسرعت تام بالشکری از ستاره افزون و سامانی از اندازه بیرون نوشته به کس او حواله نمود و سه سوار همراه ساخت تا فرستاده اش (را) به سعادت خان رسانند و بسعادت خان* نوشت که بپاس خان پردل خان جمعی از افغانان آن سرزمین همراه نمایند تا او (مکتوب رسان) بسلامت بقلعهٔ بست برسد و عرضه داشت پردل خان را که بخدمت شهزادهٔ رفیع مقدار نوشته بود مصحوب ملازم آن کامگار با عرضه داشت خویش درباب راهی شدن پیش بموجب یرلیغ عالم مطیع فرستاده شد. (مکتوبات سعدالله خان، ۱۵ مکتوب، ۳۵ مخ).

* سعادت خان د زین خان کوکه لمسی و. د غزني او بنگښاتو مغولي حاکم ذوالقدر خان چې مړ سو، دی د غزني او بنگښاتو حاکم مقرر سو.

علامه رشاد د یاداښتو په ۲۳۷ مخ کي د پردل خان د مړاني په باب د تاریخ مرصع همدې مخ ته حواله ورکړېده (م. ه).

کلا بست کي پرېښوول. پخپله د دې له پاره چي د هند د راتلونکي پوځ مقابلې ته ژر راورسېدلای سي، په هرات کي، چي هغه وخت د خراسان دارالملک و، ورته کښېنوست. د سعدالله خان په مکتوبات ۵۵ مخ کې ليکلي دي :-

"ظاهراً مخالف بد اعتقاد سه توپ آورده بود یکی گولهٔ یکمن و پنج سیری می خورد دیگری یک منی و سومی پنج سیر کم یک من و توپ انداز فرنگی بود".

مستر دولافوز C.F.Dulafoz د تاريخ هند[۵۸] په ۱۵۹ مخ کي کښلي دي :-

د جهانګير په پاچهي کي د اېران پاچا پر کندهار بريد وکړ او کندهار يې له مغولو څخه ونيو. د اېران پاچا د دې سيمي له خلکو سره ډېر غيرعادلانه او سخته ګذاره راواخيستله. ډېر غير مشروع محصولات او ماليې يې پر کښېښولې. د اېران د پاچا دې وضعي د کندهار خلک د ده پر ضد راپارول او د ده حاکم عليمردان خان يې په ډېره بده وضعه سره له کندهاره ويوست. نوموړي چي دا پېښه تحمل نه کړای سوه، مجبوراً يې په ۱۰۴۷ هـ ق = ۱٦۳۷ ع کال د ډهلي مغول پاچا شاه جهان ته د کندهار د نيولو بلنه ورکړه. لس کاله وروسته، يعني په ۱۰۵۸ هـ ق کال اېرانيانو بيا کندهار د مغولو له لاسه داسي وکيښ، چي بيا تر خپلواکۍ پوري د مغولو لاس پر بر نه سو[۵۹].

---

[۵۸] دا کتاب سيد محمد نقي فخرداعي ګيلاني په پارسو ترجمه او په تهران کي چاپ سوی دئ.

[۵۹] ميرزا وحيد قزويني (۱۱۲۰ هـ ق مړ) د عباس نامې په متن کي د (داستان نهضت همايون بقصد فتح دارالقرار قندهار) تر عنوان لاندي تفصيل لري.

د دې سوبي نېټه مرتضٰی قليخان قورچي باشي (بود اولين فتح صاحبقرانی) او نورو شاعرانو (علی می کشايد در قندهار)، (دست ولايت مدد نمود)، (آمد کليد مملکت هند قندهار = ۱۰۵۹) وويله (مفتاح التواريخ ۳۸۰ مخ). (پاته په راتلونکي مخ کي)

## دولت خان بیټني یا پني :-

دوهم شاه عباس صفوي چي د ۱۰۵۸ هـ ق کال د لوی اختر په میاشت کي (دسمبر ۱۶۴۸ ع) کندهار کلابند کړ، د مغولو امراوو دا خیال و، چي د ژمي په دغو سړو ورځو کي به شاه عباس حمله ونه کړلای سي، مګر دا د دوی تېروتنه وه.

د هندوستان مغولي دربار پسله هغه چي کندهار د اېراني پاچا له خوا کلابند سو، له خوبه سترګي وغړولې او د اورنګزیب او سعدالله خان وزیر په مشرۍ یې یو لوی لښکر د کندهار د بندیانو مرستي ته وګوماره.

کلابندو مغولي امراوو څه مقابله وکړه خو پای ته له کومکه نامېنده سول. د کندهار نائب الحکومه دولت خان بیټني چي خواص خان یې لقب و[۶۰]، ډېر غښتلی او باتور امیر و، مګر په تر لاس لاندي کلابندو

---

(د تېر مخ پاته) صائب د اېراني صفوي پاچا دوهم شاه عباس له خوا د کندهار د نیولو یوه قصیده لري چي ۵۷ بیته ده او د دغي فتحي کال شاعر ۱۰۵۷ ښوولی دئ. داسي :-

شاخ غرور والی هندوستان شکست
بیخ نفاق کنده شد از باغ روزګار
تاریخ این فتوح ز الهام غیب شد
از دل زدود زنګ الم فتح قندهار
(۱۰۵۷)

په تذکرة الشعراء کشمیر ۵۶۰ مخ کي لیکلي دي :- دوهم شاه عباس چي اصفهان ته ستون سو، صائب د ده د ستنېدلو تاریخي ماده داسي موندلې ده :-

پی تاریخ تشریف همایون زد رقم صائب
باصفاهان لوای شاه دین از قندهار آمد
(۱۰۶۰)

د مآثرالامراء په ۶۶۱/۲ مخ کي د شادي خان ازبک په بیان کي د کندهار د سپارلو تاریخ ۲۸ صفر ۱۰۵۶ ښوول سوی دئ.

[۶۰] دولت خان په دغه وخت کي پنځه زری منصبدار و.

منصبدارانو کي يې بې اتفاقي پيدا سوله. ځينو غوښتل چې يوازي سرونه او اولادونه وباسي، دغي ډلي، چې مشهور خلک يې شادي بېګ ازبک او قبچاق خان وو[٦١] له صفوي پاچا سره تار ونښلاوه. دوی اېراني سفيران کلا ته ور ننه ايستل، دولت خان يې هم ور وغوښت او هغه يې مجبور کړ چې تر اووه پنځوسو ورځو کلا بندۍ وروسته د ۱۰۵۹ هـ ق کال د محرمي پر ۲۸ مه (۱۱ فبروري ۱٦۴۹ ع) کندهار اېرانيانو ته وسپاري.

د واقعات قايم خاني په ٦۰ مخ کي د ذکاء الله د هندوستان د تاريخ ۴۴۵/۷ مخ په حواله کښلي دي :-

دولت خان کلابند سو. د کلا برجونه يې ټينګ کړل. د قيتول پر غره يې شاهي پوځونه او خپل پوځونه ځای پر ځای کړل. د برجونو ساتنه او پاملرنه يې کاکړ خان تـه وسپارله. د بانوزي[٦٢] او خواجه خضر د دروازو لاندي مورچې يې نورالحسن د احديانو[٦٣] بخشي ته وروسپارلې. د دولت آباد کلا او د منډوي کلا ساتنه يې ميرک حسن ته حواله کړله. د ارګ ساتنه يې پخپله پر غاړه واخيستله. خو هغه برج يې چې د ودر په نامه قليچ خان د سرپوزې (چهل زينې) پر څکه جوړ کړی و، ښه ونه ساته سو. قزلباشو هغه ونيوی او له هغه ځايه څخه يې پر دولت آباد او د منډوي پر کلاوو د توپ او توپکو ګولۍ واورولې.

د صفري په دوولسمه ټولو احديانو او منصبدارانو امان وغوښت، له کلا

---

[٦١] د عمل صالح له ۷٦/۳ - ۷۷ مخو څخه معلومېږي، چې د صفري پر دوهمه؟ ۱۰۵۹ هـ ق (٦ فبروري ۱٦۴۹) شادي ازبک د اېران د پاچا د يوه پيغام په حکم محمدبېګ کلا ته ورننه يوست. دولت خان خپل ميربخشي و شادي خان او قبچاق خان ته ولېږه، چې دا کار مو زما بې سلا ولي کړی دئ؟ هغو جواب ورکړ، تا ته يې پيغام او روپۍ راوړي وې، موږ جواب نه کړای سو. دولت خان دغو بې اتفاقيو مجبور کړ چې کلا وسپاري.

[٦٢] ښايي ماشوري دروازه وي.

[٦٣] احديان يو ډول منصبداران وو (م. هوتک).

راووتل او ښاريې دښمن ته وسپاره. د کندهار قلعه دار خواص خان هندوستان ته رهي سو. اېرانې پوځ چې کندهار ونيو، د دولت خان کورنۍ يې شاه عباس ته ورو ستل (٦٤).

د مکتوبات سعدالله خان په ٢٨ مخ کې د وزير يو مکتوب د کندهار د والي خواص خان (دولت خان) په نامه سته. د دغه مکتوب په مقدمه کې کښلي دي :-

دولت خان پاچهي دربار ته کښلي و، چې دوهم شاه عباس صفوي د ١٠٥٨ هـ ق کال د لومړۍ خور په ځلورمه له اصفهانه مخ پر خراسان راخوځېدلی و. پنځه مياشتې يې د بسطام په چمن کي تېرې کړلې. د دغه کال د برات په اوومه مشهد ته راغی. آوازه داسې ده چې له يوه درانه لښکر سره د کندهار د نيولو له پاره را روان دئ. خو د دې له پاره چې د هندوستان پاچهي له سترګو څخه دغه اراده پټه کړي، د مقصود بېګ ناظر زوی شاه قلي يې د سفير (ايلچي) په توګه له يوه ليک سره د شاه جهان دربار ته درلېږلی دئ. دغه ايلچي د برات په شلمه کندهار ته راورسېد. فقط درې روځې يې په کندهار کي تېرې کړلې لاهور ته در رهي سو. شاه جهان ته د دولت خان ليک تر ايلچي دمخه ورسېد. شاه جهان وخروښېد او قاضي افضل (د داراشکوه له خوا د لاهور نائب الحکومه) ته يې وکښل :-

ايلچي دې خوا ته مه راپرېږده له هغه ځايه يې اېران ته ستون کړه او ورته ووايه چې نفاق ښه کار نه دئ.

دولت خان ته د اېرانې ايلچي د ستنېدلو په باب حکم واستاوه سو:-

"سعادت دوجهانی و برکات جاودانی نصيب امارت و ايالت منزلت شوکت و حشمت مرتبت، محبت و يکجهتی شعار، مودت و يګانګی نثار خان دولت نشان باد ...

---

(٦٤) مکتوبات سعدالله خان ١٣٠ مخ.

برفعت انتساب قاضی محمدافضل ... برلیغ رفت که با ایلچی مذکور گزارش نماید که اظهارات صداقت و یگانگی و ابراز محبت و یکجهتی شما از جانب صاحب خود با نوشتهٔ بیگی که در فراه است و از آن سراسر بیگانگی می بارد منافات تمام دارد. باینوجه طلب شما بحضور خلافت چه گنجایشی دارد ...

گیتی خدیو، کیهان خداوند بمجرد اطلاع بر مضمون فتنه مشحون این نوشته که امارت پناه ایالت دستگاه دولت خان ناظم قندهار با عرضه داشت خویش ارسال داشته بود به اختر شناسان حضور سراسر نور حکم فرمودند که ساعت بس نزدیک برای توجه رایات جهان کشا از مرکز سلطنت شاه جهان آباد بصوب قندهار اختیار نماید ...

ملازمان سرکار عالی نواب فلک جناب مذکور (اعنی قاضی محمدافضل) ایلچی را در ملتان بشوکت و شهامت پناه جلادت و بسالت دستگاه بهادر خان و از آنجا کسان خان مسطور بمنسوبان آن محبت و یکجهتی مآب که در سرحد می باشند خواهد رسانید. هر گاه نوکران سرحدی آن رفعت و معالی منزلت ایلچی را بقندهار رسانند آن حمایت و شجاعت اکتساب ایلچی را در قلعه قندهار نزد خود نه طلبند و نگذارند که کسی پیش او آمد و رفت نماید. او بکسی و کسی به او حرف نزند و مردم همراه کرده برفعت و شهامت دستگاه پردل خان برسانند و بخان مشار الیه بنویسند که جمعی را همراه او نموده از سرحد خود بگذارند و نگذارند که هیچ کسی با او یا او به کسی اختلاط نماید و حرفی بگوید. درین باب از حضرات خلافت قدغن تمام دانند. زیاده چه تصدیع دهد. ایام محبت و وداد بما ناد".

په خلېرویشتم مکتوب کې چي د لومړۍ خور په ۱۸ سعدالله خان شاه جهان ته استولی دئ، لیکلي دي :-

"هر قدر تعبی که بر قلعه دار نامرد قندهار رود او مستحق زیاده از آن است، بر تقدیری که آن هیچکاره قلعه را داده نمی بود امروز لشکر ظفر بیگ در غزنین بوده ...".

## د اورنگزیب لومړی جنګ :-

په ۱۰۵۹ هـ کې اورنګزیب له سعدالله خان وزیر سره کندهار ته راورسېد. محراب خان کلابند سو او سمدستي يې هرات ته خبر ولېږه. درې نیمې میاشتې مغول پوځ د ښار په شاوخوا په مورچو کې ناست و. ښاريې خلاص نه کړای سو. اورنګزیب څه پوځ د قليچ خان، قباد خان، خنجر خان او الله قلي خان تر مشرتابه لاندي بست ته ولېږل چې ويې نيسي[٦٥]. له هراته څخه دوهم شاه عباس د لښکرو د مخنۍ پوځ د اردبیل د حاکم سوکلن نظر علیخان او میرآخورباشي نجف قلي بېګ زنګنه تر مشرتابه لاندي د کلابست کلابندۍ ته ولېږه[٦٦]. حاجي منوچهر د محراب خان ورور، چې یو منلی توريالی و، د دوهم شاه عباس له حضوره وغوښتل چې تر ټولو پوځو دمخه د ورور مرستي ته ورسي. غوښت يې ومنل سو او د يوې ورې ډلې مېړنو سره په خورا تلوار څره تر ټولو پوځو دمخه د کندهار خوا ته وخوځېد، چې ګرشک ته راورسېد، پر هغه مغول پوځګي چې د خنجر خان، قباد خان او الله قليخان تر مشرتابه لاندي د قليچ خان په امر له کلابسته څخه د ګرشک او زمینداور د نیولو له پاره ګرشک ته رارسېدلی و، پېښ سو. د

---

[٦٥] رستم خان مقرب خان چرکس هم په کلابست کي له قليچ خان سره و (مآثر الامراء ۲۷۵/۲ مخ).

[٦٦] په دغه جنګ کې د جودهپور والي جسوت سنګه راتهور هم شريک و (مکتوبات سعدالله خان ۱۰۷ مخ). دغه جسوت سنګه د عمر په وروستيو کلو کې د جمرود قلعه دار و او دلته ومړ.

گرشک کلا ته یې شا ورکړه او له خنجر خان سره یې د جنګ بنا کښېښووله. که څه هم خنجر خان نه غوښتله چې د زمینداور لوټ او تسخیر د دې وړې مقابلې له پاره پرېږدي، خو څکه چې په دغه ترڅ کې نجف قلي بېګ میرآخورباشي هم د پنځو سوو سپرو سره ګرشک ته راورسېد او د جنګ اور ولګېد. په دې جنګ کې مغول پوځ څه تر توره وختل او څه د هېرمند اوبو په تېر کړل. د دې خبر په اورېدلو قلیچ خان چې کلابست یې کلابند کړی و، د کندهار پر خوا ترپلل.

سوکلن نظر علیخان هم د خپل پوځ سره ګرشک ته راورسېد او له شاهي امر سره سم یې د شاهي پوځ راتلو ته کتل. د شاهي امر سره سم صفي قلي بېګ او روښان سلطان لزګي د یوه تکړه او غښتلي پوځ سره پر مغول پوځ د داړې وهلو له پاره ولېږل سول. دوی هم په باباولي کې د مغول پوځ مخې ته واړول. پاته پوځ له ګرشکه څخه د سیاوش تر مشرتابه لاندې راولېږدېد. سپهسالار او قورچي باشي د هلمند پر ژۍ ورته واړول.

له دې خوا اورنګزېب د کهني رستم خان[٦٧] سپهسالار کا او قلیچ خان و څه نور مشران یې د فیلانو او غښتلي توپخانې سره د ایران د لښکرو مخې ته ولېږدول. جنګ ونښت. د شپې تیارې د غلیمانو تر منځ د متارکې تجویز وړاندې کا. مغول پوځونه د اورنګزېب معسکر ته تر شا سول. سهار اورنګزېب د خپلو ټولو لښکرو سره د هند خوا ته ملونه وګرزول او کندهار یې قزلباشو ته پرېښود.

اورنګزېب د ۱۰۵۹ هـ ق د دریمي خور په ۱۴ = ثور ۲٦ کندهار کلابند کړ او د روژې په میاشت کې له کندهاره پسله څلورو میاشتو محاصرې بې فتحي روان سو[٦٨]. په دغه جنګ کې بهادر خان داودزی هم شریک و او د

---

[٦٧] رستم خان مقرب خان چرکس.

[٦٨] سعدالله خان په اته ویشتم لیک کې شیخ عبدالکریم ته له کندهاره کښلي دي :-
کندهار ښار مو د دریمي خور په دوولسمه کلابند کړ او تر اوسه پوري (د څلورمي خور ۱۷) کلابند دئ.

ماشور دروازې سنگر ده ته سپارل سوی و. بهادر خان په دغه کلابندۍ کي ومړ.

اورنگزېب چي لومړی وار پر کندهار برید وکړ، دغه امراء ورسره وو :-

1. خوشحال بېگ کاشغری (عمل صالح ۱۳۷/۳ مخ)
2. رستم خان فېروز جنگ چرکس. د کندهار په درو سرو جنگو کي شامل و. د بلخ او بدخشان په جنگ کي يې هم توريالیتوب منل سوی وا و د کندهار د ښامير په جنگ کي چي يې کومه توره کړې وه، د هغه په صله کي د فېروز جنگ خطاب ورکړه سوی و. پای ته د کابل نائب مقرر سو.
3. طاهر خان د بلخ له خلکو څخه و. په ۱۰۵۶ هـ ق کال له بلخه ولاړ او د شاه جهان نوکر سو. د کندهار په درو سرو جنگو کي شامل و.
4. قليچ خان توراني، چي بيا د کابل والي سو. پنځه زری منصب يې درلود. د کندهار په درو سرو جنگو کي و.

## د کلا ښامير جنگ :-

سنگ حصار له کندهاره څخه ۲۴ ميله ليري د هرات خوا ته پروت دئ. د سنگ حصار او کشکنخود تر منځ يو ځای دئ، چي د ښامير په نامه يادېږي. پر دغه ځای د ۱۶۴۹ کال د اگسټ په ۲۵ د اېرانيانو او مغولو تر منځ سخت جنگ وسوا و اېرانيان مات سول. رستم خان چرکس چي بيا وروسته د کابل والي سو، په دغه جنگ کي ښه توره وکړه.

د کندهار د احديانو[٦٩] شمېره :-

د مکتوبات سعدالله خان په ۵۴ مخ کي چي له کابله يې ليک د ربيع الاول په پنځویشتمه ۱۰۵۹ کال شاه جهان ته استولی دئ، کښلي دي :-

---

[٦٩] احدي (د لومړي او دوهم په فتحه) يو راز منصبدارانو ته ويل کېده (م. هوتک).

"درباره احدیان که از قندهار زمینداور رسیده اند و قریب شش صد و هفتصد هستند بهر وجه حکم شود، عمل نماید". د مکتوبات سعدالله په ۵۳ مخ کې (تاریخ ۲۵ ربیع الاول ۱۰۵۹ ه ق له کابله) لیکلي دي :-

"خطی که از سعادت خان (از غزنین) رسیده بود با این عرضه داشت ارسال و از آن ظاهر می شود که غنیم بد اعتقاد (ایرانیان) از قندهار کوچ نموده، نوروز را بر کنار رود هیرمند کرده روانهٔ خراسان گشت غالب آنکه چندگاه در هرات بسر برد و احیانی که از زمینداور رسیده اند نیز بهمین طریق تقریر نمودند و هم ازآن ظاهر شد که عالم لوحانی به حسین ایرانی نوشته که لشکر عظیمی از هندوستان رسیده و حسین آن نوشته را پیش محراب قلعه دار قندهار برده وآنرا به داک چوکی پیش آقای خود فرستاده".

د مکتوبات سعدالله خان په ٦٨ مخ کي د دري دېرشم لیک د وضوح له پاره یې کښلي دي :-

د اورنگزېب له خوا قلیچ خان د ۱۰۵۹ کال د دریمي خور په ۲۵ د بست نیولو ته وگومارل سو[۷۰]. هلته چي ورغی معلومه سوه چي د کلا بست ایراني حاکم د کندهار د ایراني والي محراب خان په امر له کلابست څخه ټول رعیت ایستلی او د فراه و سیستان خوا ته یې لېږلي دي او ودانۍ یې وراني کړي دي. قلیچ خان زر ته د طاهر خان په مشرۍ د گرمسیل چور ته وگومارل. دا پوځ تر قلعهٔ حبشي؟ پوري ولاړل ډېري غلې او مالونه یې ورسره راوړل. اله قلي او قباد خان هم د شاوخوا سیمو له چوره څخه ډېر مالونه، څاروي او بندیان ونیول. په دغه وخت کي نجف قلي میرآخورباشي او حاجي منوچهر (د محراب خان ورور) گرشک ته راورسېدل او د اله قلي او قباد خان مخه یې ونیول. مغول پوځونه را وتښتېدل او قلیچ

---

[۷۰] بست د کندهار جنوب غرب ته ۷۰ میله لیري دئ.

خان هم له بسته شخه شلور کوسه د کندهار خوا ته را تر شا سو. گرشک ته یې د ایرانیانو د پوځونو د را رسېدلو خبر وزیر سعدالله خان او اورنگزېب ته ورکړ. هغو امر وکړ چې نور هم د کندهار خوا ته را تر شا سئ. په بر سنگ حصار کې قلیچ خان واړول (له کندهار شخه ۲۴ میله لیرې). خبر راغی چې نظر علیخان د اردبیل حاکم له نهو زرو سپرو سره کشکنخود ته راورسېد (د سنگحصار او کشکنخود تر منځ ۱۵ میله فاصله ده) او لس زره سپاره د مرتضیٰ علیخان تر مشرتوب لاندې په نظر علیخان پسې راورسېدل[۷۱].

اورنگزېب د رستم خان دکنې په مشرۍ یو پوځ له اوو زرو سپاهیانو سره د قلیچ خان مرستې ته وگوماره. د مغولو پوځ یوولس دوولس زره سو... جنگ د ښامیر په کلا کې ونښت. ډېرشو زرو ایرانیانو ماته وکړه، د مغولو پوځونو شل میله ایراني پوځونه وځغلول.

د سعدالله خان د مکتوبات په ۷۳ مخ کې نذیر محمد خان ته لیکلي دي:-

موږ (مغولو) درې میاشتې کندهار کلابند کړ، چې د کندهار غله او وابښه پر خلاصېدلو سوه او د ژمي فصل رانژدې سو ایراني لښکر له هراته شخه د کلابندو ایرانیانو په مرسته یو په بل پسې راورسېدل. رستم خان او قلیچ خان مو د لښکر له شلورمې سره وگومارل چې په ارغنداو کې د ایراني لښکر مخه ونیسي. د ایرانیانو لښکري د مرتضیٰ قلي خان سپاه سالار تر مشرتابه لاندې په کشکنخود کې واړول او شلور فرسنگه نور پر مخ راغلل. په کلا ښامیر کې له مغولو سره مخامخ سول. غرمه جنگ ونښت ایرانیان مات سول، توپخانه یې مغولو ته په لاس ورغله. دوه فرسخه زموږ لښکر په تښتېدونو پسې و.

تر دې سوبې وروسته د شاه جهان امر راغی چې ژمی راغی، راځئ.

---

[۷۱] عمل صالح ۸۵/۳ - ۸۶ مخونه.

ځکه نو د مغولو لښکر بیرته هندوستان ته ستون سو.

## د رس او آزوغ (د غلې او آذوقې او علوفې) بندوبست :-

سعدالله خان وزیر له کابله ځخه د غزني خوا ته د رهي کېدو په وخت کي د ۱۰۵۹ هـ ق کال د دوهمي خور په دوهمه کښلي دي :-

"امیر الامراء بجد شده عبدالغني بېګ را که در کابل جانشین خان مسطور بود با دویست سوار به بنګش پایان و بالا فرستاده که تسلیه و استمالت او لوسات آن سرزمین و سر انجام بار بردار نموده پیوسته رسد را به لشکر ظفر قریب که متوجه قندهار است میفرستاده باشد خدا کند که باربردار بهم برسد. باربردار که قریب بهزار چهار صد شتر خواهد شد در کابل سرانجام یافتنی نیست.

غله در بنګش ها بسیار است و عبدالنبی نامی را از ملازمان خان مذبور با جمعی بتومان لوهګر متعین ساخته مقرر کرده که هر قدر غله در انجا بوده باشد ضبط نماید تا بلشکر فیروزی اثر بیاید قریب یک هزار خروار غله سرکار خاصه شریفه که درګردیز بود قلعه دارخان سرانجام باربردار نموده بغزنین رسانید. مجموع غله که از سرکار فیض آثار و از سعادت خان در غزنین است چهار هزار خروار که چهل هزار من می شود بوده باشد. جانم فدایت فکری که هست از قلت غله است والا که از غزنین آنطرف و افراست اګر غلات قندهار بتصرف درآمد انشاء الله تعالی عسرت غله نیز بر طرف خواهد شد".

## د مغولو توپونه :-

۱. د اکنت رای جوړ کړی توپ، چي په کابل کي و، دوولس سیری و. اکنت رای هغه ته قوت ورکاوه د کندهار د کلابندۍ له پاره یې

پنځه ویشت سیری ځني جوړاوه[۷۲].

۲. د لاهور توپ، چي سعدالله خان یې په ۲۶ گنه لیک کې د ژر رااستولو زیرمه کړېده.

۳. درویش سرخ د یوه توپ نوم دي. سعدالله خان په ۲۹ مکتوب کې دغه توپ له سکندرتوپ ریزه سره غوښتی دئ[۷۳]. د مغولو د توپو مشر قاسم خان و، چي تر لښکر به یې دوه مزله دمخه سفر کاوه.

## د اورنگزېب دوهم یرغل :-

شاه جهان مغول د کندهار د نیولو له پاره د ۱۰۶۱ هـ ق کال د ربیع الاول په ۱۶ مه شپه له لاهوره څخه د کابل په نیت پښه پر آس واړول او په دغه ورځ چي د شمسي کال اوله ورځ وه اورنگزېب له ملتانه څخه د پښین له لاري کندهار ته راوخوځېد[۷۴]. شهزاده اورنگزېب ته حکم وسو، چي له

---

[۷۲] مکتوبات سعدالله خان ۵۵ مخ.

[۷۳] مکتوبات سعدالله خان ۵۸ مخ.

[۷۴] له ملتانه څخه کندهار ته د اورنگزېب د سفر مزلونه دا دي :- دوې ورځې د ښار په یوه کروهي کې، لس ورځې یو کروه وړاندي اتراغ سو، د دوهمي خور په نولسمه د ملتان تر سیند پوري ووت، چچه ته ولاړ، چوتیالی، دوکی ته ولاړ (په دوکي کې پنځه سوه کوره ترین اوسېدل او په چوتیاله کې درې سوه کوره ترین و). اورنگزېب چي دوکی ته ورسېد هلته یې عالم خان لوانی (د لوانیو خان) تانه دار مقرر کړ. د دوهمي خور پر شلمه د طبق سر غره لمني ته ورسېد، په ۲۱ پښین ته ورسېد، په ۲۷ د پنج مندرک تر کوتل (کوړک) واوښت سید باقر بخاري یې د پښین تانه دار مقرر کړ، د دریمي خور په دریمه = ۲۳ ثور د کندهار شاوخوا ته ورسېد.

د هستري آف اورنگزېب په ۱۳۳/۱ - ۱۳۵ مخونو کې کښلي دي :-

اورنگزېب د ۱۶۵۲ د مارچ په ۲۶ له ملتانه رهي سو، ۶ اپریل په چهچه کې، ۱۳ اپریل چشتیان ته ورسېد، ۱۴ دوکی ته ورغی، ۱۹ طبق سر، ۲۳ پښین، ۲۶ دره پنج مندرک (کوړک) څخه تېر سو او د می په دوهمه کندهار ته ورسېدی.

ملتانه څخه کندهار ته وخوځي، سعدالله خان وزير د پنځوسو زرو تکړه جنګياليو سره د کابل او غزني له لارې کندهار ته ولېږل سو چي د اورنګزېب په مرسته کندهار ونيسي. د دې پوځ سره ۵۰۰ اوښه خزانه، دوه زره و پنځه سوه اوښه وسله وه. د کندهار واکمن اوتارخان شاه عباس ته خبر ورکا. مغول شاه جهان د جمادي الاول پر څلرمه کابل ته راورسېد. اورنګزېب کندهار کلابند کړ. پلار يې له کابله پنځلس لکه روپۍ نوري هم د جان بېګ په لاس له دوو زرو سپرو سره د عساکرو د خرڅ له پاره ور ولېږلې.

له هغه خوا دوهم شاه عباس سرلام پوځ د کندهار لور ته راولېږداوه. شهزاده اورنګزېب د ۱۰۶۲ هـ په شروع کي تر دوو مياشتو و اتو ورځو کلابندۍ پس د کندهار ښار خوشي کړ او بيرته هند ته ستون سو. په دغه دوهم يرغل کي هم رستم خان ورسره و.

د کندهار د کلابندۍ په شروع کي سعدالله خان وزير د شاه جهان په امر دولت خان ته له خزانې څخه لس زره روپۍ ورکړلې. اورنګزېب په ۱۷ ثور پلار ته وليکل :-

ستاسي له امره سره سم مي دولت خان خوشاله کړ. اوس دی وايي چي زه خپل عزيزان ملتان ته لېږم او هورې به ښه خدمت وکړي.

## د شهزاده داراشکوه يرغل :-

اورنګزېب چي د کندهار له کلابندۍ څخه ناکام ستون سو، نو مغول شاه جهان خپل کشر زوی داراشکوه ته دېرش زري منصب ورکړ، د ملتان ايالت چي د اورنګزېب و، د کابل د صوبې له انتظام سره ده ته وسپارل سو. په کابل کې يې د داراشکوه زوی سليمان شکوه مقرر کړ. اته زري منصب يې ورته ورکا. نو مغول شاه جهان له کابله د هند خوا ته ولېږدېد او داراشکوه ته يې امر وکا چي د کابل د صوبې تر انتظام پس دهلي ته

رسي.

هغه و شهزاده داراشکوه چې د کابل انتظام برابر کړ د ۱۰۶۲ ه په پای
ې دهلي ته ورغی او د کندهار د نیولو تعهد یې وکړ او شاه جهان مغول د
ې کار د تر سره کولو له پاره شل لکه نقد و جنس ورکړل او د کندهار د
یولو له پاره یې وگوماره. په ۱۰۶۳ ه ق کې شهزاده داراشکوه د یوه خورا
وی او مجهز اویا زري پوځ او فیلانو سره پر کندهار راغی. ښاریې کلابند کړ
ورستم خان دکنی یې د یوه ستر پوځ او فیلانو سره د بست خوا ته
استاوه. په دغه وخت کې دولت خان پښتون[۷۵] چې د ایراني دولت له
خوا د دوکی و چوتیالې د علاقو حاکم او له پخوا څخه د صفویانو هواخواه
، د مغول پوځونو مل سو او شهزاده داراشکوه ته یې غاړه کښېښووله. د
ښتانه دولت خان ملگری د داراشکوه همت یو په دوه کړ او د کندهار د
سخیر امید یې خورا زیات سو.

له هغې خوا دوهم شاه عباس (۱۰۵۲ – ۱۰۷۷ هـ ق) ته د کندهار د
ایراني بیگلربیگي (حاکم) له لوره پخوا لا لیک ور رسېدلی و. له یوې خوا
یې خپل خاص مریی سخنان بیگ له یوه پوځ سره، چې په هرات کې یې
اړولي و، وگوماره چې د کندهار خوا ته وخوځي. له بلي خوا یې د خراسان
ځیني امراء او د استرآباد واکمن منوچهر ته هم د کندهار د تللو امر وکړ. تر
شا یې یو ستر پوځ د علي قلیخان سپهسالار تر مشرتابه لاندي د کندهار پر
لور وخوځېد.

شاه عباس د کلابست ایراني واکمن چې مهدي قلي سلطان نومېد، د
کندهار د ایراني واکمن اوتارخان د شکایت او سعایت له امله معزول کړ، پر
ځای یې د اسفراین حاکم امام قلي سلطان ته د بست حکومت ورکړ او وې
گوماره چې په خورا چټکي به ځان کلابست ته رسوي چې هغه کلا د غلیم

---

[۷۵] دولت خان به غالباً د شېرخان ترین ورور وي (وگ : عمل صالح ۳/۱۴۵ مخ).

له يرغله وژغوري.

شهزاده داراشکوه چي د ایراني پوځونو په خوځېدلو خبر سو، رستم خان دکهني تې وليکل چي :-

"دلاورو باخبره اوسئ، که ایراني پوځونه راورسي، مدافعت وکړئ، زيار وباسئ چي کلابست لاس ته راولئ".

مهدي قلي سلطان د بست حاکم د امام قلي سلطان تر رارسېدلو له مخه کلا رستم خان ته وسپارله او پخپله د مغولو مطيع سو. د کلابست تسخير د شهزاده همت لا زيات کړ او د کندهار د کلا په نيولو کي د هندي پوځ سرگرمي يو په دوه سوه. اوتارخان هم ورته کلک سو. د شوال د مياشتي په نهمه ورځ د هند دلاورانو يوې ډلي په خورا تلفاتو ځانونه شېرحاجي [٧٦] ته ورسول، ورننوتل مگر ناکام پر شا راووهل سول. په دې ورځو کي سخنان بېگ هم د درو زرو سپرو سره راورسېد. د ډاگي جنگ بيچ يې په ځان کي نه ليد، نو له شاوخوا شخه به يې د رستم خان پر پوځ داړې وهلې. رستم خان دکهني غليم لړ وليد او پسي ور ووت. مگر سخنان بېگ چي د ډاگ د مقابلې توان پخپل پوځ پوري نه ليد، بې له جنگه فولاد؟ (فراه) ته وتښتېد. رستم خان هم ځني راوگرزېد او د هلمند پر ژي‌يې ورته واړول.

څو ورځي پس د استرآباد واکمن منوچهر خان د درو زرو سپرو او

---

[٧٦] د مصطلحات الشعراء په ۲۸۷ مخ کې ليکلي دي :- شير حاجی حصاری که بر دور حصار درون باشد. محسن تاثير گويد :-

زحصن حسن موله به نار پستان باش
بگير اول ازين قلعه شـــير حاجی را

ښايي اوسنی شېرازه کلمه چي کټ مټ د شير حاجي مفهوم لري د دغي کلمې بدل سوی شکل وي.

شېر حاجي زما (هوتک) د تحقيق له مخي په رشتيا سره شيرازه ده. وگ : گوربت مجله دويم کال، دويمه گڼه ۱۳۷۹ (لېندی- مرغومی) ۱۳ مخ، زما مقاله.

سپهسالار عليقلي خان د يوه ستر او بې شمېره پوځ سره راورسېدل. منوچهر خان د رستم خان د کهني د پوځ پر نيم فرسنګي ورته واړول. رستم خان دکهني کلابست ته اور واچاوه. د کلابست ودانۍ يې وراني کړې[۷۷] او د شهزاده د امر سره سم کندهار ته راستون سو. شهزاده د رستم خان په رارسېدلو د هند خوا ته ترپلل. عليقليخان سپهسالار څه پوځ ورپسي وګوماره. ايراني پوځ دوه فيلان او څه درنه باروبنه يې د شهزاده له پوځه پرې کړه کندهار ته ځني راوګرزېد[۷۸].

د تاريخ افغانستان در عصر ګورګانی هند په ۱۲۰ مخ کې ليکلي دي :-

شهزاده داراشکوه د ۱۰۶۲ هـ ق کال د ميانۍ د مياشتي په پای کې د کندهار کلابندي پرېښووله او د ۱۰۶۳ کال د محرمي په لومړيو ورځو کې د هندوستان دربار ته ورسيد[۷۹].

د مکتوبات سعدالله خان په ۸۳ مخ کې ليکلي دي :-

له داراشکوه سره اويازره پوځ و. ده تر ۲۷ سپتمبر ۱۶۵۳ پوري کندهار کلابند کړ مګر ويې نه نيو. ده د مې په ۱۳ مه رستم خان له پنځلسو زرو

---

[۷۷] مآثر الامراء ۲/۲۷۶ مخ.

[۷۸] رستم خان چرکس په اول سر کې په دکن کې د نظام الملک نوکر و. د شاه جهان د پاچهۍ په ۴ کال د شاه جهان خوا ته راواووښت د بلخ په فتحه کې هم و. رستم خان په ۱۰۷۸ هـ ق کال په سموګړه کې د داراشکوه او اورنګزېب په جنګ کې وواژه سو.

[۷۹] د واقعات قايم خاني په ٦١ مخ کې د ذکاء الله د تاريخ هندوستان په حواله کښلي دي:- د ۱۰۶۳ هـ ق کال د شوال نهمه شپه داراشکوه پر کندهار باندي د يرغل له پاره وټاکله. دا پنځم شبخون و...

شهزاده داراشکوه چي پر کندهار بريد کاوه دغه امراء ورسره وه : (۱) خوشحال بېګ کاشغري (عمل صالح ۳/۱۵۷ مخ) (۲) رستم خان.

لښکرو سره د بست د نیولو له پاره وگوماره. هغه بست او گرشک ونیول مگر بیرته کندهار ته راوغوښتل سو پر ځای یې نور څوک د هغو سیمو د ساتلو له پاره ور ونه لیږل، ځکه نو رستم خان چي کندهار ته راتی، د بست کلا یې ونړوله[80].

## کندهار ته د مغولي شهزاده اکبر راتگ :-

د گوهر مجلې په ۵٦ پله پسې گڼه ۵۸۲ مخ کې لیکلي دي :-

د اورنگزیب زوی شهزاده اکبر له پلاره خوابدی سو. په ۱۰۹۲ هـ ق ایران ته وتښتېد او له شاه سلیمان صفوي (۱۰۷۸ – ۱۱۰٦ هـ ق) څخه یې د پلار پر ضد مرسته وغوښتله خو هغه ونه منله. اکبر په مشهد کي مېشت سو. په ۱۱۰٦ هـ ق کال چي شاه سلیمان ومړ او سلطان حسین صفوي پاچا سو، اکبر اصفهان ته ورغی. د جلال الدین محمود د جونگ له مخي معلومېږي چي اکبر له اصفهانه څخه کندهار ته راغلی دئ. ځکه د محمود جلال الدین په جونگ کي په ۱۱۰۷ هـ ق کال د روژې په ۱٦ اکبر او جلال الدین محمود موږ په کندهار کي وینو او د ۱۱۰۸ هـ ق کال د میاني د میاشتي تر شلمي پوري په کندهار کي دي. په ۱۱۰۹ هـ ق کال په فراه کي و. د ۱۱۰۹ – ۱۱۱۵ هـ ق کال تر منځ یې د کندهار د مرزبانانو (پښتنو) له پاره خلاتونه د جمال الدین محمود په لاس لیږلي

---

[80] صائب د ایراني لښکرو د دغه بري تاریخ ماده داسي موندلې ده :-

صورت تاریخ این فتح از قضا شد جلوه گر

چون (سیاهی) خاست از (مرات حصن قندهار)

مرات حصن قندهار = ۱۱۴۹ – سیاهی (۸٦) = ۱۰٦۳ هـ ق

پر کندهار باندي د دوهم شاه عباس د یرغل په باب څه تفصیل د خطي عباسنامې په ۳۲ مخ کي داسي راغلی دئ. (علامه رشاد مرحوم دغه تفصیل نه دئ را اخیستی، م. هوتک).

دي[٨١].

د مآثر عالمگیري د اردو ترجمې په ۱۵۱ مخ کې لیکلي دي :-

په ۱۰۸۵ هـ ق کال چي اورنګزېب د پښتنو د ځبلو په نیامت حسن ابدال ته له خپلو لښکرو سره راغی. د ۱۰۸۵ کال د څلورمي خور په ۲۴= د ۱۶۷۴ ع کال په سپتمبر کي شهزاده محمداکبر یې له یوه لښکر سره وګوماره چي د بنګښاتو (کوهاټ) له لاري کابل ته ولاړ سي. شهامت خان او غیرت خان یې هم ورسره کړل. دوی له لویو امراوو څخه وو[٨٢].

د مآثر عالمگیري په ۴۷۸ مخ کې لیکلي دي :- منعم خان چي د کابل د والي شهزاده محمدمعظم (شاه عالم بهادرشاه) دیوان مقرر سو. کابل ته چي رهي کېدی، پاچا ټینګار پر وکړ چي باید د شهزاده محمداکبر[٨٣]

---

[٨١] د شهزاده محمداکبر په باب د An Oriental Biographical Dictionary په ۲۱۲ مخ کي معلومات سته. د شاهان اوده کې کتب خانې په ۱۰۰ مخ کې کښلي دي :-
شهزاده محمداکبر د اورنګزېب تر ټولو کشر زوی و. ایران ته وتښتېد هلته په ۱۱۱۵ هـ ق = ۱۷۰۳ ع کال ومړ. د ده استاد سید محمد بن میر محمد حسین د چغتایي ژبې یو موجز قاموس د ده له پاره کښلی دئ، چي یوه خطي نسخه یې د اوده په کتب خانه کي خوندي وه او د شپرینګر په راپور کي د هغې نسخې ذکر سته.

[٨٢] دغه مطلب د خوشحال خان خټک د کتاب په ۱۶۸ مخ کي هم راغلی دئ او په مآثر عالمگیري کي هم سته.

[٨٣] د شهزاده محمداکبر مور ملکه دل رس وه، چي د شهنواز خان صفوي لور وه. د زوکړی کال یې ۱۰۶۲ هـ ق د لوی اختر د میاشتي ۱۲ مه ښوول سوی دئ. اکبر چي ایران ته تی، خپلې دوې بلاربي مایني یې د راجه جسونت سنګه کونډې ته پرېښوولې. د دغو دوو ښځو زامن پیدا سول. (وګ : راجپوت مغل زن و شوهر ۱۶۳ مخ) دغه هلکان په هندو کورنی کي لوی سول. بله ژبه یې زده نه وه. د اکبر تر مرګ وروسته چي دې اورنګزېب ته وروستل، اورنګزېب (نیکه یې) دوی ته معلمان مقرر کړل چي د ډهلي د دربار له ژبي او رسومو سره یې بلد کړي.
د خواجه اعظم په تاریخ کي د شهزاده محمداکبر په باب لیکلي دي : (علامه مرحوم دغه بیان نه دئ را اخیستی، م. هوتک).

فاسدي ارادې ته ځير سي. هغه په فراه کي ناست دئ، وار ته گوري مگر د کندهار صفوي حاکم يې کندهار ته نه راپرېږدي. دی گوري که شهزاده معظم له کابله ولاړ، اکبر به پر کابل او لاهور بريد کوي.

نعمت خان عالي په جنگنامه کي کښلي دي :-

د جسونت سنگه راتهور تر مرگ وروسته راجپوت پورته سول. اورنگزېب په اجمير کي د پنځو شپږو زرو سپرو سره اړولي و. لښکري يې د اودهي پورې درانا ځبلو ته وگومارلې ځکه چي د اودهي پوره رانا د پورته سوو راجپوتو مرسته کړې وه. راجپوت د شهزاده محمداکبر په پوست ورننوتل. دی يې پلار ته پورته کړ او راجپوتو ټولو د ده د مرستي قسم واخيست. شهزاده محمداکبر له راجپوتو سره د اجمير خوا ته را رهي سو او له اجميره څخه درې کروهه ليرې واړول. د پلار او د زوی جنگ پيښ سو. راجپوتو جنگ ته شا کړه او شهزاده محمداکبر دکن ته وتښتېد او سنتامرهټه ته يې پناه وروړله. اورنگزېب دکن ته لښکري پسي ور وخوځولې او پر سنتا يې بريد وکړ. شهزاده محمداکبر دوې پښې نوري پور کړلې او په تېښه اېران ته ولاړ[84].

د مآثر عالمگيري په ۳۸۴ مخ کې ليکلي دي :-

په ۱۱۱۰ هـ ق کال له کندهاره څخه د شهزاده اکبر دوه نوکران د اورنگزېب دربار ته راغلل د بخښني يوه مطالبه او د عطرو يوه صندوقچه يې پاچا ته د شهزاده له خوا راوړل. اورنگزېب خلات او يو فرمان د دوی په لاس کندهار ته د شهزاده اکبر په نامه ولېږل. په فرمان کې ليکلي و :-

ته چي زما د پاچهۍ سرحد ته داخل سې، گناهونه دي بخښم او د بنگال حکومت درکوم. شهزاده محمداکبر له دکنه څخه خپل پلار

---

(۸۳) د احوال و آثار ميرزا عبدالقادر بيدل په ۹۸ مخ کې د مآثر الامراء د لومړي ټوک ۵۰ مخ په حواله سمباجي مرهټه ته د اکبر پناه وړل راغلي دي.

اورنګزېب عالمګیر ته په یوه خط کې لیکلي و[۸۵]:-

بدور شـاه عـالمـګیر غـازی
شده صابون فروشی صدر قاضی
بود جولاهه و بافـنده دمساز
که در بزم ملك ګشتند همراز

له صابون فروشه څخه مراد (ګوره څوک و؟ م. هـ)، خوله جولاهه و بافنده څخه مراد محمد سعید لاهوري (۱۰۸۷ هـ ق) شاعر دئ، چې په اول کې د مراد بخش مصاحب و. ډهلي ته چې راغی د داراشکوه له دربـاریـانو څخه سو. د داراشکوه تر مرګ وروسته د اورنګزېب عالمګیر له مقربینو څخه سو[۸۶].

د شهزاده محمداکبر د مرګ په باب د مآثر عالمګیري په ۲۱۷ – ۴۳۸ او ۴۷۸ مخونو کې لیکلي دي :-

په ۱۱۱۵ هـ ق کال اورنګزېب ته خبر راغی چې شهزاده محمداکبر په ایران کې ومړ. پلارېې ووېل :-

"د هندوستان لویه فتنه خاموشه سوه". زینب النسا بیګم (نـواب قدسیه) یې د ده په مرګ خبره کړله. د شهزاده محمداکبر زوی بلند اختر ته ماتمي خلات ورکړه سو او د تعزیت خلات یې مشر زوی نیکو سیر ته ورکړل سو. د شهزاده محمداکبر لوڼي رضیه النساء بېګمه، چې د شهزاده رفیع القدر مابنه وه، او زکیه النساء بېګم، چې د شهزاده خجسته اختر ماینه وه، اګرې ته ولېږلې سوې.

شهزاده محمداکبر د دل رس بانو بېګمي له نسه څخه د ۱۰۶۲ هـ ق

---

[۸۵] د عالمګیر او شهزاده محمداکبر تر منځ چې کوم مکتوبونه مخابره سوي دي، د هغو نقل د فرامین سلاطین له ۱۲۰ مخ څخه پیل سوی دئ.

[۸۶] سالنامۀ نیرنګ خیال ۱۴ مخ، ۱۹۳۰ ع.

کال د لوی اختر د میاشتې په دوولسمه زېږېدلی دئ او په ۱۱۱۵ هـ ق کال ومړ، مړی يې د امام رضا په زیارت (مشهد) کې ښخ دئ.

## گرګین خان :-

د ګرګین خان اصلي نو (وختنګ) په خته ګرجی او د ګرجستان و. سلطان حسین صفوي (۱۱۰۰ – ۱۱۳۵ ه ق) په ۱۱۱۴ هـ کال د کندهار په حکمرانۍ وټاکه، مګر دمخه تر هغه چي کندهار ته راسي، په ګرجستان کي د پارس پاچا ته یاغي سو. په پای کي ونیول سو، ځکه چي د اسلام دین یې ومانه، سلطان حسین یې تر ګناه ورتېر سو. د شهنواز خان له لقب او شلو زرو جګړنو سره یې کندهار ته د پښتنو د اېلولو له پاره راواستاوه، چي د مغولي واک مخه ونیسي. ګرګین ډېر خونخوار سړی و. کندهار ته چي راغی خپلو لښکرو ته یې امر وکا چي د پښتنو مالونه چور کړئ، وینې وبهوئ او ناموسونه یې بې پردې کړئ. ده غوښته چي د شدت له لاري پښتانه اېل کړي.

د بررسی های تاریخی د ۴۸ ګڼې په ... مخ کې لیکلي دي :-

د ګرجستان غرب ته توره بحیره او د ترکیې شمال شرقي څنډه واقع ده. ګرجستان له دوو شهزاده نشینیو څخه جوړ و. یوه ته یې کارتلي Kartleli او بل ته یې Kachti ویل کېدله. کارتلي یې په شمال غربي او کاختي یې په جنوب شرقي کي واقع و. د ګرجستان واکمن به کله له کارتلي ډلي او کله له کاختي ډلي څخه و. څه موده بګرتیان Bagratis د ګرجستان پاچهان وو.

د کارتلي ا وکاختي زیاتره خلک مسیحیان وو. د مسیحیانو مذهبي مشر په Mtskhota نومي ښار کي، چي له تفلیسه Tblis څخه شل میله لیري و، اوسیدی.

د ۱۰٦٦ ع = ۴۵۸ هجري په شاوخوا کي د څلورم باګرات پاچهي وه چي سلجوقیانو د ګرجستان جنوبي برخه ونیوله. دوه کاله پس یې د کارتلي سیمه هم پسې ونیوله. څلورم باګرات په ۱۰۷۲ ع = ۴۶۵ هـ کي ومړ او پر ځای یې زوی دوهم ګیورکي کښېناست.

د مغولو لښکر هم د ۶۱۸ هـ په شاوخوا کې قفقاز تـه ورسېدل او څلورم گیورگ George ماته وکړله. جلال الدین منگیرني هم پر قفقاز برید وکړ او هغه یې ونیوه. د ۶۲۸ هـ ق کال پای ته چې جلال الدین خوارزم شاه ومړ، مغولانو بیا پرقفقاز برید وکړ.

شاه اسماعیل صفوي په ۹۲۷ هـ کال پر گرجستان برید وکړ او ویې نیـو، مگـر بیا ښورښونه پېښ سول. لومړي شاه طهماسب (۹۳۰ - ۹۸۴ هـ ق) تر ۹۶۰ هـ ق پوري درې واره پرقفقاز برید وکړ.

د ۹۸۶ د صفري پر ۲۶ عثماني پوځونـو د مصطفی پاشا پـه مشري پر اېران برید وکړ. د اېران لښکرو ماتې وکړه. عثماني لښکر پر گرجستان ورغلـل او تر تفلیس او گوري پوري یې ونیو. په ۹۹۰ هـ ق گرجستان بیرتـه اېرانیـانو ونیو. په ۱۵۸۶ ع کال د گرجستان پاچا له روسانو څخه مرسته وغوښتله.

شاه عباس په ۱۰۲۳ هـ ق کال (۱۶۱۳ ع) پـر گرجستان حملـه وکړلـه د گرجستان د شهزاده گانو خوتې یې وکښلې او له مینډو سره یې په شېراز کـې بندیان کړل، د گرجستان ډېر اوسېدونکي یې خراسان، مازندران، گیلان تـه راوکوچول. دا پلا شاه عباس په گرجستان کې نهه میاشتې تیري کـړلې. په ۱۶۱۵ ع کال شاه عباس بیا پر گرجستان یرغل ورووړ او پـر گرجستانیانو یـې زیات ظلمونه وکړل. په ۱۶۱۸ ع کـال شاه عبـاس دریمـه پلا پـر گرجستان یرغل وروړ او تر یو لک زیات سپاهیان ورسره وو.

په ۱۶۲۴ ع کال بیا گرجیان پورته سول او شاه عباس بیـا پـر گرجستان برید وکړ. په دغو اغتشاشونو کې د روسیې د حکومت لاس و. په دغـو وختـو کې له گرجستانه څخه ډېر کورونه مسکو ته کډه سول.

په ۱۶۳۴ ع = ۱۰۴۴ هـ ق کال بیا گرجستان پورته سـو. په عبـاس نامـه کې میرزا وحید قزویني کښلي دي :-

په ۱۰۵۸ هـ ق چې دوهم شاه عباس پر کندهار برید کاوه، د گرجستان

د والي رستم خان خط راغی چي ماچورت؟ د کاخت مشر مغلوب سو.

د شاه سلیمان صفوي (۱۰۷۸ - ۱۱۰٦ هـ ق) په پاچهي کي یوولسم گیورگي (گرگین خان) چي دریم شهنواز خان یې لقب و، د گرجستان له حکومته معزول سوی و، مگر بیرته یې مقرر کړی و. شاه سلیمان چي ومړ د سلطان حسین په پاچهي کي په ۱۱۰۷ هـ ق = ۱٦۹۵ ع گیورگي له پطرکبیر سره د دوستانه روابطو د قیام په اغېزه پورته سو، خو د ایران طرفدارانو برید وکړ، دی گنج ته وتښتېد. د ده تربور خسروخان چي د ایران په دربار کي دېوان بېگي و، د ده شفاعت وکړ او بیرته د گرجستان والي مقرر سو[1]. خو څه موده پس یې له دې بېرې څخه اصفهان ته راوباله، نه چي بیا پورته سي، کرمان ته یې د والي په صفت واستاوه. بیا یې د کندهار ځبلو ته وگوماره.

د سخن مجلې په ۱۳۴٦ ثور گڼه کي لیکلي دي :-

په ۱۱۳۲ هـ ق کال لزکیانو د داغستان له جنوبي برخو څخه پر شېروان حمله وکړله. د شېروان حاکم حسینعلي خان مات سو. تر دې پس لزکیانو پر گرجستان برید وکړ او زیاته برخه یې ورانه کړله، په دغو وختو کي د شاه حسین صفوي له خوا وختانگ نومی (گرگین خان)، چي په دغو وختو کي تازه مسلمان سوی و، د گرجستان والي مقرر سو. وختانگ[2] شپېته زره گرجیان پر لزکیانو باندي د حملې له پاره برابر کړل خو د سلطان حسین په امر بیرته تفلیس ته ستون سو.

(وایي) د هندوستان د پاچا (اورنگزېب عالمگیر) له خوا یو خط شاه حسین ته د یوه ایلچي په لاس ورسېد او په هغه کي کښلي و چي کندهار

---

[1] انگل برت کمپفر لیکلي دي :- د گرگین یو ورور د اصفهان په دربار کي د یرغمل په توگه و.

[2] د دغه وختانگ مېرېزی ورور د رستم خان قوللرآقاسي د وزیر فتحعلي خان معتمد الدوله زوم و.

بیرته موړ ته راخوشي کړه.

صفوي دربار د دغه پیغام په اورېدلو سره د کندهار د استحکام په فکر کي سو او د یوه قوي حاکم په لټه کي سول. پای ته یې سلا دا سوه چي گرگین باید ور ولېږي. په دې کي دا فایده وه چي د گرجستان پوځ له گرگین سره کندهار ته تی او په گرجستان کي فتنه و فساد نه پېښېدی. گرگین د خپلي بې فکرۍ او ظلم په اثر پښتانه له ځانه مایوسه کړل او د شاه حسین پر ضد پورته سول. د گرگین خان پر ځای یې وراره خسروخان د گرجستان والي سو. گرگین چي کندهار ته راغی. کلا یې ټینگه کړه او د بصیرتنامې په قول "بر سریر ایالت پیوسته مشغول نای و نوش و از بادهٔ ناب مدهوش بود".

د گرگین خان په باب مسیحي سیاح[۳] کښلي دي :-

په ۱۱۱۴ هـ ق کال د گرجستان والي گرگین خان صفوي شاه حسین ته یاغي سو. شاه حسین د گرجستان مشرانو ته خطونه ولېږل او د گرگین پر ضد یې ولمسول او د هغه ملگري یې له بدو عواقبو وبېرول. د گنجه حاکم کلبعلي خان قاچاري یې له یوه لوی لښکر سره د ده ځبلو ته وگوماره. چي جنگ پېښ سو، د گرجستان مشرانو جنگ ونه کړ. گرگین یوازي پاته سو. وتښتېد د تفلیس غرو ته وخوت. کلبعلي تفلیس ونیو. گرگین د خپل وراره خسرو خان په شفاعت چي د شاه حسین په دربار کي دېوان بېگي و، پاچا ته پناه یووړه، توره په غاړه د پاچا دربار ته ورغی. پاچا وباخښه ...

د گرگین خان په وختو کي د لوی احمدشاه بابا نیکه دولت خان د ابدالي پښتنو مشر و. د کندهار د ښار صفا[۴] په کلاوو کي صفوي نائب

---

[۳] علامه رشاد مرحوم د مسیحي سیاح کروزینسکي یادانښتونه له بصیرتنامې یا عبرتنامې څخه هغه وخت اخیستي وو، چي دغه اثر د نن په شان پېژندل سوی نه و. اوس د دې اثر پارسي او پښتو ترجمې لا هم خپرې سوي دي (م. هوتک).

[۴] ښارصفا د کندهار کابل پر لویه لار د کندهار له ښاره څخه درې مزله لیري واقع ده.

الحکومه گرگین خان، دی، د نظرمحمد خان زوی او فقیر مریي سره ووژل، او د احمدشاه بابا پلار زمان خان يې، چي د دولت خان زوی و، کرمان ته فراره کړ. د ارغسان پښتانه له دغه جهته له گرگین خان سره وجنگېدله نو گرگین خان د دولت خان زوی رستم خان په مشرتوب ومانه او د احمدشاه بابا پلار زمان خان د یرغمل په توگه د گرگین په دربار کي و.

په بصیرت نامه کي د مجمع التواریخ[5] په حواله کښلي دي :-

گرگین خان چي کندهار ته ولاړ، ملازمان يې مطلق العنان وو، هر څه چي به يې زړه غوښتله هغه يې کول، ښځي به يې کورو ته بېولې. یوه ورځ د میرویس خان خور سهار وختي له حمامه کور ته روانه وه، یوه گرجي خپل کور ته د بېولو په هڅه کي سو. د گرجیانو او پښتنو تر منځ سخت جنگ پېښ سو.

## د میرویس خان په باب :-

په عبرتنامه کې کښلي دي :-

میرویس په پښتنو قبایلو کي د عزت څښتن و. پښتنو يې د زړه له کومي خبره منله. مدبر، عاقل او کار فهم، کاري او کارگذاره سړی و. د پښتنو اطاعت مغرور کړی و. له هندوستان (دربار) سره يې هم اړیکی درلود. ډېر مال و روپۍ يې درلودې. ډېر سفرونه يې د مال د گټلو له پاره کړي وو او زیات مال يې راټول کړی و.

گرگین خان د میرویس خان د ډېري هستۍ او مال په تمه سو. ورويې غوښت ویې نازاوه او ورته وې ویل :-

ته هوښیار سړی يې د ځينو کارو له پاره دي د اصفهان دربار ته لېږم.

---

[5] د مجمع التواریخ مولف د پښتنو حالات او د گرگین د وختو وقایع د گرگین د قورچي باشي له خولې کښلي دي.

میرویس هم خوښه کړه او د اصفهان دربار ته رهي سو. تر شا يې ګرګين د اصفهان پاچا ته وکښل :-

میرویس بیا راپرې نه ږدې. دا سړی د بغاوت خیال لري. میرویس چي اصفهان ته ورسېد، نظربند يې کړ.

میرویس هوښیار سړی و، د دربار نفاق او د امیرانو مخالفتونه يې ژر درک کړل. اعتمادالدوله ته يې د کشمیر شالونه او د هندوستان زري ټوکران په تحفه کي ورول. سبا د دېوان بېګي کور ته، چي د ګرګين ورور و، ولاړ او ډېر سوغاتونه يې وروړل. بله ورځ چي میرویس د دېوان بېګي کره ورغی هغه ورته په درنه سترګه وکتل او د خپل ورور په باب يې پوښتني ځني وکړلې. میرویس خان هوښیار سړی و، د ګرګين خان ستاينه يې ورته شروع کړه، وې ویله :-

ګرګين خان هوښیار مدبر سړی دئ. دوربینه فکر لري، رعیت پالونکی زړه ور او د پاچا صادق مریی، اصیل او کامل دئ. اوس چي د کندهار سیمه د ده په لاس کي ده، د هندوستان پاچا د ده له پرتمه د دغي سیمي (کندهار) د نیولو اراده په زړه کي نه سي جوړولای او ګرګين خان دغه ملک خورا آباد کړی دئ.

دېوان بېګي چي دا خبري واورېدلې د مجلس خلکو ته يې مخ ور وګرزاوه او ورته ويې ویل :-

"زما ورور عجب بېعقل دئ. که يې څو زره تومنه خرڅ کړي وای دغسي دوست او خیرخواه به يې نه وای پیدا کړی چي د ده په ستاينه کي دومره افراط وکړي. ده دغسي مخلص دوست له ځانه خپه او مایوس کړ او پاچا ته يې د ده بد وکښل". پسله دې يې يو لیک خپل ورور (ګرګين) ته وکيښ او د میرویس په باب يې دی ډېر ملامت کړ. څو ورځي پس میرویس د اعتمادالدوله کره ولاړ چي د دېوان بېګي مخالف و. هغه د کندهار په

باب پوښتنه ځني وکړه. ده د گرگين خان بدي يو په يو ورته وشمارلې او ورته ويې ويل که گرگين نور په کندهار کي پاته سي، لوی فساد به هلته جوړ سي. گرگين سهار مست او غرمه خمار وي او گرجيان تول په خپل هوا و هوس اخته دي. د خلکو پر مالو او ناموس لب نه کوي[٦]. هر څونه مالونه چي له خلکو اخلي هغه گرجستان ته لېږي ا وځان د يوه بل بغاوت له پاره چمتو کوي. اعتمادالدوله ورته وويل :-

پاچا يو کافر، جاهل او نادان نجس ناجنس چي لښکر هم د ده له جنسه دئ، د سرحد پر مسلمانانو والي مقرر کړی دئ. د پاچا دا کار له هوښياری، ليري دئ او د پاچا دا کار بې له پښېمانی، بله نتيجه نه لري.

په دې ډول ميرويس خان د دربار مخالف و موافق خپل کړه. ټولو پاچا ته د ده د هوښياری، پاکی، او صلاح شاهدی، ادا کړلې. پاچا وباخښه مگر بيا هم ميرويس اعتماد نه کاوه. له پاچا څخه يې د حج اجازه واخيستله او هلته يې د صفويانو پر ضد د جهاد فتوی د مکې او مدينې له علماوو څخه حاصله کړه. اصفهان ته چي راستون سو، ډېر سوغاتونه يې د دربار خلکو ته راوړل. د هغو زړونه يې خپل کړل. د عقل او پوهي خبري يې مشهوري سوې. د پاچا هم مينه ورسره پيدا سوه او د ملکي مصالحو په باب يې سلا ورسره کوله.

په دغه وخت کي د روسيې د ځار[٧] له خوا يو ايلچي ايران ته واستول سو، چي اسرائيل نومېد او د ارمنستان له اوسېدونکو څخه و. په سوداگری، انگلستان ته تللی و بيا له هغه ځايه جرمني او بيا روسيې ته راغلی و. دغه ايلچي د ايران پر سرحد ايران ته د دخول اجازه وغوښتله. د اصفهان دربار متحير و چي اجازه ورکړي کنه. ډېر درباريان يې له سرحده

---

[٦] لب نه کول = پروا نه ساتل، صرفه نه کول (م. هـ).

[٧] ځار = تزار – د روسيې واکمن (م. هـ).

څخه د جوابولو پر خوا وه. د فرانسې سفير هم په دې باب ډېر زيار ايستلی و.

پای ته ميرويس خان د مشورې له پاره د مشرانو له خوا دربار ته وغوښتل سو. ميرويس خان سلا ورکړه "که د روسيې سفير (ايلچي) راسي، څه تاوان نه لري او که له سرحده جواب سي د روسيې ښار به دا خپل سپکاوی وګڼي او له دې څخه به لويه فتنه ويښه سي. په تېره بيا په دې وخت کي چي ګرګين پاچا ته ياغي سوی وا و ورور يې زرمی خان د روسيې له ښار سره دئ. د روسيې پاچا به هغه په مخ کي کړي، ګرجستان ته به يې راولېږي. اېران په ګرجيو او ارمنيانو ډک دي. ګرجيان ګرده پر راتولېږي. د روسيې پاچا به مرسته ورکړي. ارمنيان يې هم مرسته کوي او له دې به لويه فتنه جوړه سي. په ارمنيانو کي تجاران ډېر دي په روپو او سرو(سرېو) د روسي پاچا مرسته کوي. ګرګين خان به په کندهار کي چي خبر سي، پښتانه به پر ځان راټول کړي. د هندوستان له پاچا څخه به مرسته واخلي او دا ملک به ونيسي". د ميرويس له سلا سره د روسيې ايلچي دربار ته راوغوښت سو.

ميرويس خان په خپل دغه تقرير کي خپل مطالب د پاچا حضور ته ورسول. پر پاچا هم د ده خبرو اغېزه وکړه. کندهار ته يې د تللو اجازه ورکړله او اعتمادالدوله خط ورکړ چي که ګرګين بد ورسره وکړي، دربار ته وليکه. دېوان بېګي خپل ورور ته وکښل چي ميرويس خان پر پاچا ګران دئ، نرمه رويه ورسره کوه.

ميرويس چي کندهار ته ورسېد، پښتانه يې پر ځان راټول کړل. ګرګين خان هم ښه رويه ورسره راواخيستله. د بلوڅو خانان هم راغلل. پښتنو او بلوڅو مشرانو د ګرګين پر ضد قرآن وکړ.

ميرويس د ګرګين دربار ته څو سړي په دادخواهي ولېږل او د بلوڅو له لاسه يې عرض وکړ چي زموږ رمې يې بېولې[8]. ګرګين د دوی د ځبلو په

---

[8] ميرويس خان دا پلان د بلوڅو مشرانو سره په مشوره ترلی و (م. ه).

نيت له ښاره راووت. پښتانه دوه ځايه سوه، دی يې په منځ کي ودرېدی. يو څه پښتانه د سلام په پلمه راغلل او پر ګرجيانو يې بريد وکړ. له دغو پوځو څخه يو سړی هم ژوندی نه سو پاته، چي د کندهار ښار ته ولاړ سي او د کلا ګرجي ساتونکي خبر کړي. ميرويس له پښتنو سره د کندهار پر کلا ور توی سول او ګرجيان يې ټول ووژل او کلا يې ټينګه کړله.

د ميرويس خان د بري نېټه په تاريخونو کي توپير لري :-

تاريخ خورشيد جهان ۱۱۲۰ هـ ق

صمصام الدوله ۱۱۲۰ هـ ق

تاريخ سلطانی ۱۱۲۱ هـ ق صفر

تاريخ افغانستان (کلنل مليسن) ۱۱۲۱ هـ ق = ۱۷۰۹ ع

ميرزا محمد خليل صفوي (مجمع التواريخ) ۱۱۲۲ هـ ق

پټه خزانه ۱۱۱۹ هـ ق د میاشتی ۲۹

خافي خان په منتخب اللباب کي ليکلي دي :-

په ۱۱۱۹ هـ ق کال په هندوستان کي د محمداعظم شاه مغول دربار ته د ګرګين د وژل کېدلو خبر ورسېده.

په عبرتنامه کې کښلي دي :-

ګرګين چي ووژه سو، ميرويس خان د هندوستان پاچا ته وکښل چي که ايران پر کندهار بريد وکړي، تاسي به زموږ مرسته کوئ. هغو هم د مرستي وعده ورکړه. له بلي خوا يې د ايران پاچا ته وکښل :-

"پښتانه د ګرګين خان له بدي ګوزارې څخه په عذاب سول ګرګين خان او ګرجيان يې ووژل. زه يې په زور کندهار ته بوتلم او بغاوت يې وکړ. که اوس پاچا دستي لښکر د مقابلې له پاره را ولېږي پښتانه يو ځای دي، نه چي د ايران لښکرو ته تاوان پېښ سي او يا که عاجز او مغلوب سي د کندهار ولايت د هندوستان پاچا ته وسپاري، دا به تر هغه لاګران کار وي. زما سلا دا

ده چي ژر لښکر راوانه ستول سي. زه به په کوار کوار دغه فتنه کواره کړم".

د دې لیک په ور رسېدلو د میرویس د بغاوت خبرونه اصفهان ته ورسېدل او د ده د ځبلو په هڅه کي سول.

د بصیرت نامې په (ز) مخ کې کښلي دي :-

د ګرګین خان تر وژلو وروسته میرویس څلور سوه طلاوي چي د هند د پاچا په نامه یې په کندهار کي ضرب کړلې له تحفو او عریضو سره د هندوستان پاچا او نورو امیرانو ته ولېږلې. د هندوستان پاچا یوه هندی توره، یوه چپنه چي پر حاشیو یې الماس وه، د کندهار ایالت له فرمانه سره میرویس ته ولېږل. دا مطلب کټ مټ خافي خان په منتخب اللباب کي لیکلی دئ او ذکاء الله له هغه ځایه اخیستی دئ. خو د تاریخ هندوستان د ۹ – ۱۰ ټوک په ۴۴ مخ کې لیکلي دي چي :-

د ۱۱۱۹ هـ ق کال په پای کي چي میرویس ګرګین وواژه د کندهار ښار یې ونیو، نو یې مصلحتاً خطبه د بهادر شاه بن اورنګزیب عالمګیر (۱۱۱۸ – ۱۱۲۴ هـ) په نامه ولوستله. طلایي کیلي او یوه عریضه یې بهادرشاه ته واستوله. بهادرشاه د وخت د تقاضا او مصلحت په ملاحظه خلات او فرمان پنځه زری منصب میرویس ته ولېږه او د کندهار د قلعه داری سند یې ورکړ. مګر پټ یې د ایران د سوداګرو په خوله د ایران پاچا سلطان حسین صفوي ته احوال ورواستاوه چي پښتنو چي کومه نمک حرامي ستا سره کړې ده، زه په هغه خوابدی یم او دا ډېر بد کار ګڼم. ته د دې بلا د رفعي او دفعي له پاره ډېر ژر لښکي راوغړه. زه یې هڅو مرسته نه کوم[9].

---

[9] د تاریخ هندوستان ۹ – ۱۰ ټوک په ٦٦ مخ کې لیکلي دي : بهادر شاه شیعه سوی و. امامیه علما یې راوغوښتل او د هغو په سلا یې غوښتل چي په اذان کي (علي ولي الله وصي رسول الله) داخل کاندي. د جامع مسجد خطیب او د احمد آباد خطیب یې د دې امر د تخلف په جرم ووژل.

## د هرات ابدالیان :-

عبدالله خان ابدالي سدوزی د ۱۱۲۹ هـ ق د روژې په شپږویشتمه د هرات په قلعهٔ اختیارالدین کي د هرات د پاچهی پر تخت کښېنوست[۱۰].

زوی یې اسدالله خان د فراه د نیولو له پاره له شاه محمود هوتک سره په جنګ کي په ۱۱۳۲ هـ ق (۱۷۱۹ ع) په دلارام کي وواژه سو. د هرات جرګې د اسدالله خان تر مرګ وروسته د هرات پاچهي د احمدشاه بابا پلار زمان خان ته ورکړه. زمان خان په ۱۱۳۵ هـ ق کال کي مړ سو او د عبدالله خان زوی د یوه کال له پاره په هرات کي پاچهي وکړله. پسله ده ذوالفقار خان د هرات پاچا سو. ذوالفقار خان په ۱۱۳۸ هـ ق کي کندهار ته ولاړ او هلته د هوتکیانو له خوا بندي سو. تر ذوالفقار خان وروسته د عبدالله خان زوی اله یار خان له ۱۱۳۸ څخه تر ۱۱۴۲ هـ ق پوري د هرات پاچهي وکړله. تر اله یار خان وروسته دوهم وار ذوالفقار خان د هرات واکمن سو. ذوالفقار خان یو کال پاچهي وکړه او بیرته اله یار خان د هرات پاچا سو.

## له اصفهانه څخه د عباس قلي خان د لښکرو تېښته :-

عباس قلي خان د محمد خان زوی د خسرو خان لمسی او د سلیمان خان بني اردلان کړوسی و. دغه کورنۍ د کردستان د خانانو کورنۍ ده. د

---

[۱۰] عبدالله خان د حیات سلطان زوی د خداداد سلطان (سلطان خودکي) لمسی د خضر خان کړوسی او د سدو خان کوسی و. د عبدالله خان نیکه او د زمان خان ور نیکه سره ورونه وو. د عبدالله خان پلار حیات سلطان د سرمست خان تر مرګ وروسته د خپل اولس خان سو. د سرمست خان زوی دولت خان چي ځوانۍ ته ورسېدی. خاني یې خپله کړله او حیات سلطان ملتان ته ځني کډه سو. عبدالله خان په ۱۱۱۹ هـ ق کال له ملتانه هرات ته ولاړ او هلته د اوډلو (ابدالیو) پښتنو خاني د ده سوه. (وګ: صولت افغاني ۳۳۹ مخ) د دغه سدوزي عبدالله خان لور د لوی احمدشاه بابا د زماني له دیوان بېګي عبدالله خان پوپلزي څخه وه. علم خان او امیر خان د دغي ښځي زامن دي.

صفویانو له خوا سلیمان خان له ۱۰۴۰ څخه تر ۱۰۶۲ هـ ق پوري، خسرو خان له ۱۰۹۱ هـ ق څخه تر ۱۰۹۳ هـ ق پوري او محمدخان له ۱۱۰۵ هـ ق څخه تر ۱۱۱۳ هـ ق پوري د کردستان والي و.

عباس قلي خان په ۱۱۲۲ هـ ق کال د سلطان حسین صفوي له خوا د کردستان والي وټاکه سو. په کندهار کي چي میرویس خان خپلواکي تر لاسه کړله. د فارس د پاچا سلطان حسین له خوا عباسقلي خان وګوماره سو چي د خپلو کردانو له لښکر سره د کندهار د بیا نیولو له پاره هغه لور ته وخوځي. خسرو خان په تاریخ بني اردلان ۷۹ مخ کي لیکلي دي :-

عباس قلي خان له خپلو لښکرو سره له کردستانه وخوځېد. اصفهان ته یې ځان ورساوه خو لښکر یې په اصفهان کي د کندهار له تګه څخه نهه وکړه او د ده بې اجازې بیرته کردستان ته ستانه سول. سلطان حسین پر عباس قلي خان په قهر سو د کردستان له حکومته یې ایسته کړ او د ده پر ځای یې علي قلي خان (د سهراب سلطان زوی د کلبعلي خان لمسی) د کردستان والي مقرر کړ.

د تاریخ بني اردلان په ۸۵ مخ کې لیکلي دي :-

دغه عباس قلي خان په ۱۱۳۲ هـ ق کي بیرته د کردستان والي وټاکه سو. په دغو کلو (۱۰۳۴ هـ) کي چي پښتانه پر فارس (اصفهان) برید کوي، عباس قلي خان بیا د پښتنو د مخنیوي له پاره ګومارل کېږي، د پښتنو او کردانو تر منځ جنګ پېښېږي. کردان ماتې کوي او په تېښته ځانونه کردستان ته رسوي. دغه تښتېدلي کردان چي کردستان ته ورسېدل. د دوی تېښته د کردستان پر خلکو درنه پرېوتله د څو تنو تښتېدلو پر سرویې پوړني واچول او د ښځو په دود یې د کردانو د ځوانانو په نامه کړل او په دې ډول یې تښتېدلي رسوا او سپک کړل.

## د هرات د صفوي حاکم يرغل :-

کله چي محمد خان[11] د هرات حاکم د صفوي دربار له خوا پـه ۱۰۲۲ هـ ق کي د استاځي په توګه ميرويس خان ته رالېږل سوی و، په کندهار کـي بندي کړل سو. نو صفوي دربار د هرات هغه حـاکم چـي د محمـد خـان پر ځای يې د هرات په حکومت نمانځلی و، وګوماره چـي پـر کنـدهار لښکـري وروبهوي. ميرويس خان هم له پنځو زرو پښتنو سپرو سره ورووت او د پـارس لښکري يې هرات ته وځغلولې.

اوازه وه چي صفويانو مير مهدي نومی قاصد د بلوچستان بروهيـو تـه هم ولېږه، چي د شا له خوا پر کندهار حملـه وکـړي او د ايرانـي لښکـرو مـلا وتړي[12].

## د محمد زمان خان يرغل :-

د ايران سپهسالار محمد زمان خان د يو لوی لښکر سره، چي ٦٠ زرو تـه رسېدی، له اصفهانه څخه د مشهد پر لار کندهار ته را رهي سو. مشهد ته چـي راورسېد څلوېښت زره تنه يې له خراسانه راټول کړل . هرات ته چي راغـی، زمان خان ځني ومړ او خسرو خان له ۳۸ زرو لښکرو سره کندهار ته پسي راتېر سو[13].

## د خسرو خان يرغل :-

صفوي حکومت وپوهېد چي په وړو لښکرکښيو د کنـدهار سـوبه نـه تـر

---

[11] دغه نوم په تاريخ افغانستان کـي کلنـل ميلسـون، سرجان ملکـم او سـيد جمـال الـدين محمدخافي خان ليکلی دئ.

[12] تاريخ سنده، ۲۵۲/۱ مخ.

[13] هماغه اثر، ۲۵۲/۱ - ۲۵۳ مخونه.

سره کېږي، نو يې په ۱۱۲۳ هـ ق کې ۳۱۲۰۰ تنه[۱۴] د ايران د وتلي جګړن او غښتلي مجهز زلمي د وژلي ګرګين خان د وراره خسرو خان، چې د ګرجستان حاکم او ډېر دماغداره سړی و، تر مشرتابه لاندې له ۱۲۰۰ ګرجيو توريالیو سره د ګرګين د وژلو د کسات کښلو په نامه کندهار ته راوخوځول. په دې پوځ کې د صفوي دربار معتمد عباس قلي بېګ[۱۵] هم د شپږو زرو تنو سره شامل و.

خسرو خان چې په مشهد کې واړول نو يې د هرات د ابدالي پښتنو له منلي مشر عبدالله خان سره، چې د سلطان خود کې سدوزي لمسی او د هراتي ابداليو په بلنه له ملتانه څخه د خپل زوی اسدالله سره هرات ته راغلی و، وليدل. دستي يې دی د صفوي حکومت له خوا د هرات په حکومت ونمانځه او د کندهار د نيولو له پاره يې مرستې ځنې وغوښتلې. عبدالله خان چې د څه ابداليو زلميو سره تر فراه ورسره راغی، د پښتني وجدان په حکم يې د خپلو پښتنو ورونو د ورانۍ له پاره د صفويانو مرسته پېغور وګڼله او د ناصري روضة الصفا په ليکنه يې په کومه پلمه ځان له خسرو خانه خلاص کړ او له خپل لښکر سره خپل اېل ته ستون سو.

له دې خوا کله چې د ايران لښکري له صفوي درباره راوکوچېدلې، ميرويس خان امر وکړ، چې کښتونه دې وریبل سي. شپه و ورځ يې زيار ويوست. څه غلې چې مونده کېدلې په کلا يې ننه ايستلې. د ښار زاړه، واړه او ښځې يې خورا ليرې کلاوو ته ولېږلې او ښاريې له جګړنو توريالیو او

---

[۱۴] په تاريخ سنده ۱/۲۵۲ کې ۳۸ زره عسکر کښلي دي.

[۱۵] په عبرت نامه کې کښلي دي له خسرو خان سره پر خپلو ګرجيو سربېره شپاړس زره تنه قزلباش هم د اصفهان له دربار څخه د عباس قلي بېګ په مشرۍ د کندهار نيولو ته وګومارل سول. د اصفهان دربار د دغه پوځ له پاره دوه سوه زره تومنه سکه وهلي طلاوي او شپېته زره تومنه سکه وهلي سپين زر د لښکرو د خرڅ له پاره ورکړل او د ۱۱۲۴ هـ ق کال د مشهد له لارې کندهار ته واستول سوه. په بصيرت نامه کې هم دغه مطلب سته.

خوراکي موادو وسيخه. د سپرو لويه برخه يې د داود خان هوتک تر مشرتابه لاندي فراه ته وخوځوله. داود خان د ګلستان، فراه او سيستان له پښتنو سره وليدل او د نورزو، بارګزو او ساګزو ډېر زلمي يې د ځان مله کړل. ميرويس خان پخپله له پاتو لښکرو سره د هلمند پر غاړه د بست په کنډوالو کې د داود خان شا ته پروت و. د خسرو خان لښکري چې له فراه راوخوځېدلې، داودخان د خپل پوځ سره، چې د ايراني پوځ لسمه برخه يې لا نه سواى پوره کولاى، پر ورغې مګر د توريالیو پښتنو وينو او خولو ونه کړاى سواى چې د خسرو د لښکرو مخه ونيسي. د هلمند پر غاړو بيا پښتانه او ايراني سره ونښتل خو آخر پښتانه توريالي د ميرويس په امر د کندهار خوا ته را تر شا سول.

## د کندهار محاصره :-

د کندهار ښار د ايراني لښکرو له خوا کلابند سو. خو پخپله ميرويس تر محاصرې دباندي پاته سو او د کندهار له جنوبي دډې ځخه يې د بلوڅو، ترينو او نورو پښتني قبيلو لښکري د خسرو خان پر پوځ راوبهولې او د ازوغ لارې يې کورټ پر وترلې او د ښار ساتونکو ته يې پيغام واستاوه :-

"که زموږ له بې ننګۍ غليم برى وموند، نو موږ به يو هم ژوندى پرې نه ږدي. که په مېړانه ودرېږو يا به له ښه نامه سره ومرو او يا به په جګه غاړه بريالي کېږو".

د ښار د ساتونکو ټينګار، د ميرويس حملو، د ازوغ لږون او د ژمي ساړو[١٦] د صفوي لښکرو په اتحاد او اراده کي درزونه واچول. سلا پر دې سوه چې بيرته پارس ته ستانه سي، مګر پارسيانو غوښته له يوې لارې او ګرجيانو غوښته له بلي لاري ولاړ سي. په دغه ترڅ کي د صفوي دربار معتمد

---

(١٦) په عبرتنامه کې کښلي دي : د ايران لښکري د مني په فصل کي کندهار ته راورسېدلې.

عباس قلي بېګ د پښتنو خوا ته واوښت او د صفوي پوځ په تزلزل يې میرویس خان خبر کړ[۱۷].

میرویس خان چې غلیم ترهور ولید د ۱۱۲۳ هـ ق کال د روژې پر اوومه یې اته سوه اوښان په حربي لوازمو[۱۸] بار کړل او له شپاړسو زرو پښتنو زلمیانو سره پر غلیم ور توی سول. ګرجي خسرو خان یې وواژه او د صفوي پوځ له ۳۱۲۰۰ تنو څخه د سرجان مالکم په قول فقط اوو سوو تنو د پښتنو له تورو څخه ځانونه د نجات غوري ته ورسول[۱۹]. د صفوي پوځ د درنو تجهیزاتو ولجې او د دې لويي سوبي ویاړ د پښتنو مېړنو زړونه یو په دوه کړل.

د خسرو د جنګ په باب په بصیرتنامه کي عجب څه کښلي دي :-

د ایران لښکرو د کندهار په څلور فرسخي کي د سرمست؟ رود پر غاړه

---

[۱۷] د عباس قلي خان بن محمد خان په باب د خسرو بن محمد بني اردلان د تاریخ په ۷۹ مخ کې لیکلي دي : میرویس خان د شرقي دروازې له لاري په دغه شپه د کندهار په کلا ننوت د ښار څه شیعه یې ووژل او څه یې له ښاره وایستل. کلا یې ټینګه کړه. تر دوو میاشتو کلابندۍ وروسته یې شپږ زره لښکر د شپې تر ښار دباندي وایستل. بیرته یې عباس قلي ته وکښل پښتانه د ګرجیانو اطاعت نه مني ته خسرو خان د ښار له شاوخوا څخه یو دوه فرسخه لیري کړه. زه به د ښار دروازې تا ته خلاصي کړم او ښار به در وسپارم او ستاسي سره به اصفهان ته و شاه ته ولاړ سم. عباس قلي خان ته چي دا خط ورسېد، ګرجي خان ته یې ورښکاره کړ. د میرویس د تېر ایستلو له پاره د ښار له شاوخوا څخه د ګرجي خان لښکرو د ایران خوا ته حرکت وکړ. په دغه وخت کي د میرویس خان له ښاره ورووت. د کښې لښکرو او د بلوڅو خان هم پر راودانګل. جنګ پېښ سو او تر ماښامه یې دوام وکړ. ماښام ته د ایران پوځ ماته وکړه.

په عبرتنامه کې کښلي دي : قزلباشو کلابندي پرېښووله. ګرجی خسرو خان هم له شپږو زرو ګرجیانو سره مخ پر ایران روان سو او عباس قلي له اردو څخه جلا سو د کندهار ښار ته ولاړ.

[۱۸] په عبرتنامه کې دغه حربي لوازم ګرد ګرد زنبورک توپونه کښلي دي.

[۱۹] په عبرتنامه کې کښلي دي : فقط پنځو سوو ګرجیانو نجات وموند.

واړول. میرویس خان له خپلو پښتنو لښکرو سره د رود پر هغه بله غاړه سنگر ونیو. د شپې میرویس خبر سو، چې هزاره د اله یار خان په مشرۍ د اېرانیانو مله سوي دي او غواړي ستا پر لښکر شبخون راوړي او ستا تر تباهۍ وروسته د اېرانیانو مله سي. میرویس اوس له دوو دښمنانو سره مخامخ سو. یو داخلي بل خارجي. د داخلي دښمنانو دفعه یې مهمه وبلله. سپور سو او پښتانه پوځونه یې د هزاره وو د لښکرو خوا ته وخوځول. دا خبر چې خسرو خان ته ورسېد، اېرانی لښکري یې تر رود راپوري ایستلې او د میرویس پر پوځونو یې برید وکړ. د میرویس پوځونه له دوو خواوو تر تهدید لاندي راغلل، ماته یې وکړه او د اېران پوځ د کندهار ښار خوا ته راغی او د کلا له ساتونکو سره یې جنگ شروع کړ. د کندهار ښار شیعیان چې خبر سول د ښار له خوا یې پر پښتنو ساتونکو حمله وکړه. یوه دروازه یې خلاصه کړه او د اېران پوځو ته یې ښار ته د ننوتلو بلنه ورکړه. اېراني عسکر په دې فکر چې که دا فتحه دومره آسانه سي، پاچا به خپلې راکړې روپۍ بېرته راخخه واخلي او دا فتحه به زموږ د ډېري نېکنامۍ سبب نه سي. وې ویل څو ورځې به د کلابندۍ په نامه د ښار په شاوخوا کې یو، بیا به نو ښار ته ننوزو. که میرویس راباندي راسي هغه به هم ونیسو، اصفهان ته به یې بندي بوزو.

په عبرتنامه کې (بیا) کښلي دي:-

میرویس خان اووه کاله ژوندی و. هر کال به د پارسیانو لښکري د کندهار د نیولو په نیامت ورتلې او په ماتي به پارس ته راستنېدلې.

د مآثر الامراء په ۵۸۰/۳ مخ کې کښلي دي:-

په لندن کي پر میرویس باندي یو کتاب کښل سوی دئ چې د The Persian Cromwell په نامه په ۱۷۴۲ ع (۱۱۵۶ هـ ق) کي خپور سوی دئ. له دغه کتابه معلومېږي چې میرویس په ۱۶۸۷ ع (۱۰۹۹ هـ ق) زوکړی دئ. اولیور کروموېل (۱۵۹۹ – ۱۶۵۸ ع) په انگلستان کي د ۱۷ قرن د بورژوازي

## د سلطان حسین صفوي د دربار وضعه :-

د سلطان حسین صفوي دربار ته د پترکبیر نماینده Valinsky د تجارتي قرارداد له پاره په ... کال کي راغی. ده د سلطان حسین په باب لیکلي دي :-

"په ایران کي داسي څوک پاچا دئ چي پر رعیتو یې حکم نه چلیږي. زه باور لرم چي داسي بېعقل به په پاچهانو کي څه، چي په عوامو کي هم نه وي. دی پخپله هیڅ کار نه کوي. د مملکت ټول کارونه یې خپل وزیر فتح علي خان داغستاني ته سپارلي دي. فتحعلي خان چي هر څه وایي، پاچا هغه مني".

فتحعلي خان سني و، د سلطان حسین دوه خورا ورتېر ندیمان محمدحسین ملاباشي[۲۱] او رحیم خان حکیم باشي د ده دښمنان وو. دغه دوه تنه د ۱۱۳۳ هـ ق کال د صفري په اوومه شپه په تهران کي د پاچا شبستان ته ورغلل او ده ته یې په دروا‌غو وویل چي فتحعلي خان ستا د نیولو خیال لري او د دغه کار له پاره د کردانو یو درې زرې پوځ گومارلی دئ. بېعقل پاچا د فتحعلي خان د نیولو له پاره قورچي باشي محمدقلي خان شاملو وگوماره. فتحعلي خان پخپل حرمسرای کي په خوارِه خوب

---

[۲۰] علامه رشاد رحمة الله علیه د میرویس په باب د تاریخ مرصع حواله هم ورکړې ده او ځای یې تش پرې ایښی دئ، (م.هوتک).

[۲۱] حسین ملاباشي د باقر مجلسي لمسی و. فتحعلي خان د داغستان د پاچهانو له کورنی څخه و. د ده یو وراره د ارمنستان د پایتخت ایروان والي و. د فتحعلي خان پلار د شاه سلیمان صفوي په امر ووژل سو. فتحعلي خان چې بندي کاوه، نهه لکه تومنه دارایي یې وه. د ده یو بل وراره د لزکیانو سره په جنگ کي وژل سوی دئ.

بیده و، چي د محمد قلي خان لښکري ورغلې. دی یې راویوست او هلته یې ځای پر ځای ړوند کړ او بیا یې شکنجې ورکړلې چي خپلې خزانې وښیي.

تر دې وروسته ملاباشي او حکیم باشي له پاچا څخه د فتحعلي خان د وراره لطف علیخان د نیولو امر واخیست. د فتحعلي خان او لطفعلي خان هستي او جایدادونه یې تول ضبط کړل. لطفعلي خان یې له شهزاده څخه د سلا او مشورې په پلمه تهران ته ور وغوښت. دی د خپل اکا (تره) په بخوله (فاجعه) نه و خبر. تهران ته چي ورغی، بندي یې کړ او اصفهان ته یې ولېږه. تر دې دمخه چي د اصفهان په ښاریې ننه باسي د ښځو کالي یې په واغوستل. پر غوایي یې چپه سپور کړ او د اصفهان اراذل او اوباش یې مخي ته راووتل او په ده یې ملنډې وهلې، پر خندل یې تر څو چي یې زندان ته ورساوه.

فتحعلي خان یې د پاچا په حکم د شیراز یوې کلا ته واستاوه. اصفهان چي پښتنو ونیوی، دوه کال پس هلته فتحعلي خان مړ سو[۳۲].

د سلطان حسین صفوي په باب د یغما د ۱۳۵۵ کال په لومړۍ ګڼه ۳۴ مخ کې کښلي دي :-

سلطان حسین په ټوله پاچهي کي سور لباس وانه غوست. دی له وینو بیرېدی او چا ته یې اجازه نه ورکوله د ده په مخ کي یو مرغه ووژني.

## د میرویس خان وصیت :-

د عبرتنامې په ... مخ کې لیکلي دي :-

میرویس خان چي مړ کېدی پښتنو ته یې دا وصیت وکړ :-

---

[۳۲] دغه وزیر فتحعلي خان معتمدالدوله هغه څوک دئ چي میرویس خان یې په اصفهان کي له زندانه خوشي کړ، د ده سیله یې وکړه او بیا یې کندهار ته واستاوه.

"اولاً امور شما را بحق تعالی سپردم باید که در جهاد دشمنان بذل و جهد خود را بنمائید و ثانیاً در هر حال همت خود را بلند دارید و باهم متفق باشید بروافض سر فرود میارید. در دفع مضرات آنها جهد کنید و جمله اهالی عجم از نفاق و شقاق خالی نیستند. دولت شان مشرف بانهدام است و بکثرت و حشمت کاذبانهٔ شان وحشت و دهشت (برشما) طاری نشود و شما باتفاق قلب و اتحاد درون در حرکت باشید که متوکلاً علی اله بر آنها غالب و اصفهان را خواهید گرفت".

## د میرویس زامن :-

په عبرتنامه کې کښلي دي:-

میرویس درې زامن درلودل. مشر یې محمود و. پلار چې یې مړ کېدی، دی اتلس کلن و. پر میرویس تر ټولو زامنو گران و. په ټولو جنگوکې له پلاره سره مل و. میرویس چې مړ کېدی خپل ورور عبدالله ؟ (عبدالعزیز ته یې د محمود د خاصي پاملرنې او روزنې سپارښت وکړ[۲۳]. په دې حساب نومحمود باید په ۱۱۰۹ هـ ق کال زېږېدلی وي.

دوهم زوی یې حسین (شاه حسین) و[۲۴]. او دریم زوی ؟ یې د عبرتنامې په قول په ۱۱۳۵ هـ ق کال د اصفهان په جنگ کې د قزلباشو په

---

[۲۳] د سخن مجلې د ۱۳۴۶ کال د ثور په گڼه کې اسماعیل دولتشاهي لیکلي دي: د میرویس جانشین عبدالعزیز نومېږي. چا چې د ده نوم عبدالله کښلی دئ، تېروتنه ده. ده اتلس میاشتې پاچهي وکړله. د سلطان حسین اطاعت یې ومانه او په دغه گناه د میرویس د زوی محمود له خوا وواژه سو.

[۲۴] په عبرتنامه کې شاه حسین تر شاه محمود مشر ښوول سوی دئ، او کښلي یې دي: شاه محمود چې لېونی سو، پښتنو غوښتل د ده مشر ورور له کندهاره راوبولي (د عبرتنامې دغه قول نورو مورخینو تایید کړی نه دئ م. هوتک).

لاس کښېووت او ويې واژه[۲۵].

## د میرویس د سکې سجع :-

سکه زد هم خطبه بر دارالقرار قندهار
قاتل سالار گرجی میرویس نامدار[۲۶]

## له اېرانیانو سره د عبدالعزیز روغه :-

په عبرتنامه کې کښلي دي :-

د میرویس تر مرگ وروسته عبدالعزیز[۲۷] پښتانه پر ځان راټول کړل او ورته ويې ويل موږ باید له قزلباشو سره روغه وکړو، د دوی سړی (حاکم) به په خپل منځ کي نه پرېږدو، هر کال به مالیه ټولوو، پاچهي خزانې ته به يې لېږو. له جنگو او جگړو به فارغه ناست يو.

د ده دا خبره د پښتنو نه سوه خوښه او د ده مخالفت يې وکړ. عبدالعزیز پټ دغسي يو مکتوب شاه حسین صفوي ته واستاوه، مگر دا خط د میرویس د زوی محمود په لاس کښېووت. توره يې وکښله د عبدالعزیز کره ولاړ او هغه يې د خوب په حال کي وواژه. د عبدالعزیز خط يې پښتنو

---

[۲۵] د عبرتنامې دغه قول هم د تامل وړ دئ. د میرویس د دریم زوی يادونه ځای ځای سوې ده خو د وثوق پله يې سپکه ده (م. هوټک).

[۲۶] هاتف عبدالرحیم د خلیل الله خلیلي (افغان سفیر په عراق کي) له خولې وايي :-
د بغداد په متحف کي د میرویس د سرو زرو يوه درنه سکه سته، چي پورتنی بيت پر کښلی دئ. دغه مطلب د آریانا مجلې په ... گڼه کي خپور سوی دئ.
د مانسویچ Dumansuvich پولینډی په افغانستان کي د پولینډ سفیر او څو کاله د ادبیاتو په پوهنځي کي مدرس و. له ده څخه د میرویس د زوی شاه محمود هوتک د حملې يوه روزنامچه وه. هاتف وايي دا کتاب په یوناني ژبه و او تقریباً شپږ اووه سانتی پنډ و.

[۲۷] په عبرتنامه کي دا نوم په غلطی سره عبدالله لیکل سوی دئ.

مشرانو ته ښکاره کړ، هغه هم د محمود په دغه کار خوشاله سول او دی یې
خپل پاچا وټاکه.

## د صفي قلي خان جنګ :-

په عبرتنامه او بصیرتنامه کې کښلي دي :-

صفي قلیخان یو وخت د اصفهان والي و. ډېر د کار او هوښیار سړی و
او د صفوي دربار خلک پر دوو برخو ویشل سوي وو، ځکه نو صفي قلي خان
ډېر وخت بېکاره و او په کور کې ناست و. د محمود په زمانه کې د شاه
حسین صفوي له خوا د کندهار نائب الحکومه وټاکل سو مګر هر څومره
چې د دربار له خوا اصرار وسو، ده ونه کول. پای ته یې د ده زوی ته چې
اوه لس کلن و، د پاچا له خوا مرصع تاج، خلعت او د سرداری خطاب ورکړه
سو او په دې توګه یې صفي قلیخان د کندهار په نائب الحکومګی راضي
کړ، ځکه چې دغه زوی پر صفي قلیخان ډېر ګران و، د ده تر خبره نه سوای
تېرېدلای.

په دې توګه صفي قلیخان له شپاړس زرو قزلباشو سره، د زوی په
ملګري مخ پر کندهار راوخوځېد. هزاره وو د دغه پوځ د حرکت خبر شاه
محمود ته ورکړ او شاه محمود دستي یوه دسته پوځ د صفي قلیخان د
مخنیوي له پاره ور ولېږه. په دغه وخت کې د صفي قلیخان اوه لس کلن
زوی د ښکار له پاره صحرا ته تللی و. پښتانه پر پېښ سول د صفي قلیخان
زوی یې ونیو او ویې واژه. پلار ته چې یې دا خبر ورسېد، عقل یې له سره
کوچ وکړ، دستي یې د جنګ نغاره ووهله، صفونه وتړل سوه، صفي قلیخان
په مقدمه کې ودرېدی. په دغه وخت کې میر اسدالله هم له خپل پوځ سره
د پښتنو په مرسته راورسېد. جنګ ونښت او په لومړی حمله کې صفي
قلیخان وواژه سو. د قزلباشو لښکرو ماته وکړه لړو کسانو، چې په تېښته کې

ګړندي وو، نجات وموند، نور د پښتنو له لاسه ووژل سول. وسلې او حربي لوازم د پښتنو په لاس ورغلل.

## د لطف علي خان لکزي داغستاني مقرر کېدل :-

د صفي قلي خان د مرګ او د قزلباشو د تباهی خبر چي د اصفهان دربار ته ورسېد، پاچا حسین صفوي ډېر خوابدی سو. دا ځلا یې د معتمدالدوله فتحعلي خان له خپلوانو[۲۸] څخه یو سړی د کندهاريانو سره د جنګ له پاره په سرلښکری وټاکه. دا سړی لطف عليخان نومېد او ډېر بدو سړی و. لطف عليخان لکزي کندهار ته د تللو تياري نيوله چي د مسقط او امام له خوا څخه پر بندرعباس باندي د حملې اوازه اصفهان ته راورسېدله. لطف عليخان هغې خوا ته واستول سو او د کندهار تګ پاته سو.

## د هرات حمله :-

په بصيرتنامه کې کښلي دي :-

محمود چي پر ایران باندي د حملې نیت وکړ، تر ټولو دمخه یې د هرات او بیا د کرمان د نیولو په نیت کې و. په دغه وخت کي د هرات صفوي حاکم ابراهیم خان شېرازی و. د محمود لښکر چي د هرات شاوخوا ته ورسېد، ابراهیم خان یو سړی د اصفهان دربار ته د مرستي له پاره ولېږه. د محمود پوځونو چي به هر ځای اړول، هلته به یې یو خندق د پوځ پر شاوخوا راوګرزاوه. د هرات صفوي حکامو دا د ده د بېري او ضعف نخښې وبللې او د مدافعې له پاره يې زړه ښه کړ.

د محمود لښکر د ۱۱۳۴ هـ ق کال د ربیع الاول په نهمه د هرات ښار

---

[۲۸] د سخن مجلې د ۱۳۳۶ د ثور په ګڼه کې اسماعیل دولتشاهي کښلي دي :- لطف عليخان د شاه حسین صفوي د وزير فتحعلي خان داغستاني وراره و.

شاوخوا ته ورسېد. دوې ورځې يې لښکر هوسا کړ دريمه ورځ يې لښکر د جنګ له پاره صفونه وتړل. اله يار خان او مصطفي قلي خان يې په ميمنه او ميسره کې ودرول. پخپله د لښکر په منځ کې ودرېد. د هرات قزلباشو هم لښکر تعبيه کړ، چې جنګ ونښت قزلباشو تېښته غوره کړه. پښتانه هم جلورېزه په پسې وه او وژل يې. قزلباش د هرات په خندق کې دومره د ځان له بېرې يو پر بل کوته سول چې خندق په ډک سو.

يلان عجم خفته در خون و خاك

زشمشير افغان جگر چاك چاك

په هغه ورځ محمود هرات ونيو. قزلباش يې ټول تر تيغ تېر کړل او څو ورځې پس يې د کرمان د نيولو نيت وکړ.

## د کرمان جنګ :-

(پر کرمان باندل لومړی حمله)

د وزير فتحعلي خان وراره لطف علي خان د فارس حاکم [۲۹] چې په بندرعباس کې و شاه محمود له خپلو لښکرو سره په ژمي پر کرمان بريد وکړ او هغه يې ونيو. لطف عليخان چې دا خبر واورېد له بندرعباسه څخه يې د کرمان په لور قزلباش پوځونه راوخوځول. کرمان ته چې د قزلباشو لښکر راورسېد، دستي جنګ ونښت. قزلباشو برې ومونده او محمود و پښتانه

---

[۲۹] دغه لطف عليخان د پاچا شاه حسين په امر په شېراز کې ونيول سو او په اصفهان کې يې زنداني کړ. اصفهان چې پښتنو کلابند کړ، شاه حسين له بنده راويوست او له پښتنو سره يې جنګ ته وګوماره، مګر لطف عليخان دې کار ته زړه ښه نه کړ. شاه محمود چې اصفهان ونيو لطفعلي خان يې ونازاوه مګر لطفعلي خان شاه طهماسب (د شاه حسين زوی) ته وتښتېد. هلته د اصفهان ارمنيانو لطفعلي خان په لاس کښې يوست او شاه محمود ته يې بندي راووست. د شاه محمود په امر يې څلور څنګونه پرې سول او پر څلورو لارو وځړول سول.

کندهار ته ستانه سول[30].

په رسالهٔ افغانيه کې کښلي دي :-

په دغه وخت کې د کرمان صفوي حاکم، چې هم محمود نومېدی، د پښتنو په مقابل کې کلابند سو. دوه درې جنګه وسول خو کلا يې ونه نيوله. ځکه چې ژمی و، د اصفهان مرسته هم کرمان ته نه راورسېدله. د کرمان حاکم د روغې درخواست محمود افغان ته وکړ او ورته وېې کښل که تا يزد ونيو، زه ستا حکم ته غاړه ږدم. ايلچيان چې د شاه محمود دربار ته راغلل محمود ونازول، خلاتونه يې ورکړه او وعده يې ورکړه چې د کرمان کلابندي پرېږدي اصفهان يا يزد ته به ځي. مګر د کرمان خطيب فتح اله په پټه حال ورته راولېږه چې د کرمان د قزلباشو ازوغ خلاص سوی دئ، له پښتنو څخه ډېر بېرېدلي دي، عاجزه او ضعيف دي. چې کلابندي پرې نه ږدې. مګر شاه محمود په لسمه ورځ لښکر د کرمان د کلا له شاوخوا څخه وکوچاوه. کرمانيو چې د پښتنو کوچ وليد د جنګ او غنيمت په هيله له ښاره پسي راووتل. شاه محمود چې د کرمانيو په دغه جرئت او بې وعده ګی خبر سو مخ يې پر راواړاوه، جنګ ونښت ډېر کرماني يې ووژل د کرمان حاکم محمود يې په لاس بندي سو. پاته قزلباشو د اصفهان او يزد خوا ته تېښته غوره کړه. شاه محمود د کرمان ښار ونيو درې ساعته قتل عام و. وروسته يې د الامان جار وواهه، چې جار وواه سو بيا نو هيڅ پښتانه د کرمانيانو خوا ته په بده ونه کتل.

---

[30] د سخن مجلې د ۱۳۴٦ کال د ثور په ګڼه کې کښلي دي :

اروپايي مورخينو کښلي دي چې لطف عليخان د محمود هوتک مدافعې ته وګوماره سو، محمود ته يې داسي ماته ورکړه چې په تېښته کندهار ته ولاړ مګر د اېراني مورخينو په آثارو کې دا خبره نسته. د سخن مجلې په همدې ګڼه کې ليکلي دي :-

پر کرمان باندي د محمود لومړۍ او دوهمي حملې تر منځ دوه کاله زماني فاصله وه.

سبا يې د محمود افغان په حکم په ميدان کې د کرمان حاکم، ملا فتح اله خطيب؟ او څو تنو نورو قزلباشو مشرانو نسونه څيري کړل. پسله دې يې نرخونه اداره کړل او له کلانترانو څخه يې التزامونه واخيستل چې تر ټاکلو بيو به شيان زيات نه خرڅوي. حاکم، داروغه او کلانتريو محتسب يې مقرره کړل. د ښار برجان يې جوړ کړل او د کرمان د نيولو زېرى يې هرات او کندهار ته ولېږل.

د دغه جنګ په باب يوه ايراني شاعر کښلي وه :-

نهان گشت از سختی آن مصاف
مروت چو سیمرغ در کوه قاف
سر نیزهٔ بر دلان سینه سوز
شده چاك شمشیرها تیر دوز
اجل آمده زآسمان بی گمان
کمین کرده در گوشه های کمان
پذیرفته بنیاد مردم خلل
کشاده شده دستگاه اجل

څه وخت چې شاه محمود په کرمان کې ستړيا واچوله، بيا نو د يزد او اصفهان د سوبې په نيت روان سو.

## د يزد جنګ :-

مسيحي سياح وايي :-

پښتانه له کرمانه اصفهان ته راغلل. مګر د رسالهٔ افغان مولف ميرزا سليمان وايي چې اول يې يزد ونيو او بيا اصفهان ته راغلل. ميرزا سليمان وايي د کرمان تر نيولو وروسته محمود افغان د يزد نيولو ته لښکر وخوځاوه د يزد حاکم ابوالفتح خان له اصفهانه مرسته وغوښتله او پخپله يې د جنګ

تياری ونيو. له اصفهانه محمدعليخان بختياری له پنځلسو زرو بختيارانو سره د يزد په مرسته راولېږل سو. درې ورځي پس محمدعليخان د ابوالفتح په مرسته، چي تر ښار دباندي يې د پښتنو په مقابل کي اړولي و، ورسېدی. د ۱۱۳۴ هـ ق کال د رجب په ۲۲ د شنبې په ورځ جنګ ونښت. په جنګ کي محمدعليخان له آسه ولوېد. عليمردان خان بلوڅ په دغه وخت کي وليد سر يې څني پرې کړ او محمود افغان ته يې ور ووړ. او لښکرو يې ماته وکړه. که څه هم ابوالفتح لا ميدان نه و پرې ايښی. يوه ګولۍ يې پر سينه وموښتله. ده هُمّ له ژونده لاس واخيست او لښکر يې د يزد ښار ته وتښتېد. پښتانه هم ساه نيولي په پسې وو، د کلا پر برجانو ور وختل او درې ساعته يې په يزد کي قتل عام وکړ. مګر چي ښاريې ونيو بيا يې نو هيڅ سړی ونه واژه. "بعد از فتح قلعه متعرض احدی از احاد الناس نشدند".

د دغه جنګ په باب يوه ايراني شاعر ويلي وه :-

در دست هانهاد فلك خامهء اجل
بر شخص هادريده جهان جامۀ بقا
سرها سركشان همه بر صحن معركه
چون گندنا درووده بتيغ همچو گندنا

په بصيرتنامه کي يې د دغه جنګ د تښتېدونکو په باب کښلي دي :-

همی شدند به بيچاره هزيمتيان
شكسته پشت و گرفته گريز را هنجار
بجای دل بشكم اندرون همه پيكان
بجای موی زاندامهای برون سوفار

## د شاه محمود نظم او اداره :-

د رسالۀ افغانيه مولف کښلي دي :-

د شاه محمود امر نهایت مطاع و[۳۱]، هیچا هغه نه سو ماتولای. وایي
یزد تر نیولو وروسته چې د الامان جار وواهه سو. رضا قلي خان د پښتني
ښکرو مشر، چې د چور له پاره یوه کور ته ننوت هلته یې په چور کې د دغه
کور یوه ډېره ښایسته پېغله هم له ځانه سره بوتله. څو ورځې پس د شاه
محمود له خوا جار وواهه سو، پر هر چا چې د پښتنو پوځ له خوا ظلم سوی
دئ، شاه محمود ته د عرض له پاره ورتللای سي. د هغې نجلۍ پلار ورغی
و عرض یې وکړ چې د الامان تر جار وروسته رضاقلي خان زما لور بوتله.
شاه محمود چې دا واورېدل ډېر په قهر سو. رضاقلي خان یې راوغوښت
اول یې درجولیت آله ورپرې کړه بیا یې نو په میدان کې موږې په نس کې
ورننګ واهه او آسان یې پر وځغلول. د رضا قلي خان ټول مال یې د نجلۍ
پلار ته ورو باخښنه او نجلۍ یې یوه سرکرده ته واده کړه.

مسیحي سیاح کښلي دي :-

پښتنو چې د اصفهان په جنوب کې جلفا ونیوله. د بډایانو کورونه یې
ولوټل، مګر په فقیرانو او کلیساوو یې هیڅ غرض ونه کړ او یو ارمنی یې هم
ونه واژه.

## د نائین جنګ :-

د اصفهان دربار چې د شاه محمود په لاس د یزد په نیولو خبر سو، د
نائین حاکم میرزا محمد خان ته یې وکښل چې که پښتانه اصفهان ته راتلل،
د نائین غرونه ورته ونیسه چې درخخه راتېر نه سي.

میرزا محمد خان هم درې څلور زره پلي و سپاره برابر کړل او د شاه
محمود د لښکرو مخه یې ونیوله. جنګ ونښت. میرزا محمد خان وواژه سو او

---

[۳۱] په غیاث اللغات کې کښلي دي : مطاع – د میم په پېښ، هغه څوک چې خلکو یې
اطاعت کړی وي (م. هوتک).

لښکرو يې ماته وکړه.

شاه محمود درې ورځې په نائين کې تېرې کړلې بيا يې نو اصفهان ته خپل لښکر وخوځاوه.

## د گلناباد جنگ :-

د عبرتنامې په ... مخ کې کښلي دي :-

د ۱۱۳۴ هـ ق په ژمي کې شاه محمود له کندهاره پر کرمان بريد وکړ. شاه محمود يو څه پښتانه پوځونه د کرمان په کلا کې کرمان يې ونيو[۳۲]. شاه محمود يو څه پښتانه پوځونه د کرمان په کلا کې پرېښووله نور لښکر يې مخ پر اصفهان وخوځاوه. د اصفهان دربار چې خبر سو، د نوي معمتدالدوله او خان حويزه په مشرۍ يې پنځوس زره لښکر گلناباد ته وروايستل چې له اصفهانه څلور فرسخه ليري و. د قزلباشو دغه پوځ په گلناباد کې د پښتنو د راتگ په انتظار واړول. دوې ورځې وروسته د پښتنو لښکر د گلناباد شاوخوا ته راورسېد او يو فرسخ يې له دښمنه څخه ليري واړول. سبا ته ؟ صف جنگ شروع سو. په لومړي سر کې د قزلباشو له خوا رستم خان قوللرآقاسي له څلورو سوو گرجي مريانو او د حضور له نور پوځ سره او دغه راز عليمردان خان له پنځو سوو تنو سره د پښتنو پر پوځ له غوړيو بريد وکړ. په دې جنگ کې د پښتنو له خوا امان الله خان او نصرالله خان د پوځ په دوو غوړو کې د شمال او جنوب لور ته ولاړ وو. د اېرانيانو له خوا معتمدالدوله د لښکرو په منځ کې ولاړ و. محمود پخپله د معتمدالدوله پر پوځ بريد وکړ او قزلباش يې پسې واخيستل. رستم خان او خان حويزه هم سلامت په تېښته کې وليدی. په دې جنگ کې رستم خان او زوی يې عليمردان خان له ورور سره ومړل او عليمردان خان پخپله ټپي سو.

په دغه سوبه کې پښتنو ته ۲۵ توپه، پنځه ويشت زره تومنه د سپينو زرو

---

[۳۲] د کرمان او اصفهان تر منځ ۲۵ مزله واټن و.

سکې او نور حربي لوازم په لاس ورغلل. پښتنو نه زره غښتلي زلمي د اصفهان د نیولو ل پاره وګرزول نور پوځ یې له غنایمو سره کرمان ته ولاړ، د قزلباشو ماتې اصفهان ته ورسېده. دوی انتظار درلود چې پښتانه پوځونه به ژر پسې ور ورسېږي، مګر پښتانه تر اتو ورځو پورې د قزلباشو په سترګه نه سول. یوه شپه یې په ښار کې خان حویزه، چې سني مذهبه عرب و، د پښتنو د حال معلومولو له پاره تر اصفهان راویوست.

په دغه جنګ کې هزاره او بلوڅ پوځونه هم له پښتنو سره مله وو. د پنجاه مقاله په ۴۵۰ مخ کې کښلي دي :-

د هوتکیانو په وخت کې د سیستان د حکمدار بهرام بن سلیمان بن ملک حسین بن اسدالله کیانی و. د ده ورور محمود له لسو زرو تنو سره د اصفهان په کلابندۍ کې د شاه محمود مل و.

## د بني اصفهان جنګ :-

علیمردان خان له پنځو زرو سپاهیانو او د خوراکې له یوې خورا درنې ذخیرې سره له اصفهانه روان و. پښتانه چې خبر سول مخ یې ورته ونیو. څه قزلباشان ووژل سوه نورو قزلباشانو له خپل سردار علیمردان سره تېښته غوره کړه. د علیمردان تر ماتې وروسته د پښتنو د پوځ لړو مېړو د غلې ذخیره خپلې لښکرګاه ته رسول. د اصفهان په یو فرسخي کې یو ځای دئ، چې بني اصفهان یې بولي. د دغه ځای قزلباش راووتل. لا ریې ورته ونیوله پښتانه یې ووژل او غله یې خپلې کلا ته ننه ایستل. د بني اصفهان کلا یو ژور خندق درلود. محمود چې خبر سو یو څه پښتانه یې د بني اصفهان والا د ځبلو له پاره ولېږل. په دې جنګ کې هم بني اصفهان والا بری وموند او ډېر پښتانه یې بندیان کړل. په دغو بندیانو کې د شاه محمود د کشر ورور، د تره زوی، د خاله زوی او څو تنه د پښتنو نور مشران هم وو. شاه محمود د اصفهان کلابند پاچا شاه حسین ته پیغام ولېږه چې د بني اصفهان

خلکو ته حال واستوي چي د پښتنو بنديان ونه وژني او ښه دې وساتي. محمود به هم د قزلباشو بنديانو سره دغه رويه وکړي.

شاه حسين دا خبره ومنله او د بني اصفهان خلکو ته يې حال واستاوه چي د پښتنو بنديان ونه وژني، مگر قاصد چي ور رسېدی، هغو د پښتنو ټول بنديان تر تېغ تېر کړي وو. دا خبر چي شاه محمود ته ورسېد ده هم د قزلباشو ټول بنديان ووژل.

## د اصفهان کلابندي :-

مسيحي سياح ليکي :-

د اصفهان د خلکو عادت نه و، چي د کال خوراکه يو ځای تهيه کړي. ټولو به له بازاره غوښي او ډوډۍ رانيوله او د کلابندۍ فکر يې په زړه کي نه ورگرزېد. د اصفهان په کلابندي کي چي اصفهانيان له لوږي په عذاب سول، ډلي ډلي له ښاره راوتل او د عبرت نامې په قول پښتنو هيڅ نه ورته ويل.

د کلابندۍ درې مياشتي چي تېري سوې په بازارو کي ډوډۍ، غوښي او نور خواړه خورا لږ سول. د خرو او غاترو (کچرو) غوښي خرڅېدلې. د يوه خره بيه ۱۲ بيا ۲۵ تومنه سوه. وروسته خره هم خلاص سول د سپو او پيشيانو د خورک وار راغی. مسيحي سياح وايي زه يوه ورځ د فرانسې د سفير له کوره راووتلم د باليکوز[۳۳] انگرېز کره تلم. د باليکوز د سرای مخ ته مي يوه ښځه

---

[۳۳] علامه رشاد دا کلمه همداسي کښلې ده، خو په چاپي بصيرت نامه يا عبرتنامه کي، چي د علامه مرحوم تر نظر لاندي د څېړونکي فقير محمد خيرخواه له سريزي او تعليقاتو سره يو ځای د افغانستان د علومو اکاډيمۍ له خوا خپره سوې ده، دا کلمه د (باليوز) په شکل ده او په تعليقاتو کي يې د رستم التواريخ د ۴۸۱ مخ په حواله ورته کښلي دي :-

باليوز به يې محلي نماينده ته وايه چي د دولتونو له خوا د تجارتي چارو د حل و فصل او د خپلو اتباعو د حمايت له پاره ټاکل کېدی. د مسيحي سياح د تاريخ په انگليسي ژباړه کي يې د باليوز اصطلاح نه ده راوړې. بلکي د فرانسې او انگليس د سفير ambassador د کور يادونه سوې ده (م. هوتک).

ولیدله چي پیشي حلالوي او هغه منګوچي په لګوي او لاسونه يې ور زخمي کړي دي. ما د ښځي مرسته وکړه، پیشي مي ور حلاله کړه. د پیشیانو او سپیو د خوړک دوره چي تېره سوه د سړیو د خوړک دوره راغله. د پیشیانو قصابانو چي دا کار کاوه، ونیول سوه او سرونه يې په ډبره ور وځځېړل او مړه يې کړل. سیاح دا هم وايي ما په بازار کي تازه مړي ولیدل چي ورنونه به يې خلکو ځني پرې کول، کورو ته به يې وړل چي پاخه يې کړي. سیاح وايي د ونو پوستکي به يې د دارچیني په بیه خرڅول. څلور اوقیې [۳۴] اوړه په لس تومنه و. زړې موچڼي او چاروغي به يې ایشولې او د هغه اوبه به يې څښلې. خلک په کوڅو او بازارو کي پراته مړه کېدل. پېغلو نجونو او دولتمنو ښځو به خپلي ګېڼې په لاسو کي نیولي په بازار کي ګرزېدلې او يوه ګوله ډوډۍ به يې رانیوله او هغه به هم په لاس نه ورتله. د پیشي په دود به په بازار کي څکېدلې، ناري به يې وهلې او له لوږي به مړې کېدلې. له چا سره د مړو د ښخولو فکر او پروا نه وه. د اصفهان ښار د مړو له لاښو ډک و.

مسیحي سیاح لیکي :-

د شاه حسین صفوي له میرزایانو څخه څوک و. خپل ټول مال و دولت يې په اولادو وخوړ. پای ته چي څه نه سوه پاته او دا يې باور سو چي اوس مي اولادونه له لوږي مري، نو يې پخپل ټول پاته مال درې اوقیې قدر خواړه برابر کړل او په هغو يې زهر ولړل. خپله ټوله کورنۍ يې راوبلل، هغوی ته يې وویل دا زموږ او ستاسي تر ټولو وروستي خواړه دي. د دې له پاره چي تاسي له لوږي مرئ، ښه به دا وي چي دغه خواړه وخورئ او ځان له عذابه وژغورئ. ټولو هغه خواړه سره ووېشل. د کور دروازه يې په ځان پسي وتړله او د ابد په خوب بیده سول.

---

[۳۴] په غیاث اللغات کي يې کښلي دي : اوقیه د وزن یو راز واحد ته ویل کېدی، چي د څلوېښت درهمو له وزن سره برابر و (م. هوتک).

مسیحي سیاح وایي :-

د اروپایي ملکو سفیرانو خپل غم خوړلی و. ډېر خواړه او د خوړو شیان و لوازم یې په کورو کې ذخیر کړي وو. دروازې یې په ځان پسې تړلې وې او کور ناست وو.

وایي د اصفهان په جنگ کې شل زره قزلباش ومړل مګر د کلابندۍ لوږې یو لک تنه ووژل.

## د تاج سپارل :-

په عبرتنامه کې راغلي دي :-

د اصفهان خلک چې له لوږې په عذاب سول یوه شپه په شاهي سرای کې یو ځای سول او فیصله یې وکړه چې سبا اصفهان پښتنو ته وسپاري. سبا چې سو، شاه حسین خپله لور د ناوي په دود سینګار کړه[۳۵] او له خوتنو معتمدانو سره یې د اصفهان د تسلیم له زیري او شرطونو سره شاه محمود ته ولېږله. شاه محمود هغه شرطونه ومنل. معتمدان اصفهان ته ستانه سول.

سبا ته شاه حسین د شاه محمود لښکرګاه ته ورغی او شاه محمود د دیوانخانې په انګڼ کې ده ته ښه راغلې وویله. شاه حسین شاه محمود په غېږ کې ونیو. د شاه محمود دواړه سترګې او لاسونه یې مچ کړل له بغله ښخه یې خپله جغه راوایستله او د محمود په سر کې یې وټومبله. شاه محمود شاه حسین خپل کور ته بوت، هلته چې سره کښېنستل د پښتنو یو شیخ راغی یو لاس یې د شاه حسین او بل لاس یې د شاه محمود پر سر ایښی و، دوعا یې وکړه او د اصفهان د تاج و تخت مبارکي یې شاه محمود

---

[۳۵] د پښتنو په هغو شرطونو کې چې د کلابندۍ په شروع کې یې شاه حسین ته وړاندي کړي وو، یو هم شاه محمود ته د یوې شهزادګۍ ور واده کول و. دا شرط پر قزلباشو درونډ پرېوتلی و او د دغه شرط نه منلو د سولې امکان له منځ وړی و.

ته وویله. د پارس مشرانو سرونه ورته کاږه کړل او شاه محمود یې پر خوله مچ کړ او بیعت یې ورسره وکړ. د پښتنو مشران او خانان راغلل د شاه محمود لمن یې مچ کړه او مبارکي یې ورته وویله.

## د اصفهان سوبه[۳۶] :-

دا ډولونه اتڼونه بیا پر څه دي؟
چي له تورو سره لوبي کړي ځوانان
چي سیالي یې له سپرغیو کوي ستوري
چي غورځنګ ته یې هېښ تللی دئ آسمان
چي ګستهم[۳۷] ورته سپاري د غشو شخولي
چي رستم یې ایږدي مخي ته کمان
یا بې[۳۸] سر وي د سلطان حسین راوړی
یا تسلیم ته به تول سوي وي پارسیان
یا به ږغ د کومي سوبي وي راغلی
یا به ملا وي تړي برید ته بیا ځوانان
یا به زېری وي د کوم حریف د ماتي
یا له درګو به راغلي وي زمریان
یا بې[۳۹] بیا وي راګټلي میدانونه
یا به بیا پلر پت سرونه ږدي هوډیان

---

[۳۶] دا شعر او د راتلونکي مخ دوه شعره د علامه رشاد مرحوم دي (م. هوتک).
[۳۷] په غیاث اللغات کې راوړي دي : ګستهم (د محترم پر وزن) د نوذر ابن منوچهر زوی او دایران د یوه پهلوان نوم دئ (م. ه).
[۳۸] [۳۹] یا بې = یا به یې (م. ه).

"یـا" د شـك تـوری تـرې وباسـه بـاور كـړه
"پښتنـــو ځلميـــو ونيـــو اصـــفهان"[۴۰]

شاه حسين راوړ تاج و شاه محـمـود ته
وې يې وړ دئ رشتيا تاج د شاه محمود
په زبر[۴۱] کي دا دوه نومـه سره يو دي
ســتا له بخت سره سياي نه لري سـود

حل :-
تاج (۴۰۴) = شاه محمود (۴۰۴).

پاچـهي د ايران تا بولي محـــــموده
له "سلطان حسينه" تش سو "د دې تخت"

حل :-
(د دې تخت) لـه ابـجـدي ارزښت څخـه چـي د (تش) پـه قرينـه د (سلطان حسينه) ابجدي ارزښت منفي سي، مطلوب کال په لاس راځي. په دې ډول :-

د دې تخت (۱۴۱۸) - سلطان حسينه (۲۸۳) = ۱۱۳۵

---

[۴۰] تاريخي ماده (پښتنو ځلميو ونيو اصفهان) ده، چي ابجدي ارزښت يې ۱۱۴۶ کيږي. له تاريخي مادې څخه چي د (يا) ابجدي ارزښت (۱۱) د (ترې وباسه) په قرينه وايستل سي، ۱۱۳۵ پاتېږي او دا په قمري حساب د اصفهان د نيولو كال دئ. بايد وويل سي چي د معمائيونو د اصولو له مخي بايد په دې محاسبه کي (پ = ب، ښ = ش، ځ = ج) وګڼل سي (م. ه).

[۴۱] زبر (د لومړي او دوهم په پېښ) لوح محفوظ ته وايي (م. ه).

اصفهان د ۱۱۳۵ هـ ق کال د محرمي په پنځلسمه پښتنو نیولی دئ[۴۲] په بصیرتنامه کې کښلي دي :-

د اصفهان تر نیولو وروسته پښتانه پوځونه دوې برخي سول. څوک د محمود او څوک د اشرف د پاچهی پر خوا وه. په دغه وخت کي اشرف غوړېدلی و، چي د اصفهان خلکو د چور او چپاو له بېري دوکانونه تړلي دي. دستي يې په ټول ښار کي جار وواهه چي دوکانونه خلاص کړئ او هر څوک پخپل کار اخته سئ. مولف لیکي :-

د اصفهان ټول دوکانونه خلاص سول او یو هم نه و تړلی.

## د محمود د عسکرو شمېر :-

ویل کېږي محمود چي پر اصفهان[۴۳] برید وکړ پنځلس زره جنګي مېړونه ورسره وو. مګر مسیحي سیاح وايي څلوېښت زره تنه به ورسره وو.

د اصفهان تر فتحي وروسته چي د محمود په امر پاته پښتانه سپاهیان وشمېرل سوه، شل زره تنو ته ورسېدل. هغه چي د اصفهان په دوولس جنګو

---

[۴۲] د شاه حسین له خوا د اصفهان او د شهنشاهی تاج د تسلیمولو تاریخ :-

| | |
|---|---|
| تتمة البیان ۹۳ مخ | ۲۳ اکتوبر ۱۷۲۲ ع = ۱۱ محرم ۱۱۳۵ هـ ق |
| پښتو هوتکیان ۹۳ مخ | ۲۳ اکتوبر ۱۷۲۲ (۱۱ محرم ۱۱۳۵ هـ ق) |
| تاریخ مختصر افغانستان ۸۰/۲ مخ | ۱۷۲۲ ع (۱۱ یا ۱۵ محرم ۱۱۳۵ هـ ق) |
| افغانستان در مسیر تاریخ | ۱۷۲۲ ع |
| وکیلي | ۱۴ محرم ۱۱۳۴ هـ ق |

د تقویم له مخي د ۱۱۳۵ هـ ق د محرمي ۱۱، د ۱۷۲۲ ع کال د اکتوبر د ۲۲ مي سره مساوي ده.

[۴۳] د یغما مجلې د ۳۲۲ ګڼي په ۲۱ مخ کې کښلي دي :- هربرت چي په ۱۰۳۸ هـ ق کال (د شاه عباس د مرګ په کال) اصفهان ته راغلی و، د اصفهان (د صفویانو پایتخت) په باب کښلي دي چي اصفهان اویا زره کوره دئ او دوه لکه نفوس لري.

کي وژل سوي وو، له دغه شمېره وتلي دي.

مسيحي سياح وايي :-

زه د شاه محمود د شاغاسي عبدالله علاج ته ورتلم. له هغه څخه مي يوه ورځ د اصفهان په جنګ کي د پښتنو د پوځ اندازه وپوښتله. ده راته وويل :-

موږ د اصفهان جنګ ته نوي زره لښکر تهيه کړی و. څو مزله چي وړاندي راغلو اته زره ضعيفان او بېکاره خلک راڅخه پاته سول. څو مزله پس دوولس زره نور وګرزېدل. د اصفهان په جنګ کي پښتانه څورلس زره تنه، هزاره اته زره تنه، بلوڅ شلور زره تنه ...[۴۴]

په عبرتنامه کې ليکلي دي :-

له پښتنو سره يو معلم فيل و. د ګلپايګان په جنګ کي يې د کلا دېوال په دغه فيل وران کړ. د ګلپايګان نيولو ته پخپله شاه محمود له اصفهانه تللی و. د ده د لښکر په ليدلو د شاه طهماسب سپهسالار فريدون خان تښتېدلی و.

شاه محمود په اېران کي خلک داسي درجه بندي کړه :-

۱. پښتانه
۲. درګزيني سنيان (کردان[۴۵])
۳. ارمنيان او نصاری
۴. ملتانيان چي له هندوستانه راغي
۵. آتش پرستان

---

[۴۴] دغه مطلب علامه رشاد مرحوم بشپړ کړی نه دي (م. هوتک).

[۴۵] درګزين همدان ته نژدې د يو ښار نوم و. د دغه ځای اوسېدونکي سني مذهبه وو. د شاه عباس په وختو کي يې له موصل څخه را فراره کړي وو. نصرالله خان چي همدان ته ورغی. د درګزين خلکو ښه استقبال کړ. نصرالله خان ۶۰۰۰ درګزيني سنيان د سپاهيانو په توګه له ځانه سره مله کړل او اصفهان ته يې راوستل.

۶. یهودان

۷. رافضیان

## د ملک جعفر سیستاني پور ته کېدل :-

د افغانستان در مسیر تاریخ په ۳۲۴ مخ کې کښلي دي :-

ملک جعفر سیستانی په کندهار کي سیاسي بندي و. په ۱۷۲۰ ع کال چي شاه محمود هوتک کرمان محاصره کړ. په کندهار کي د سلطان بیجن لکزي فراهي پلویانو (طرفدارانو) بغاوت وکړ، ملک جعفر سیستانی هم له بنده خلاص او د یاغیانو مل سو.

شاه محمود هوتک چي په دغه بغاوت خبر سو د کرمان کلابندي یې خوشي کړله او کندهار ته راستون سو.

## د پښتنو ورتګ اصفهان ته :-

د اصفهان تر نیولو وروسته له کندهاره څخه د پښتنو لښکرو کډې اصفهان ته ورغلې. دېرش زره اوښه یې بارګیر و او هر وار به پنځه زره، لس زره په پښتنو بار اوښان اصفهان ته تلل. د شاه محمود مور، چي اصفهان ته ورغله، لس زره اوښان یې بارګیر و (عبرتنامه).

## د محمود په باب :-

د شاه محمود په باب په عبرتنامه کي کښلي دي :-

د شاه محمود قد میانه لږ جګوالي ته مایل و. غنم رنګه و. سترګي یې کوچنۍ وې او ځنبېدلې. ښایسته نه و. ږیره یې سره او غاړه یې لنډه وه. ډېره ضابطه یې وه. حکم یې نه ماتېدی. پر دښمنانو باندي خورا جبار و. پر پښتنویې هم پرتم پروت و، تر دې چي د جنګ په اور کي یې هم د ده خبره

نه ماتوله. که څه هم نوره بخښنه يې نه درلوده مګر په اولجويې خپل لښکر ډېر معمور کړی و. د ټول لښکر په مخ کې به درېدی. خوب يې لږ و. دودی چې به هر څه حاضره وه، هغه به يې خوړله او هر چيري چې به خوب ورغی هلته بيدېدی، د پرستنې انتظاريې نه يوست.

په يوه کميسه کې دربار ته تی او په خلاصه ملا يې پر دښمنانو بريد کاوه. ډېر چابک سوار و. په قصاص او تاديب کې يې د چا شفاعت نه مانه. د شرعي حکم يې جاري کاوه. عيش و عشرت او شراب نوشي يې نه درلوده. د شاه حسين له لور څخه يې يو زوی وسو، چې ويل کېږي د اشرف په پاچهي کې يې وواژه يا په سترګو ړوند کړ[۴۶]

## د ګرجستان ياغي کېدل :-

په ۱۱۳۸ هـ ق کال ترکانو د علي سرکش پاشا په مشری يو پوځ ګرجستان ته ولېږه او د ګرجستان يوه برخه يې ونيوله. ګرجيانو هم په دغه وخت کې تفليس ښار چور کړ. پيتروس سرکس ګيلانتز[۴۷] په خپل کتاب کې ليکلي دي :-

د محمود هوتک نيت دا دئ چې ټول اېران ونيسي. په دې فکر کې نه دئ چې اېران جوړ کړي او بيرته کندهار ته ستون سي. په دغه وخت کې د ګرجستان حکومت د دوو ګرجيانو په لاس کې دئ. د کاختي نائب السلطنه دريم کنستانتين دئ، چې تر مسلمانېدلو وروسته يې نوم محمدقلي

---

[۴۶] د شاه محمود دوه نور زامن پاته سوي وو، چې اسماعيل او ابراهيم نومېدل (م. ه).

[۴۷] Patros di sarkis gilantz د اصفهان د سقوط په نامه يو کتاب ليکلی دئ. دی د ارمنيانو د لوی خليفه (ميناس) له خوا، چې په حاجي ترخان کې اوسېده، اېران ته رالېږل سوی و، چې د اېران په باب اطلاعات ټول کړي. د ده ليکلی کتاب محمد مهريار پارسي کړی دئ، د سقوط اصفهان په نامه چاپ سوی دئ.

خان سو. دغه محمدقلي خان په ۱۱۳۵ هـ ق (۱۷۲۳ ع) له شاه طهماسب میرزا (د سلطان حسین صفوي زوی) څخه وغوښتل چې د وختنګ wakhtang پر ځای یې د کارتلي په پاچهي د ګرجستان په والي توب مقرر کړي. په دغه وخت کې د کارتلي نائب السلطنه او د ګرجستان والي شپږم وختنګ و، چې اسلامي نوم یې حسین قلي خان و. حسین قلي خان په ۱۶۷۵ ع کال زیږېدلی و، له ۱۷۰۳ څخه تر ۱۷۱۱ ع پورې ولیعهد و او له ۱۷۱۴ څخه د کارتلي د پاچا په نامه د ګرجستان نائب السلطنه و.

## کور سلطان :-

په ۱۷۲۱ ع کال چې شاه محمود هوتک پر اصفهان برید وکړ د ده د پوځ یو منصبدار نصرالله سیستانی و، چې خلکو کور سلطان باله[۴۸]. دین یې زردشتي و[۴۹].

د اصفهان په کلابندۍ کې درې تنه خانان له پنځو زرو سپاهیانو سره د شاه حسین صفوي مرستې ته راروان وو. شاه محمود چې خبر سو، نصرالله زردشتي یې د هغو مخنیوي او ځبلو ته وګوماره. نصرالله زردشتي د اصفهان په درې فرسخۍ کې پر هغو برید وکړ. یو نیم زر تنه یې ځني ووژل او نور یې وتښتېدل.

اصفهان چې پښتنو ونیو، د نصرالله زردشتي زامن له سیستانه څخه اصفهان ته په کډه ولاړل. په دغه پلا له سیستانه څخه دوولس سوه کوره پښتانه اصفهان ته ولېږدېدل[۵۰]

---

[۴۸] ده به تل یوه سترګه پټوله ځکه نو په کور سلطان مشهور سو.

[۴۹] وګ : تاریخ انقلاب ایران د کروزینسکي تالیف ۲۷۲ مخ. په تتمة البیان کي یې نصرالله مجوسي بللی دئ.

[۵۰] وګ : سقوط اصفهان، ترجمهٔ مهریار ۵۳ – ۹۸ مخونه.

## نصرالله خان څوک و؟

په عبرتنامه کې لیکلي دي :-

نصرالله خان اصلاً د هندوستان د کعب؟ طایفې و. په اېران کې لوی سوی و. په دلاوري او مېړانه مشهور و. په پښتنو کې یې خورا توریالی نوم ګټلی و. پښتنو ایلدرم خان باله[51]. د اصفهان په کلابندي کې چې به هر وخت د قزلباشو پله درنه سوه، دی به د پښتنو په مرسته ورغی او قزلباشو به ماتې وکړې. دی په هیڅ جنګ نه و مات سوی. قزلباش یې خورا سخت له نامه بېرېدل. کله چې شاه محمود د شېراز نیولو ته وګوماره، درې زره پښتانه او شپږ زره درګزیني سیستاني ورسره وو. دی چې شېراز تـه ورسېد لـه ډېره تهوره د تول پوځ په مخې کې ولاړ و، ناڅاپه د دښمن ګولۍ پر ونښته او ومړ.

د نصرالله خان په مرګ چې شاه محمود خبر سو، ډېر خواشینی سو، زبردست خان یې د ده پر ځای د شېراز د پښتني لښکرو مشر وټاکه.

## امان الله خان څوک و؟

دی پښتون نه و. د شاه محمود د پاچهۍ په اوایلو کې له کابله کندهار ته راغی او د شاه محمود په منسوبینو کې سو او د مشرتوب او خانۍ درجې ته ورسېد. په عبرتنامه کې کښلي دي :-

"مردی عاقل، کامل، جنگ دیده و کارآموز و بسیار مدبر و رشید و باعث ثبات قدم محمود در اصفهان و غلبه بر قزلباش او شده بود. شرط او با محمود این بود که از سفر قزلباش هر چه بدست آید بامن حصه نصف نمایند. بعد از فتح اصفهان روزی ازین تقسیم تذکار نمود. شاه محمود بر آشفت. امان الله چون بخانه رفت بشاه محمود پیغام فرستاد که من پس

---

(51) یلدرم = ایلدرم تورکی لغت دئ. برېښنا او تندر ته وایي (م. هوتک).

ازین بتو خدمت نمی کنم از قبیلهٔ تو نیستم و شاه هندوستان را تابعم. سپاه خود را برداشته روانه هندوستان می شوم، این بگفت و قریب دو هزار کس از سپاه خود را برداشت از اصفهان بر آمد. شاه محمود اغماض کرد. سه روز پس بفکر رفتن نزد شاه طهماسب شد. شاه محمود را از شنیدن این خبر وحشت عظیم دست داد، با ده هزار سوار افغان بعقب او رفت بوضع دوستان با او ملاقات نمود، روی یکدیگر را بوسیده به اصفهان عودت نمودند".

امان الله خان د اشرف په وختو کي اعتمادالدوله و. امان الله خان په یوه هفته کي له قزلباشو شخه نوي زره تومنه روپۍ واخیستلې. اشرف چي خبر سو په قهر سو او یو شبانه روزیې په پښو وځړاوه. هر څه چي یې درلودل، هغه یې ضبط کړل بیا یې مرگ و ژوند معلوم نه سو.

## د محمود شیخ :-

د عبرتنامې په پای کې کښلي دي :-

د محمود شیخ د امان الله خان خوریی و[52] له کابله راغلی واو د محمود په پوځ کي منصبدار سوی و[53]. اشرف چي پاچا سو د ده مالونه یې ضبط کړل. یو څه یې له هغه شخه د هدیې په نامه شیخ ته ورکړل او له څو تنو سره یې کابل ته واستاوه.

---

[52] د مسیحي سیاح د تاریخ (عبرتنامې) په انگرېزي ترجمه ۱۷۳ مخ کي یې امان الله خان د دغه شیخ خوریی بللی دئ. دا شیخ د هوتکو د دورې مشهور سړی ملا پیرمحمد هوتک مشهور په میاجي افغان دئ. په انگلیسي ژباړه کي د دغه بحث عنوان (History of Mainjee) دئ خو په پاړسي ترجمه (عبرتنامه) کي یې عنوان ور اړولی او (شیخ محمود) یې لیکلی دئ. په رستم التواریخ ۱۲۵ مخ کي چي یې د شاه محمود استاد او مرشد شیخ حسن بللی دئ. مراد به یې غالباً همدا شیخ وي (هوتک).

[53] بیان واقع.

د شیخ ډېر کرامات پښتانه بیانوي. په جنګو کي به د پښتنو په مخ کي درېدی او دوی ته به یې د بري او سوبي دوعاوي کولې، بیا به نو جنګ شروع کېدی. (شیخ) چي به شاه محمود ته ورغی، شاه محمود به یې مخي ته راتی، لاس به یې ورمچاوه، ډېره خوږه ژبه یې وه. حلیم و سلیم سړی و.

## د محمود د سکې سجع :-

سکه زد از مشرق ایران چو قرص آفتاب

شاه محمود جهانگیر سیادت انتساب

شاه محمود درې کاله د ایران پاچا و[54].

## شاه اشرف هوتک :-

د عبرتنامې په پای کې کښلي دي :-

اشرف له محمو سره له کندهاره ایران ته راغی. جنګ دیده سړی و. محمود، خاني ورکړه او څه سپاهیان یې د ده تر لاس لاندي کړل. اشرف عاقل، صاحب تدبیر، خیرخواه، متواضع او مهربانه سړی و، ځکه نو د پښتنو سپاه هم د ده خوا ته مایله وه. د ګلناباد په جنګ کي دی د روغي پر خوا و. شاه محمود چي دا خبره واورېدله ځني خوابدی سو.

د اصفهان په کلابندۍ کي چي په اصفهان کي خلک له لوږي مړه کېدل، یوه شپه اشرف زر منه غله شاه حسین صفوي ته واستوله او د هغه په عوض کي یې په دې نامه خزانه ځني وغوښتله چي زه به دا خپل پوځ ته

---

[54] د محمود هوتک حال د (حالات محمدشاه پادشاه غازی) نومي کتاب په پیل کې لیکلي دي : دا کتاب اندرام مخلص لیکلی دئ. د علي ګړه پوهنتون په لټن لایبریري کي د دغه کتاب یوه نسخه سته چي د مولف په قلم ده (۲۴ ذی القعده ۱۱۶۰ هـ ق) د پای برخه یې ناقصه ده.

ور ووېشم، ته له دننه او زه به له دباندې د محمود پر پوځونو ګډ برید وکړو او دی به له منځه واخلو. مګر شاه حسين د ده په خبره ويسا ونه کړله. محمود چې په دې خبر سو ځني خوابدی سو، مګر خپله خوابدي يې څرګنده نه کړله، خو څو ورځي پس يې اشرف له اصفهانه لېري کړ او د هغه پوځ مقابلې ته يې ولېږه چې اصفهان ته د شاه حسين د مرستي په نيت روان و.

د اصفهان تر سوبې وروسته يې اشرف په دغه خبره بندي کړ او په بند کې يې هم د ده احترام درلود. په عبرتنامه کې کښلي دي :-

اشرف له بنديخانې څخه د شاه حسين صفوي زوی شاه طهماسب ته وکښل چې زما د خلاصون له پاره پر اصفهان برید وکړه. ما هم ځيني پښتانه مشران ليدلي دي چې خلاص سم تا به پاچا کړم زه به خدمت درته کوم.

په عبرتنامه کې زياته کړېده :-

د شاه محمود د دولت قوت او آب په اشرف، امان الله او د پښتنو په شيخ و. اشرف چې پاچا سو، نرمه رويه يې له خلکو سره غوره کړه. د شاه حسين له پاره يې د مياشتي دوه سوه تومنه تنخواه وټاکله. يوه ورځ شاه حسين شاه اشرف وليد او خپله لوريې ورکړه. پسله دې شاه اشرف شاه طهماسب ته يو د روغې پيغام ولېږه او د ملاقات هيله يې ځني وکړه. مګر د قزلباشو پنځه ويشتو تنو اميرانو په پټه طهماسب ته وکښل :-

پام کوه چې د اشرف په خبرو تېر نه وزې. دا خط د اصفهان او تهران پر لار د سيد علي خان په لاس کښېووت او اشرف ته يې ورکړ. اشرف هغه پنځه ويشت کسه د مېلمستيا په پلمه راوغوښتل او ويې وژل.

په بصيرت نامه کې کښلي دي :-

شاه اشرف تر يوه کال پوري له قزلباشو سره ښه رويه درلوده. پسله يوه کاله يې رويه وګرزېدله او د دې علت دا دئ چې د ابراهيم هزاره تر مشرتابه لاندې يو پوځ د توابغ؟ خوا ته ولېږه. د هغې سيمې تر نيولو

وروسته چې ابراهیم خان (خواز؟) ته راغی د شپې د یوه ملک کره دېره سو. د هغه لورېې خوښه سوه او په زورېې شپه ورسره تېره کړه. سهار چې د کلي او سیمې خلک خبر سول په دې خبره یې بد یووړه. د ابراهیم هزاره پر لښکرو راوغورځېدل. څه یې ووژل او څه له ابراهیم هزاره سره چې تېښې و، په تېښته اصفهان ته ولاړل. اشرف د قزلباشو په دې کار خوابدی سو. یو لښکر یې د ابراهیم هزاره په مشرۍ د هغو خلکو ایداد ته وګوماره. دا پلا بیا ابراهیم هزاره ماته وکړه او لښکر یې زیاتره د قزلباشو له لاسه وواژه سو.

د رستم التواریخ په ۱٦٦ مخ کې کښلي دي :-

اشرف هوتک پوخ، د صحیح مزاج تښتن ډېر ځیرک سړی و. عدل و انصاف یې کاراوه ... د اصفهان په زاړه مسجد جامع کې، چې سلطان محمد چنګیزي جوړه کړې ده، شمالي ایوان شاه اشرف جوړ کړی دئ او پر کتیبو باندي یې هم د ده نوم کښلی دئ ... په اصفهان کې د سلطان محمود انجو د جامع مسجد چت څه ورانی موندلی و، د شاه اشرف په امر یې ترمیم وسو او د خلفای راشدینو نومونه په ډېره ښه سلیقه هلته وکښل سوه، په تهران کې هم یو ارګ د شاه اشرف په امر سیدال خان ناصر او امیر محمد سمیع خان کارخانه آقاسي (د مولف د پلار اکا) جوړ کړی دئ.

په عبرتنامه کې کښلي دي :-

اشرف چې پاچا سو. د محمود مورېې وروغوښتله او ویې پوښتېدله :-

محمود چې بندي کړم تا ولي زما زېرمه نه کوله. درې ورځې یې په هغه زېرزمیني کې بندي کړله چې هلته د شهزاده ګانو مړي پراته وو. پسله درو ورځو یې خپل کور ته رخصت کړله[٥٥].

په عبرتنامه کې دا هم زیاته کړېده :-

شاه اشرف چې پاچا سو کشر ورور یې له اصفهانه وتښتېد. اشرف ته چې

---

[٥٥] د اشرف خور د محمود مانیه وه (تاریخ کشمیر د خواجه اعظم ۲۵۲ مخ).

په لاس ورغی، روند یې کړ.

اشرف د عبدالله بروهي بلوخ په لاس کښیوت او وواژه سو. د ده سر یې له یوې دانې الماس سره، چي تر موټه یې تړلی و، شاه طهماسب ته ولېږه[56].

## د اشرف د سکې سجع :-

زلطف شه اشرف حق شعار
بزر نقش شد شکهء چاریار

دست زد بر جاراله بود گناه
داد تغیر سکه اشـــرف شاه

د شاه اشرف د سکې له پاره مرزا مهدي کوکب دا بیت ویلی و :-

باشرفی شرف سکه زان جناب رسید
شرف از سکهء اشرف بآفتاب رسید

## د مهمان دوست جنگ[57] :-

دا جنگ د شاه اشرف او افشار نادر ترمنځ د ۱۱۴۲ هـ ق کال د صفري په میاشت کي پېښ سوی دئ، مګر د هوتکیان نومي کتاب په ۱۲۰ مخ کي د ۱۱۴۲ هـ ق کال د لومړۍ خور (ربیع الاول) شپږمه د شنبې ورځ د مهمان دوست د جنګ ورځ ښوول سوې ده.

میرزا مهدي استرآبادي د تاریخ نادري په ۱۰۴ مخ کي کښلي دي :-

---

[56] بیان واقع ۱۲ مخ.

[57] مهمان دوست د یوه رود نوم دئ چي په بسطام کي بهېږي. دغه رودخانه یوولس نیم میله د دامغان په شمال شرق کي واقع ده.

په دغه جنګ کې سیدال خان د اشرف خان هوتک د پوځونو سرلام و. د نادرقلي د پوځونو توپخانه یې په لومړۍ حمله کې ونیوله.

## د مورچه خور جنګ :-

د هوتکیان په ۱۲۳ مخ کې لیکلي دي :-

نادر د ۱۱۴۲ هـ ق کال د دوهمي خور په شلمه[۵۸] سهار په خره د هغه غره له شا څخه پر پښتنو برید وکړ چي په لمنو کي یې د پښتنو لښکر پراته وو. وایي په دغه وخت کي د باد سخت توپان لګېدلی و، ځکه نو پښتانه د نادري لښکرو له راتګه بې خبره پاته سوي وو. په دې جنګ کي د پښتنو شمېر د نادري لښکرو نیمی هم نه و. شاه اشرف له نادر سره مخامخ په جګړه بوخت و او سیدال خان د شاه له خوا څخه پرې بریدونه کول. په دې جنګ کي څلور زره تنه پښتانه ووژل سول او اشرف اصفهان ته تر شا سو.

نادر اصفهان ته د ۱۱۴۲ هـ ق کال د دوهمي خور په ۲۳ = ۱۵ نومبر ۱۷۲۹ ع نېټه ورسېد.

## د محمد خرسوار او شاه اشرف د پوځونو جنګ :-

د (ایل ها، چادرنشینان و طوایف عشایری ایران) په ۸۹۱/۲ مخ کې لیکلي دي :-

د صفویانو د پاچهۍ په پای کي محمد نومي د شاه حسین د وروګلوی او د میرزا مهدي په قول د زوی والي ادعا وکړه. دی پر خره سپرېدی په (محمد خرسوار) مشهور سو. خلک په وګروهېدل. ډله یې لویه او غښتلې سوه. ځو بندره یې ونیوله. په پای کي یې د اېران پر بلوچستان

---

[۵۸] علامه رشاد مرحوم دغه جمله همداسي نیمګړې پرې ایښې ده. ما له (هوتکی ها) نومي کتاب ۱۳۱ مخ څخه پخپل انتخاب وروستی ځو کرښي واخیستلې (م. هوتک).

برید وکړ. عبدالله بلوڅ یې هم ملګری سو. شاه اشرف یو لښکر د ده څبلو ته وګوماره. د شمیل میناب په سیمه کي جنګ پېښ سو. د جنګ په پیل کي محمد له خره ځان واچاوه له پیروانو سره وتښتېد او د قلندرانو (ملنګانو) په جامه کي هندوستان ته ولاړ.

## پر ښوراوک باندي د افشار نادر د پوځونو حمله او د شریم خان پښتانه وژل:-

د (ایل ها، چادر نشینان و طوایف عشایری ایران) په ۸۹۲/۲ مخ کې لیکلي دي:-

افشار نادر د کندهار د کلابندۍ په موده کي محمدعلي خان ساری، ولی لو افشار، امام قلي خان افشار، مولاقلي جارچي باشي او موسی خان دونګي (ساګزی) له شپږو زرو سپرو سره د بلوچستان نیولو ته وګومارل[۵۹].

محمدعلي خان ساری او ملګري چي یې ښوراوک ته ورسېدل، پښتنو او بلوڅو یې مخه ونیوله. په دې جنګ کي د بلوڅانو سردار کپک بهادر وواژه سو او بلوڅانو ماته وکړه. ځیني بلوڅان چي بندیان سوي وو د افشاري پوځ مشر ته وویل:-

شریم خان پښتون له ډېرو پښتنو سره په ښوراوک کي ژوند کوي. شریم افغان چي د نادر د پوځونو په برید خبر سو، له ۷۰۰ تنو جنګیالیو سره یې مخه ورته ونیوله. په دغه جنګ کي شریم خان وواژه سو او لښکر یې ماته وکړله، څه بندیان سول.

---

[۵۹] که څه هم د پارس له لاري نادر د هرات بیګلربېګی پیرمحمد خان او اسلمش خان مشهور په خان جان د بلوچستان نیولو ته ګومارلي او هغوی ډېر فتوحات کړي وو خو نادر د هغو په حال خبر نه و.

## شاه حسین هوتک :-

شاه حسین هوتک د میرویس خان کشر زوی دئ، چې د ۱۱۱۴ هـ ق کال د لومړۍ خور په درویشتمه د کلات په سیوري کې زېږېدلی دئ. په ۱۱۳۵ هـ ق کال چې يې مشر ورور شاه محمود د اصفهان پر تخت کښېناست، د کندهار پاچهي ده ته پاته سوه.

د شاه حسین په باب يې په عبرتنامه کې کښلي دي :-

درویش مشربه و. د پاچهۍ هوا يې نه درلوده. د مال د ډېرولو او خزانې د ډکولو هڅه پکښې نه وه.

د بیان واقع په ۲۳ مخ کې کښلي دي :- د کندهار تر فتحې وروسته نادر امر وکړ چې باید شاه حسین سبزوار ته بوزي او هلته يې شاه طهماسب صفوي ته، چې د شاه حسین صفوي زوی و، وسپاري.

## د شاه حسین هوتک او بلوڅو جنګ :-

په تاریخ بلوچستان کې يې کښلي دي :-

د احمدخان بروهي لمسي د محراب خان زوی میر عبدالله چې په ۱۱۲۹ هـ ق کال د کلات واکمن سو. یو وخت يې پر کندهار برید وکړ. شاه حسین ته يې ماته ورکړه او د کندهار شاوخوا يې چور کړه[۶۰]. اخوند محمدصدیق په تاریخ بلوچستان کې وايي :-

میر عبدالله د پښین او شوراوک سیمي د کندهار له پاچهۍ څخه ونیولې. په پښین کې يې میر فیروز رئیساني او په شوراوک کې يې قایم خان شهواني مقرر کړي وو. وروسته شاه حسین او د سنده حاکم میان نورمحمد چکهوړه د دوو خواوو برید پر وکړ. د پښتنو لښکر چې پښین ته راغی فېروز

---

(۶۰) تاریخ سند ۲۸۶/۱ مخ. په تاریخ بلوچستان کې يې کښلي دي : شاه حسین چې ماته وکړه د ذاکر تر کلي پوري د بلوڅو لښکر په پسې و؟

سائي يې وواڼه او دلاورخان رئيساني يې د ښوراوک بلوڅ حاکم قايم
ن شهواني راوتښتاوه او په مستونګ کې يې عبدالله خان ته راورساوه.
د کندهار پوځ شالکوټ کلابند کړ. د شالکوټ بروهي پوځونه کلابند
ل. عبدالله په مستونګ کې و، څو ورځي پس کندهاريان کندهار ته ځني
رل او کلابندي خلاصه سوه[٦١].

## ديرۀ غازي خان باندي د شاه حسين هوتک برید :-

په حيات افغاني کې ليکلي دي :-

د کندهار پاچا شاه حسين هوتک پر ډېره ورغی. د بلوڅو له خوا يې
کرو ته زيان ورساوه. ده هم د ډېرۀ غازي خان د بلوڅو د قتل عام امر
ړ. د ډهلي د دربار په لمسه څه موده پس ډېرۀ غازي خان محمد کتهراني
وله. له هغه وروسته نورمحمد سرايکي ځني ونيوله بيا د احمدشاه بابا د لښکرو په لاس
له.

## خوني نادر افشار له خوا د کندهار د نيولو تاريخي ماده :-

خپله مينه پښتنو لره سقر سوه
په ايران و په توران کي دربدر سوه
هند و سند د پښتنو په کډو ډک سو
وړي تږي آواره خاوري په سر سوه
چا وې کله؟ او د کوم ظالم له لاسه؟
دا کور ډاکي له خپل ملك څخه بهر سوه
(رشاد) ووې : (د نادر وبا) چي راغله
(پاچهي د قندهار زبر زبر سوه)

---

کوټي (شالکوټ) ته د سندهي لښکرو راتګ تحفة الکرام، تاريخ سنده يا بل کوم ماخذ
ه نه دی راوړی.

حل :- د نادروبا (۲۶۸) + پاچهي د کندهار زېر زبر سوه (۸۸۲) = ۱۱۵۰ هـ ق.

په دغه تاريخي ماده کي د (زېر) او (زبر) تر منځ واو نه ليکل کېږي. د زېر د (رې) پر سر په پېښ اکتفا سوېده.

## د ايزف (يوسف) نيکه قبر :-

د وازي خوا په وړه ممی کي د ايزف نيکه په نامه يو زيارت دئ. فدامحمدصارم وايي:- زه چي په غزني کي د مطبوعاتو مدير وم، وامي ورېدله چي د يوسف نيکه پر قبر يو خطي قرآن شريف پروت دئ، چي د شاه حسين هوتک له خوا هغه وخت دغه زيارت ته اهداء سوی و، چي دی پخپله د پاچهی په وخت کي له کندهاره دلته راغلی و.

## مصطفٰی خان ابدالي :-

په ۱۱۴۳ هـ ق کال چي د افشار نادر په امر محمد سلطان مروي د هرات له سنگ نقره څخه پر فراه حمله وکړله او ځان يې خاش و کده ته ورساوه مصطفٰی خان د خاش؟ حاکم و. مروي د مصطفٰی خان ابدالي تر وژلو وروسته د نادر له پوځه سره مل سو، چي د لاش و جوين له لاري يې د نادر په امر پر فراه باندي حمله کړې وه.

د ۱۱۴۳ هـ ق کال د لوی اختر د مياشتي په اته ويشتمه د نادر لښکرو (ده نو) ته، چي له فراه څخه تخميناً شل کيلومتره ليري دئ، ځان ورساوه. د احمدشاه بابا ورور عليمردان خان يې مخه ونيوله. د سيلي د غره په جنوب کي جنگ پېښ سو. په دغه جنگ کي محمد سلطان مروي وواژه سو[۶۲] تر څو ورځو جنگ وروسته د نادر لښکرو ته نوی کومک راورسېد.

---

[۶۲] د دغه محمد سلطان هديره کاهدانک نومي کلي ته نژدې واقع ده. کاهدانک د فراه -

ليمردان خان فراه ته تر شا سو او هلته کلابند سو.

## افشار نادر له خوا د کندهار د نائب الحکومه په توګه د عبدالغني خان الکوزي مقرري :-

افشار نادر چې کندهار ونيوه. دوې مياشتې پس يې د کابل لور ته لښکرې وخوځولې. د کندهار حکومت يې عبدالغني خان الکوزي ته وسپاره او د هرات تر نيولو وروسته چې يې ابدالي سرداران نيشابور او خراسان ته فراره کړي وو، هغه يې بيرته کندهار ته راپرېښوول. غني خان په ۱۱۴۶ هـ ق کال داغستان نادرِ ته نيولی و[۶۳]. تر برې وروسته نادر ورته وويل :- څه غواړې؟ يوه غوښتنه دې منم.

ده ورته وويل :- بند و کندهار. يعنې له بنده او فرارۍ څخه د پښتنو خلاصول او کندهار ته د هغو د تللو اجازه.

نادر ورته وويل :- دا خو دوې غوښتنې دي.

ده ورته وويل :- دا يوه غوښتنه ده. چې له فرار يو څخه پښتانه معاف کړې نو چيرې به اوسي؟ له خپله ملکه ليرې چې هر ځای واوسي، هغه فرارې بولي[۶۴].

## کندهار ته د نادر افشار دوهمه پلا راتګ :-

د بيان واقع په ۵۸ مخ کې کښلي دي :-

افشار نادر چې د کندهار تر نيولو وروسته د کابل، پېښور او لاهور له لارې دهلي ته ولاړ او هغه پاچهي يې ونيوله د ۱۱۵۲ هـ ق کال د صفرې په اوومه له

---

نيمروز د لويې لارې شمال ته واقع دئ.

(۶۳) غنی خان افغان در آن کارزار ... زرومی و شامی بکشت صد هزار

(جهانکشای نادری، ۲۵۲ مخ، نامهٔ عالم آرای نادری ۴۰۸/۱ مخ).

(۶۴) دا مطلب په دولت درانيه ۵ مخ، داستان ترکتازان هند ۲۲۶/۴ مخ او شوکت افغان ۲۸ مخ کې راغلی دئ.

ډهلي ځخه د افغانستان په نيامت وووت. د روژې په اوله ورځ کابل تـه ورسېد. د روژې په اتمه د سنده د نيولو په نيامت د بنګښو له لاري مخ پر سنده ولاړ.

نادر د ۱۱۵۳ هـ ق کال د محرمي په نهمه له سنده ځخه مخ پر کندهار روان سو. د خدايار خان عباسي دوه زامن يې د يرغمل په توګه له ځانه سره بوتلل. د پښين له لاري د ۱۱۵۳ هـ ق کال د صفري په دريمه[۶۵] ورځ کندهار ته ورسېد. د کوبي په چمن کي يې واړول. نادر او لښکري يې له کندهاره مخ پر هرات وخوځېدې او د ۱۱۵۳ هـ ق کال د لومړي خور په پنځمه هرات تـه ورسېدې او له هغه ځايه ځخه د مروچاق، اندخوی او بلخ لـه لاري د بخارا نيولو ته ولاړ.

په تاريخ جهانکشای نادري ۳۷۵ مخ کې ليکلي دي :-

نادر د ۱۱۵۳ هـ ق کال د محرمي په ديرلسمه له لارکانې ځخه راووت د سيوي، ډاډر او شال و فوشنج (پښين) له لاري د صفري په اوومه کندهار تـه راورسېد او د نادرآباد ځخه يو فرسخ ليري يې د کوبي په چمن (اصل خوبی) کي واړول.

نادر د ۱۱۵۰ هـ ق کال د صفري په اوله له نادرآباد (کندهار) ځخه وتلی و، تر ځو بيا ورتـه راتلی، دوه کالـه و اووه ورځـي تېري سـوي وې[۶۶]. او لـه ډهلي ځخه چي راوتلی و تر ځو چي کندهار ته رارسېدی، يو کـال تېر سـوی و. دا پلا چي کندهار ته راغی غني خان الکوزی يې د ابداليو له پوځونو سره وګوماره چي د مېزان په مياشت داغستان ته ولاړ سي، هغه سيمه ونيسي او د ده د ورور ظهيرالانامي ابراهيم خان کسات وکاږي، چي پـه داغستان کـي د ۱۱۵۱ هـ کال د برات په مياشت کي وژل سوی و.

---

[۶۵] د صفري ۷ مه = ۱۴ می ۱۷۴۰ ع (جهانکشای نادری ۳۷۵ مخ، درهٔ نادری ۳۷۵ مخ).

[۶۶] د ۱۱۵۳ هـ ق کال د صفري له اوومي ځخه چي د ۱۱۵۰ کال د صفري اوله وباسو، درې کاله و اووه ورځي پاتېږي (زما په محاسبه بايد ۳ کاله و ۶ ورځي پاته سي م. هـ).

قندبدایت شده در قــنـدهار
عار سمرقند شده ختم کار[1]

## د شهزاده حیدر[2] حکومت :-

شاه شجاع چې په ۱۲۱۹ هـ ق کال کابل ونیـوی او شاه محمود یې زندان ته واچاوه د کندهار حکومت یې شهزاده حیدر[3] ته ورکړ او د سردار احمدخان نورزي وراره میرعلم خان یې د ده په نیابت وګوماره. دوی چې له خپلو لښکرو سره له کابله کندهار ته را رهي سول د مختارالدوله شېرمحمد خان بامیزي زوی عطامحمد خان او سیدال خان هم لـه خپلو لښکرو سره ورسره وو. د لښکر سپاهیان شپږو زرو ته رسېدل.

شهزاده کامران چې د پلار له خوا د کندهار نائب الحکومه و، د وزیر فتح خان په ملګرې له خپلو لښکرو سره د دوی د مخنیوي له پاره جګان ته ورغلل. جنګ پیښ سو کامران ماته وکړله. هرات ته ولاړ او خپل اکا حاجي فېروزالدین تـه یې پناه ورووړله. شـهزاده حیدر[4] کندهار تـه راغی او د

---

[1] صالح چې د شاه شجاع معاصر دئ پخپل عشقیه اثر کي، چـې ... نومېږي، د قندهار په صفت کي پورتني بیت لیکلی دئ.

[2] تر (شهزاده) کلمې وروسته علامه استاد مرحوم ځای خالي پرې ایښی دئ. نـه پوهېږم ولي؟ ما (هوتک) دغه تش ځای ته د (حیدر) نور ور واچاوه. شهزاده حیدر د شاه زمان زوی او په ۱۲۱۹ هـ ق کـال د کـندهار نائب الحکومه و (وګ : د افغانستان پېښلیک، ۱۷۵ مخ).

علامه رشاد مرحوم د سدوزیانو برخه لنډه لیکلې ده او دلیل بـه یې غالباً دا وي چې د کتاب په لومړي ټوک کي یې د احمدشاهي ښار تر عنوان وروسته مفصلي څېړني راوړي دي، چي دا څېړني یې زیاتره په همدغه دوره اړه لري (م. هوتک).

[3] [4] دلته هم په دواړو ځایو کي د شهزاده حیدر نوم ما وراچولی دئ (م. هوتک).

حکومت واګي يې په لاس کې واخيستلې[5].

## پر کندهار باندې د شهزاده کامران او شهزاده قاسم حمله:-

شهزاده کامران چې په ۱۲۱۹ هـ ق کال له کندهاره څخه په تېښته هراته ته ولاړ، اکا يې حاجي فېروزالدين په هرات کې والي و. د کامران د انا (نيا)[6] په غوښتنه او سپارښت حاجي فېروزالدين د فراه او سبزوار (شين ډنډ) حکومت شهزاده کامران ته ورکړ.

څه وخت چې تېر سو د حاجي فېروزالدين مور حاجي وپاراوه چې لښکري پر کابل وروبهوي او خپل سکنی ورور شاه محمود د شاه شجاع له بنده خوشي کړي. حاجي فېروزالدين يو تکړه پوځ د وراره شهزاده کامران او زوی شهزاده قاسم په مشرۍ پر کندهار باندي د حملې له پاره وګوماره. د کندهار نائب الحکومه[7] چې خبر سو، د دوی مخه يې ونيوله. جنګ پېښ سو، نائب الحکومه په ماتې کابل ته ولاړ او کندهار د شهزاده کامران او شاهزاده قاسم په لاس ورغی.

په دغه وخت کې د فارس شهزاده محمد والي ميرزا، چې د خراسان والي و، له مشهد څخه د هرات د نيولو په هيله لښکر راويوست. حاجي

---

[5] د دې برخې د شهزاده تر کلمې وروسته په تش ځای کې، چې استاد معصوم هوتک د افغانستان پېښليک د ۱۷۵ مخ په حواله (حيدر) نوم وراچولی دئ، د علامه رشاد بابا رحمة الله عليه د دغه اثر خطي نسخې د لومړي ټوک په ٦٧٦ مخ او د چاپي بني د دوهم ټوک ۲۱۳ مخ "د کندهار نائب الحکومه ګان د سدوزيو ..." په مبحث کې د دغه شهزاده نوم قيصر، د شاه زمان زوی په ۱۲۱۹ هـ ق کال د شاه شجاع له خوا د کندهار نائب الحکومه ښوول سوی دئ (علامه رشاد اکاډيمي).

[6] د حاجي فېروزالدين مور.

[7] علامه مرحوم د دغه نايب الحکومه نوم نه دئ راوړی (م. ه).

فېروزالدین خېل زوی شهزاده قاسم هرات ته وغوښت.

## د کندهار عایدات :-

غلام سرور د انګرېزانو جاسوس په ۱۲۰۷ - ۱۲۰۹ هـ ق کلونو کې لیکلي دي :-

په کندهار کې شجاع الملک والي دئ ځلور زره سپاره او ۲۴۲ توپه لري. کلا یې ډېره ټینګه ده. کلني عایدات یې ۹۶۱۰۰۰ روپۍ دي. له دغو څخه ۲۱۰۰۰۰ شاهي خزانې ته تحویلېږي.

## د شاه شجاع په نامه د انګرېزانو حکومت :-

د پښتنو د تاریخ د دوهم ټوک په ۸۲ مخ کې لیکلي دي[8] :-

انګرېزي پوځونه د ۱۸۳۹ ع کال په اپرېل کې د بولان درې له لارې کندهار ته راوړاندي سول او غوښتل یې شاه شجاع تش په نامه پاچا د افغانستان تخت ته ورسوي. سردار کهندل خان د درو ځلورو زرو سپرو سره له کندهاره څخه د مقابلې په نیت ورووت. د پرنګیانو پولیټکل افسرانو غوښتل، چې کهندل خان د شاه شجاع په شان انګرېزانو ته تسلیم کړي. د دې مقصد له پاره یې د رشوتو په زور د کهندل خان لوی وزیر ملا نسو د ځان په ګټه استخدام کړ او د کهندل خان د تسلیمېدلو یا له وطن څخه د وتلو له پاره یې وګماره او ملا نسو هم ومنله. کهندل خان غوښته چې د پرنګیانو پر لښکر شبخون وروړي. خو د ده د پوځ ځینو افسرانو، چې حاجي خان کاکړ

---

[8] تر دغه وروسته په یادداښتو کې علامه استاد مرحوم د پښتنو د تاریخ له نومورې مخ څخه وروسته ۱۴ مخه متن ټکي په ټکي د یو بل چا په خط رانقل کړی دئ. ما ته په دې دومره زیات نقل قول کې د انتخاب مسئله ډېره مشکله ده. پخپله خوښه مې څه مطالب ځني رانقل کړل (هوتک).

هم پکښې و، غوښتل پرنګیان له شاه شجاع سره یو ځای بې ډز و ډوزه کندهار ته داخل سي. د شاه شجاع لوري ته د حاجي خان کاکړ، ملا نسو او ځینو نورو مشرانو دې اوښتلو د کهندل خان د لښکر ملا ور ماته کړه. کهندل خان ښار ته پر شا سو او تر هغه وروسته د هلمند له لاري ایران ته ولاړ.

انګرېزي پوځ د ۱۸۳۹ ع کال د اپریل په ۲۵ شاه شجاع له سرویلیام مکناټن سره یو ځای د کندهار ښار ته داخل کړل.

## حاجي خان کاکړ :-

حاجي خان احمدخیل کاکړ یو عجب سړی و. پلار یې عطامحمد نومېد او دده خپل نوم تاج محمد و. د پښین اوسېدونکی و. په ابتداء کي یي غېلي پوولې. بیا یې د رستم خان په مسجد کي څه لوست وکړ او د عزیز الله خان کاکړ نوکر سو. عزیزالله خان کاکړ ډېر هوښیار سړی و. ده به اکثر ویل چي زما ډېر چلونه او چمونه زده دي، خو تاج محمد (حاجي خان کاکړ) په دې ټولو پوهېږي او سربېره پر دې یې داسي چل هم زده چي دا ټول چلونه ماتولای او جوړولای هم سي.

تاج محمد د عزیز الله نوکري پرېښووله. پلي حج ته ولاړ چي له حجه راستون سو، د مختلفو خانانو نوکر سو، مګر د هر چا سره به چي نوکر سو هغه ته به یې څه فریب جوړ کړ او بل ته به ځني ولاړ. پای ته د وزیر فتح خان بارګزي په لښکر کي د پنځو سو سپرو مشر سو. په هرات کي یې له وزیر سره هم دروه او فرېب وکړ، مګر بیا یې د کافر کلا په جنګ کي هغه توره وکړه چي د وزیر نیت بیرته پر ښه سو. بیا د شهزاده کامران پېش خدمت سو او له هغه ځایه څخه کندهار ته شېردل خان ته راغی. د سردار شېردل خان رازونه یې دوست محمد خان ته ورسول. د دوست محمد خان له خوا د پنځو سوو سپر ومشر توب او د بامیان حکومت ورکړه سو او ګمان کېږي چي

د "حاجي خان" لقب په دغه وخت کي ورکړه سوی دئ. دوست محمد خان به اکثر ویل چي "حاجي خان ډېر ښه سړی دئ خو په درست ملک کي تر ده سپی هم نسته". بیا له دوست محمد خان څخه پېښور ته ولاړ. پېښور چي سکهانو ونیو بیرته دوست محمد خان ته ورغی. په ۱۸۳۷ ع کال چي وزیر محمد اکبر خان له هري سینگه سره په خیبر دره کي جنگېدی، حاجي خان د اکبر خان ملگری و خو له سکهانو څخه یې ځلوېښت زره روپۍ رشوت واخیست او د هغو مرسته یې شروع کړله. بیا کندهار ته رحمدل خان ته ولاړ. بیا د کهندل خان ملگری سو.

انگرېزان چي د شجاع الملک په نامه د افغانستان لور ته وکوچېدل، دی د شاه شجاع مل سو او د نصیرالدوله خطاب یې وموند. بیا یې د شاه شجاع پر ضد د دوست محمد خان مرسته وکړه[۹].

په ۱۲۴۵ هـ ق کال چي سردار یارمحمد خان د ښادي خان (هنډال) د ورور امیر خان په ملاتړ د ښادي خان د خون اخیستلو له پاره د سیداحمد شهید سره جنگ ته لستوني راوغښتل نو حاجي خان کاکړ یې د مقدمة الجیش په صورت هریانې ته ولېږه او د حاجي خان د سیداحمد له پوځ سره څو نښتي وسوې او څو پلا یې د هنډ پر کلا، چي مولانا له خپلو لښکرو سره هلته و، بریدونه وکړل. څو ورځي پس یارمحمد خان هم له نهو زرو لښکرو سره هریانې ته پسي راغی[۱۰]. یارمحمد خان د ۱۲۴۵ هـ ق د ربیع الاول پر پنځلسمه د زیدې ؟ په جنگ کي مړ سوی دئ.

د کاکړو په توبه کي د حاجي خان کلا سته چي اووه برجونه لري. ډېره مضبوطه جوړه‌سوې وه. یوه دروازه یې درلوده چي جنوب ته خلاصېدله. په کلا کي دننه ډېر عمارتونه وو او ډېري کورنۍ پکښې

---

[۹] سید احمد شهید، ۲/۱۲۱ – ۱۲۲ مخونه، (حاشیه).

[۱۰] سیداحمد شهید، ۱/۱۲۶ مخ.

اوسېدلې. د دې کلا کنډوالې تر اوسه ستهٔ[۱۱]. د حاجي خان په نامه نوري کلاوي هم (شاوخوا) سته.

په پښتانه ليکوال ۳۳۷ مخ کي د حاجي خان په کورنۍ کي د عزيزالله غمزده يادونه سته[۱۲].

## د صفدر جنګ سدوزي پاچهي او د سنګسار جنګ :-

د کندهار څخه چي د انګرېزانو سياسي نماينده راولنسن او نظامي نماينده جنرال ناټ وتل، غوښتل يې چي د کندهار حکومت له کابله جلا کړي. نوېې د کندها پاچهي د شاه شجاع زوی شهزاده تېمور ته ورانـدي کړله، مګر هغه نته وکړله. د ده تر نتي وروسته يې شهزاده صفدر جنګ د کندهار پاچا کړ او د وزير فتح خان زوی محمد قلي خان يې د ده وزير وټاکه. دې سلطنت تر ځلورو مياشتو زيات دوام ونه کړ. کهندل خان له اېرانه راغی د سنګسار (۲۸ ميله له کندهار ښار څخه ليري) په شاوخوا کي جنګ وسو. محمدقلي خان د اکا خوا ته ور واوښت او صفدر جنګ د هندوستان خوا ته وتښتېدی[۱۳].

د افغانستان در مسير تاريخ په ۵۷۰ مخ کې ليکلي دي :-

د ۱۸۴۲ ع کال د اګست په نهمه = ۲ رجب ۱۲۵۸ هـ ق جنرال ناټ او شهزاده تېمور سدوزی له کندهاره څخه د کابل په نيامت ووتل. ناټ د کندهار حکومت شهزاده صفدر جنګ ته ورکړ. شهزاده صفدر جنګ پخوا د غازيانو مل و، د پلار تر وژل کېدلو وروسته د انګرېوانو ملګری سو.

---

[۱۱] اولس سپيشل نمبر، کويټه، اکتوبر – نومبر، ۱۹۶۳ ع، ۱۲۲ مخ.

[۱۲] د حاجي خان کاکړ په باب د پښتو او پښتانه په کتاب کي سيال کاکړ په تفصيل رېغېدلی دئ.

[۱۳] د پښتنو تاريخ، ۲/ وروستی پانه، رجال و رويداد های تاريخی، ۷۶ مخ.

د پښتنو د تاریخ د دوهم ټوک په وروستۍ پاڼه کې لیکلي :-

"هر کله چې فرنګیان د قندهار نه ووتل نو هغوی د هغه ځای حکومت صفدر جنګ ته وسپاره او سردار محمدقلي خان چې د وزیر فتح خان زوی و، هغه یې وزیر کړ. په دې طریقه هغوی وغوښتل چې باوجود د افغانستان نه د وتلو د فرنګیانو څه نه څه اثر په دې ملک کښې وي. هم د دغه اصولو لاندې هغوی جلال آباد هم سیکیانو ته حواله کول غوښتل.

صفدر جنګ د ۱۸۴۲ ع د تحریک آزادي د جنګ په ابتداء کښې خو د غازیانو سره شامل سوی و، مګر څه وخت چې شجاع الدوله د هغه پلار قتل کړو نو هغه بیا د فرنګیانو سره ملګری شو او د هغوی دپاره یې غازیانو سره ځو جنګونه وکړل د انګریزانو دا خیال وچې چونکه د قندهار د حکومت واګې موږ یو سدوزي او یو محمدزي ته حواله کړې په دې سبب د دې ځای حکومت مستقل طور د دې دواړو په لاس کښې پاتې شی او په دې شان به دوی زموږ زیراثر وي، مګر لا پوره څلور میاشتې هم نه وې تېرې شوې چې کهندل خان د اېرانه راغلو او د هلمند په غاړه دېره شو، په دې مقام سردار اختر خان، سرفراز خان او شاه پسند خان او نور د فرنګیانو مخالف سرداران هغه سره یو ځای شول او په قندهاریې حمله وکړه د کهندل خان د رارسېدو سره محمدقلي خان خو د خپل تره طرف ته راواوښت مګر صفدر جنګ د (مرز سنګسار)[۱۴] په مقام باندې چې د قندهار ۲۸ میله قبلې طرف ته دی د کهندل خان مقابله وکړه مګر چونکه ټول قام د انګرېزانو د تعلقاتو په سبب د صفدر جنګ نه خلاف و نو ړومبنۍ حمله

---

[۱۴] د سنګسار نوم په یاداښتو کې په همدې شکل راغلی دئ، ما کټ مټ وکیښ. د قاضي عطاء الله خان مرحوم د پښتنو تاریخ راسره نسته، چې ورسره مقابله یې کړم. سنګسار چې میرزایانو (سنګ حصار) کړی دئ، د کندهار ښار جنوب ته د ارغنداو رود پر غاړه سنځري ته نژدې یو کلی دئ (هوتک).

کښې د هغه نیم فوج د کهندل خان طرف ته راواوښت او باقي نیم شکست وخوړ. کهندل خان فورا په قندهار باندي قبضه وکړه او عام خلقو د هغو شاندار استقبال وکړو. د شکست خوړلو نه پس صفدر جنګ په ډېر تکلیف او مشکل شکارپور ته راوتښتېدو او د هغه ځای نه لدهانې ته د خپلو ورونو سره شامل شو. د مرز سنګسار د جنګ نه پس د انګرېزانو د اثر اخري نخښه د افغانستان نه ورکه شوه".

## د انګرېزانو سره په لومړي جنګ کي د کندهاریانو برخه :-

د تاریخ سیاسي افغانستان په ۱۵۲ مخ کي مهدي فرخ کښلي دي :-

په کندهار کي چي انګرېزانو حکومت کاوه، اختر خان زمینداوری پورته سو، د انګرېزانو لښکرو ته یې ماته ورکړه. د کندهار انګرېزي حاکم راولنسن د زمینداور، تیري، او دېراوت پښتانه مشران بندیان کړل او د کدوخان مومند په لاس یې غزني ته بندیان ولېږل. غلجیو لار ورته ونیوله، کدوخان یې له ۳٦ تنو ساتندویو سپایانو سره وواژه او پښتانه مشران یې د انګرېزانو له بنده خوشي کړل.

تاج محمد خان الکوزي او قلندر خان کاکړ تر هرات دروازې دباندي کلدین انګرېز وواژه. انګرېزانو د قلندر خان پل پسي واخیست، ویې نیو، سر یې ځني غوڅ کړ او په چارسو کي یې وځړاوه.

شهزاده صفدر جنګ (د شاه شجاع زوی) چي د انګرېزانو مخالف و، په کلک[۱۵] کي یې له غازیانو سره اړولي و. انګرېزان او شهزاده سکندر جنګ ته ورغلل. انګرېزان مات سول. پښتنو په زاړه ښار کي سنګر ونیو. د شپې یې پر انګرېزانو برید وکړ. په دغه جنګ کي انګرېزانو ماته وکړه او

---

[۱۵] کلک (د لومړي په پېښ) د یوه کلي نوم دئ، چي د پنجوایي ولسوالي کي د سولاغي کلي ښنګ ته موقعیت لري (م. هوتک).

توپخانه یې د غازیانو په لاس کښېوتله. وروسته چې انګرېزانو ته کومک راورسېد پښتنو میدان پرېښو. صفدر جنګ او محمدعطا خان وتښتېدل. مستر لیچ او راولنسن د پښتنو ځني کلاوي خرابي کړلې، لکه :-

د الکوزي اخوندزاده کلا، د یحیٰی خان بامیزي کلا، د غفار خان الکوزي کلا، د رباط د خلیفه کلا، د حضرت صاحب کلا.

په پښین کي هم پښتنو پر انګرېزانو برید وکړ او د انګرېزانو خزانه یې خپله کړله. د انګرېزانو د لښکرو اووه سوه تنه یې ووژل.

شهزاده صفدر جنګ بل جنګ په کوه نګار کي وکړ، مګر د شهزاده لښکر مات سو او دی وتښتېد.

د انګرېزانو لښکر د جنرال ناټ په مشری کندهار ته ورسېد. صفدر جنګ شپږ میاشتي د کندهار نائب الحکومه و، څو کهندل خان له ایرانه راغی صفدر جنګ یې ونیو او کابل ته یې بندي ولېږه. وروسته لودهیانې ته واستول سو او هلته مېشت سو.

په غزني کي هم د انګرېزانو پوځونه د کلنل پالمر په مشری ۱۸ ورځي کلابند سول او ډېر تلفات یې ورکړل.



## د فتح جنګ حکومت :-

شاه شجاع چي له کندهاره څخه کابل ته تی، په کندهار کي یې خپل زوی فتح جنګ د والي په توګه او مستر ابرټ لیچ د هغه د مشاور په توګه پرېښوول[١٦] جنرال ناټ William Nott په کندهار کي د انګرېزانو د پوځ سپهسالار و.

---

(١٦) مستر لیچ د سیاسي نماینده په نامه یادېده. د مستر لیچ پر ځای هانري راولنسن په کندهار کي سیاسي نماینده و (وګ : مستشرقین ۱۹۹ مخ). مستشرقین د علامه بابا رحمه الله ناچاپه اثر دئ، (علامه رشاد اکادیمي).

فتح جنګ د مستر ليچ هدايتونه نه عملي کول څکه نو د مستر ليچ د شکايت په اغېزه د شهزاده فتح جنګ پر ځای شهزاده صفدر جنګ د کندهار والي مقرر سو.

## په کندهار کي د جنرال ناټ کلابندول :-

د شوکت افغان په ۱۳۶ مخ کې کښلي دي :-

د ۱۸۴۱ ع د پای په مياشتو کي جنرل ناټ له خپلو لښکرو سره د کندهار په کلا کي کلابند و، فقط د ځان دفاع يې کوله. په غزني کي د پرنګيانو پوځ د جنرال پالمر تر مشرتابه لاندي کلابند و.

په ۱۳۷ مخ کې زياته کړې ده :-

د ۱۸۴۱ ع کال د دسمبر په ۲۳ چي مکناټن د ملي قهرمان غازي سردار محمداکبر خان له خوا په کابل کي ووژل سو او انګريزان د ۱۸۴۱ ع کال د جنورۍ په شپږمه له کابله څخه د جلال آباد په نيامت وکوچيدل، پر لاري د دغه پوځ شپاړس نيم زره تنه سپاهيان او د هغو متعلقين د غازيانو د حملو، لوږي او يخ له امله ومړل، فقط يو ډاکټر برايډن مرژواندی جلال آباد ته ورسيد. په جلال آباد کي د جنرال سيل په مشرۍ د انګرېزانو يو غونډ پروت و. په هندوستان کي د ايسټ انډيا کمپنۍ ګورنر جنرال لارډ اکلينډ Ukland د جلال آباد د پوځ مرستي ته د انګرېزانو يو بل پوځ په پېښور کي د جنرال پالک په مشرتابه تهيه کړ او په کندهار کي د جنرال ناټ د مرستي له پاره يې يو پوځ د جنرال انګلينډ تر مشرتابه لاندي په سنده کي تهيه کړ، خو پخپله لارډ اکلينډ د ايسټ انډيا د ګورنر جنرالۍ څخه معزول سو، او د ده پر ځای لارډ النبرا په هند کي د ايسټ انډيا کمپنۍ ګورنر جنرال مقرر سو او د ۱۸۴۲ ع د مارچ په وروستيو ورځو کي هندوستان ته راغی. جنرال پالک د ۱۸۴۲ ع د اپريل په شپاړسمه جلال آباد ته خپل

پوځونه راورسول او جنرال سېل يې له کلابندۍ خلاص کړ او د سپتمبر پر ؟ يې ځان کابل ته ورساوه. جنرل انکلينډ له خپلو پوځونو سره کندهار ته ځان ورساوه او جنرل ناټ يې له کلابندۍ خلاص کړ. جنرال ناټ کندهار جنرال انکلينډ ته وسپاره او د ده له تازه دمه پوځو سره مخ پر کابل رهي سو. غزني يې ونيوه او کابل ته يې ځان ورساوه.

## د کندهار او سيستان روابط :-

د (ايل ها، چادرنشينان و طوايف عشايری ايران) د دوهم ټوک په ۷۹۰ مخ کې ليکلي دي :-

د ملک جلال الدين کياني سيستاني خور د شهزاده کامران سدوزي ماينه وه. په دغه وخت کي چي کامران د کندهار نائب الحکومه و، د سرابنديانو مشر لومړی رضا خان[۱۷] چي له جلال الدين سره شخړه پېښه سوه، کامران د جلال الدين پر سيله ودرېده او پر سيستان يې بريد وکړ. مگر په دغه وخت کي محمدرضا خان ومړ او امير خان زوی يې پر ځای کښيناست. ده د کامران په مقابل کي بری تر لاسه نه کړ. البته د دوهم رضا خان (۱۸۳۷ – ۱۸۴۵ ع) په وختو کي، بله پلا د کامران پوځونه تر وشتک پوري ولاړل، خو سوله وسوه. د محمدرضا خان لورېي وزير يارمحمد خان او د کامران لورېي د رضا خان زوی ته ورکړله.

د دوهم محمدرضا خان تر مرگ وروسته (۱۸۴۵ ع) د سرابنديو د سرداری له پاره جنگ پېښ سو. خاني د دوهم رضا خان ورور علي خان د ځان او د دوهم رضا خان زوی لطف علي خان د ځان حق گانه. شهزاده کامران په دغه وخت کي د هرات حاکم او کهندل خان د کندهار حاکم و. کامران د لطف علي خان او کهندل خان د علي خان پله ونيوله. په دغه

---

[۱۷] له ۱۷۹۹ع څخه د دغي قبيلې مشر و.

شخړه کي عليخان بريالی سو. لطف علي خان يې ړوند کړ او د رضاخان پر ځای د قبيلې سردار سو.

## پر کندهار باندي د شهزاده شجاع الملک او شهزاده قيصر بريد :-

د فارسي اخبار و مراسلات په ۲۱۸ اخبار کي چي له امرتسره څخه د ۱۲۱۷ هـ ق کال د شوال له ۲۱ څخه (۱۴ فبروري ۱۸۰۳) د ميانی‌تر دوهمي پوري د لکهنو انگرېز افسر ته کښل سوی دئ، ليکلي دي :-

له پېښوره څخه راغلي خلک وايي د زمان شاه زوی شهزاده قيصر او شهزاده شجاع الملک د غلجيو او درانيو په مرسته پر کندهار بريد وکړ. د شاه محمود له خوا د کندهار نائب الحکومه شهزاده کامران او سردار اکرم خان د دوی مخه ونيوله. کامران مات سو، کلابند سو. په جنگ کي د شهزاده کامران پر سترگه گولی‌ ونښتله. شاه محمود نيت لري، د زوی مرستي ته له کابله کندهار ته ولاړ سي. مگر واورو لاره بنده کړېده. له پېښوره فتح خان په تلوار کندهار ته رهي سو. د ډېرو لاريې پرېښووله د هزار درخت پر لار کندهار ته ولاړ.

د افضل خان سردار مور، چي ډېره خزانه ورسره ده تر اوسه پوري اووه لکه روپۍ شهزاده قيصر او شاه شجاع ته ورکړي دي او چي اړ سي نوري روپۍ هم ورکوي.

## حاجي محمد جاسوس په کندهار کي (۱۸) :-

د شرکت هند شرقي او زمانشاه په دريم فصل کې کښلي دي :-

---

(۱۸) د دغه او ورپسې عنوان مطالب ما (هوتک) يو په بل کي اخښلي دي.

سرجان مالکم د ایران په دربار کي د انګرېزانو فوق العاده سفیر، چي د ۱۷۹۹ ع کال د دسمبر په ۲۹ ورځ = د ۱۲۱۴ هـ ق د برات په لومړۍ ورځ له بمبئي څخه مخ پر ایران را رهي سو په ابرشهر کي یې له خپل جاسوس حاجي محمد سره ولیدل. حاجي محمد پخوا تر دې د سوداګرو په جامه کي کندهار ته لېږل سوی و، چي د زمان شاه د لښکرو په باب معلومات راغونډ کړي. حاجي محمد سرجان مالکم ته وویل :-

زمان شاه خپل لښکر تیاراوه چي پر مشهد برید وکړي ځکه چي هغه وخت مشهد د تهران د پاچهی له خوا تر تهدید لاندي و.

## په کندهار کي د زمان شاه له خوا د خانانو وژل :-

د ایسټ انډیا په راپور کې کښلي دي چي حاجي محمد جاسوس په ابرشهر (ایران) کي سرجان مالکم ته وویل زمان شاه چي د مشهد په نیامت کندهار ته راورسېد، پوه سو چي د ده په لښکرو کي درزونه لوېدلي دي. دوولس تنه خانان یې ووژل او ډېر ژر یې له کندهاره څخه ځان هرات ته ورساوه. دا واقعه د ۱۲۱۳ هـ ق د اواخرو ده.

په حیات افغاني کي د وژل سوو سردارانو په جمله کي د پاینده خان[۱۹]، نورمحمد خان؟، امین الملک (قمرالدین خان؟)، محمدعظیم خان الکوزی، هزار خان غلجی او اسلم خان نومونه راغلي دي. شاه زمان ته خبر ورکړه سوی و، چي دوی له شاه محمود سدوزي سره اړیکي لري او غواړي هغه پاچا کړي.

---

[۱۹] د پاینده خان د وژلو نېټه زموږ په آثارو کي تفاوتونه لري.

## هغه انګرېزي افسران چې د افغانستان په جګړو کې يې برخه درلوده :-

### مکناټن (۱۷۹۳ - ۱۸۴۱ ع) :-

Sir William Hay Macnaghten

د Sir Frances Workman Macnaghten دوهم زوی دئ. د ۱۷۹۳ د اګسټ په میاشت کې زېږېدلی دئ. پلارېې د مدراس او بیا کلکتې د مرافعې Supreme Court قاضي و. په ۱۸۰۹ ع کال په مدراس کې سپاهي سو، په حیدرآباد او میسور کې یې نظامي نوکري وې. په ۱۸۱۴ کال په بنګال کې ملکي مامور سو. په فورټ ویلیام کالج کې یې د ژبو د زده کړې په برخه کې جایزې واخیستلې. وروسته له ۱۸۲۲ څخه تر ۱۸۳۰ ع پورې په صدر دېوان عدالت کې مامور سو. د هندوانو او مسلمانانو د قوانینو په باب یې کتاب ولیکه، چې له ۱۸۳۰ څخه تر ۱۸۳۳ پورې خپور سو.

لارډ بین ټینګ W. Bentinck چې له رنجیت سنګه سره په اوپړ؟ کې خبرې کولې، دی ورسره و. له ۱۸۳۳ څخه تر ۱۸۳۷ پورې د سیاسي او پټو چارو د دفتر سکرټري و.

په ۱۸۳۷ چې ګورنر جنرال اکلینډ د شمالي هندوستان دوره کوله، دی ورسره و او په ۱۸۳۸ یې په هغه غونډه کې برخه واخیستله چې ګورنر جنرال، رنجیت سنګه او شاه شجاع د افغانستان د تسخیر تړون کاوه. دا مسوده هم ده جوړه کړې وه او ګورنر جنرال د ۱۸۳۸ کال د اکتوبر په لومړۍ ورځ لاسلیک کړل. په ۱۸۳۸ کې د شاه شجاع په دربار کې د سیاسي نماینده او وزیر په توګه مقرر سو.

### الکساندر برنس Sir Alexander Burnes (۱۸۰۵ - ۱۸۴۱):-

د نوای معارک کراچي چاپ، د تعلیقاتو په برخه ۸۸۸ مخ کې کښلي

دي:-

الکساندر برنس د جیمس برنس زوی، د ۱۸۰۵ ع کال د مې پر ۱٦ زېږېدلی دی. د دوی کورنۍ د انګرېزي ژبې د مشهور شاعر روبرټ برنس Robert Burns (۱۷۵۹ - ۱۷۹٦) سکاټ لینډي سره نژدېکت درلود، ځکه نو د برنس کورنۍ نوم یې غوره کړی و. د مانتروس په اکاډیمۍ کې یې درس ولوست، په ۱٦ کلنۍ کې په ایسټ انډیا کمپنۍ کې نوکر سو، په ۱۸۲۳ ع کال سورت ته راغی او ترجمان سو، په ۱۸۲۵ ع کال کچهو ته تبدیل سو، په ۱۸۳۰ ع کال د رنجیت سنګه دربار ته د ایلچي په توګه ولاړ او څه اسان یې په سوغات کې رنجیت ته وروستل، په ۱۸۳۲ ع کال د ایلچي په توګه د افغانستان او اېران له لاري بخارا ته ولاړ، له ۱۸۳۳ ع کاله څخه تر ۱۸۳۵ کاله پوري په انګلینډ کې و، په ۱۸۳۵ ع کال د سنده د امیرانو دربار ته د ایلچي په توګه ولاړ او هلته یې په سند کې د کښتۍ چلولو په باب یو تړون ورسره وکړ، په ۱۸۳۷ کال د هندوستان ګورنر جنرال ارل آف اکلینډ له امیر دوست محمد خان سره د خبرو له پاره یوه ډله د الکساندر برنس په مشرۍ چې دوه‌ډېرش کلن ځوان و، کابل ته راولېږله، منشي یې موهن لال و، دا ډله د اګسټ پر ۲۲ کابل ته را رهي سوه، د سپتمبر پر ۲۱ یې په کابل کې له امیره سره ولیدل، په دغه هیئات کې مېجر لیچ، لفټنټ ووډ او ډاکټر لارډ هم ورسره و، دغه هیئات د ۱۸۳۸ ع کال د اپریل پر ۲٦ له کابله هندوستان ته رهي سو.

د انګرېزانو لښکري چې د منحوس شاه شجاع په نامه پر افغانستان مسلطي سولې، برنس د سیاسي نماینده په توګه په کابل کې مقرر و، د ۱۸۴۱ ع کال د نوامبر پر دوهمه (د ۱۲۵۷ هـ ق کال د روژې ۱۸[۲۰]) چې د کابل غازیان وپاڅېدل تر ټولو دمخه یې دی وواژه.

---

[۲۰] دغه نېټه د روژې د ۱٦ سره برابره ده، (ش. ر).

د ده یو کتاب (Travels to Bokhara) په ۱۸۳۴ ع کال په لندن کې د John Murray په اهتمام چاپ سوی دی، درې ټوکه دی.

بل کتاب یې Journey to Cabool and residence in that city in) (Personal narratives) (the years ۱۸۳۶ - ۱۸۳۸ په ۱۸۴۲ ع کال په لندن کې چاپ سوی دی، ۳۹۸ مخه لري، نقشې او تصویرونه هم لري، په دغه کتاب کې یې په افغانستان کې خپل سفر او له ۱۸۳۶ ع کاله څخه تر ۱۸۳۸ ع پورې د خپل هیئات کارونه څېړلي دي. دوهم وار په ۱۸۶۱ ع کال په لاهور کې چاپ سوی دی[۲۱].

---

[۲۱] وګ: Dictionary of India Biography د C. E. Buckland تالیف ۲۶۶ مخ (وروسته علامه مرحوم د الکزندر برنس نوم لیکلی دئ خو نور تفصیل نسته. هوتک). د الکساندر برنس په اړه تفصیل د علامه بابا رحمة الله علیه په ناچاپه اثر "مستشرقین" او د "ملي اتل غازي وزیر محمداکبر خان" په ۲۲ مخ کې راغلی دئ، چې لوستونکو ته د هوسایي له پاره مو دلته رانقل کړ، (علامه رشاد اکاډیمي).

## د سردار کهندل خان د واکمنۍ ( حکمروایی ) دوره :-

سردار کهندل خان دوه واره د کندهار واکمن سوی دئ.

لومړی وار د پردل خان تر مرگ وروسته د ۱۲۴۵ هـ ق کال د لوی اختر د میاشتي په لومړۍ هفته کي د کندهار واک د ده سو[1]. دې واري واکمنی يې په قمري حساب نهه کاله و دوې میاشتي دوام وکړ چي په شمسي حساب پنځه هفتې کم نهه کاله کېږي.

د ۱۲۵۵ هـ ق کال د صفري په لومړۍ هفته کي[2] چي د انگرېزانو لښکري د شاه شجاع سدوزي له پاره د پاچهۍ نیولو په پلمه پر کندهار راتوی سوې، سردار کهندل خان له ورونو، زامنو او ورېرو سره ایران ته وتښتېدی او درې کاله و نهه میاشتي پس د ۱۲۵۸ هـ ق کال د میانۍ په میاشت کي کندهار ته راغی[3] او کندهار يې له شهزاده صفدر جنگ څخه ونیو.

دوهمي پلا پاچهي يې په قمري حساب ۱۳ کاله و يوه میاشت دوام وکړ چي په شمسي حساب تقریباً دوولس کاله و نهه میاشتي کېږي. دی د ۱۲۷۱ هـ ق کال د لوی اختر د میاشتي په اوومه مړ سو[4].

پر کندهار باندي د سردار کهندل خان ټوله واکمني یوویشت کاله و درې میاشتي وه چي په شمسي حساب تقریباً شل کاله و اووه میاشتي کېږي.

## سردار کهندل خان او سیستان :-

په ۱۲۵۵ هـ ق کال چي سردار کهندل خان او ورونه يې د شاه شجاع

---

(1) دا نېټه د ۱۸۳۰ ع کال د می له وروستۍ هفتې سره برابرېږي.

(2) شاه شجاع د انگرېزانو په مرسته د ۱۸۳۹ ع کال د اپریل په شلمه کندهار ونیوی.

(3) دا نېټه د ۱۸۴۲ ع کال د دسمبر له میاشتي سره برابرېږي.

(4) دا نېټه د ۱۸۵۵ ع کال د اگسټ له ۲۱ سره برابرېږي.

او پرنګي د برید له امله له کندهاره ایران ته تلل، له سیستانه تېر سول. دري کاله پس چي بیرته کندهار ته ستنېدل، سیستان ته چي راورسېدل محمدرضا خان د سرابندي قبیلې مشر مړ سوی و او پر سرداري باندي د محمدرضا خان د ورور سردار علي خان او د محمدرضا خان د زوی لطف علیخان جنګ و. د سردار کهندل خان خوښه دا وه چي علیخان سردار سي او یارمحمد خان، چي د لطف علي خان خور د ده مېړور وه، غوښته چي لطف علي د سرابندیو سردار سي. اووه اته کاله دا شخړه اوږده سوه. پای ته لطف علي خان د اکا له لاسه ړوند کړه سو او د سردار رحمدل خان په مرسته، چي سردار کهندل خان ورلېږلی و، علیخان د سه کوهي د سرداری پر مسند کښېناست.

## په کندهار پوري د مستنګ نښلول :-

ګل خان نصیر بلوڅ د تاریخ بلوچستان په ۲۶۴/۱ مخ کي لیکلي دي:-

د قلات خان دوهم مهراب خان چي له انګرېزانو سره په غزا کي په ۱۸۳۹ وواژه سو، د دغه کال د دسمبر په میاشت کي انګرېزانو د ده تربور شهنواز خان د ده پر ځای د قلات خان مقرر کړ(۵).

نصیر خان لیکي :-

انګرېزانو د مستنګ سیمه په کوټه پوري ونښلوله او د کوټي د پولیټکل اجینب مبین تر اداري لاندي یې کړله. په مستنګ کي یې محمدخان د بلوڅو د شهواني قبیلې سردار حاکم مقرر کړ. د میاشتي یې دوه سوه روپۍ

---

(۵) شهنواز خان د میراحمد خان زوی د بهرام خان لمسی د حاجي خان کړوسی د محبت خان کوسی او د عبدالله خان کودی و. احمدیار خان د دوهم مهراب خان په امر په قلات کي وواژه سو.

تنخواه ورکوله.

## کندهار ته د کندهاري سردارانو راستنېدل[۶] :-

د تاریخ سیاسی افغانستان په ۱۵۹ مخ کي مهدي فرخ کښلي دي :-

سردار کهندل خان، سردار مهردل خان او سردار رحمدل خان چي د شاه شجاع او مکناټن په حمله کي له کندهاره اېران ته ولاړل، په کرمان کي اوسېدل. څو پلا يې د اېران له پاچا څخه کندهار ته د تللو اجازه وغوښتله. د اېران پاچا د انګرېزانو د خوابدي کېدلو له بېري کندهار ته د تګ اجازه ورنه کړله. کله چي د انګرېزانو ټولي لښکري له افغانستانه ووتلې نو د اېران پاچا هم دوی ته وطن ته د ستنېدلو اجازه ورکړله. عباسقلي د کرمان والي د پاچا په امر سل د ماري اوښانو[۷] سپاره ورسره کړل او د سیستان حاکم محمدرضا خان درې زره سپاره ورسره وګومارل. خپل زوی لطف علي خان يې هم ورسره کړ. سردارانو کندهار ونيو. سردار کهندل خان خپل زوی سلطان عليخان د کور ودانۍ ويلو له پاره تهران ته ولېږه. سلطان عليخان د ۱۲۷۰ هـ ق کال ؟ د محرمي په ۱۹ تهران ته ورسېد او د اېران د پاچا له خوا د مظفرالدوله لقب ورکړه سو. ميرزا ارضي خان کردستاني يې، چي د دارالفنون د مدرسې فارغ التحصيل و، د کندهار د پوځونو د تعليم او تربيت له پاره ورسره ولېږه. يو زر توپک او څلور زره تومانه نقدي روپۍ د سلطان علي خان په لاس کهندل خان ته ورولېږلې؟

## پر کندهار باندي د شاه شجاع برید :-

شاه شجاع د ۱۲۴۹ هـ ق کال د لوی اختر په میاشت د ذاکر په بند کي

---

[۶] عنوان ما ورته وټاکه، په اصل کي نسته (هوتک).

[۷] ماري يو راز اوښان دي. ځيني يې دوه بوکه لري او په ځغاسته چټک دي (هوتک).

وار ول[8]. کهندل خان او مهردل خان په ښار کې وو. کله کله به دغه سرداران، سردار محمدصدیق خان (د کهندل خان زوی)، سردار میرافضل خان (د پردل خان زوی)، سیدال خان او خدای نظر خان (د کندهاري سردارانو ماما) راوتل او جنګ به یې پیل کړ. سردار دوست محمد خان[9] له کابله د کندهاري سردارانو په مرسته ورغی. دغي کلا بندۍ ۴۹ ورځې دوام وکړ. سردار دوست محمد خان د ۱۲۵۰ هـ ق کال د صفري په دوه ویشتمه له کابل څخه د ورونو په مرسته له شلو زرو سپرو، پنځه زرو پلو او اتلسو توپو سره راغی.

په لومړۍ ورځ سردار محمداکبر خان له ۱۲ زرو تنو او څلورو توپو سره پر شاه شجاع برید وکړ. په دغه ورځ د شاه شجاع یو توپ وچاود ځکه نو د شاه شجاع پوځونه را تر شا سول.

دوهمه ورځ امیر دوست محمد خان له ټول لښکر سره برید پر وکړ. شاه شجاع خپل پوځ د سمندرخان او جانداد خان په مشرۍ مقابلې ته ور ولېږه، خو ماتې وخوړله. شاه شجاع وتښتید. مستر کیمبل Campbell په دغه جنګ کې د سردار محمدافضل خان په لاس بندي سو. مسلمان یې کړ او شېرمحمد نوم یې پر کښېښو، چې بیا د جنرال شېرمحمد په نامه په ترکستان کې د محمد افضل خان د لښکرو جنرال و[10].

## پر کندهار باندي د شاه شجاع وروستی برید :-

شاه شجاع د ۱۲۵۵ هـ ق کال د صفري په ۱۲ په کندهار ننوت او سبا

---

(8) تاریخ سیاسی افغانستان، ۱۰٦ مخ.

(9) سردار دوست محمد خان په ۱۲۵۳ هـ ق کال چې له سکهانو سره د جنګ له پاره آمادګي اعلان کړه پر ځان یې د امارت نوم کښېښوو.

(10) نوای معارک، ۸۸۴ مخ.

چې د صفري ۱۳ وه د شاه په نامه پر تخت کښېنوست[۱۱].

## پر بلوچستان باندي د کندهاري سردارانو برید :-

شاه شجاع چې د پښتنو سردارانو څخه وتښتېدی، د کلات خان محراب خان ته يې پناه يووړه. سردار رحمدل خان له يوه جرار سپاره پوځ سره تر منګچر پوري چې له کلات څخه يو مزل ليري دئ، وریسي ورغی. محراب خان د داروغه ګل محمد په لاس دا پیغام ورولېږه :-

"شجاع الملک زما کور ته پناه راوړې ده. تاسي يې ما ته راپرېږدئ او ستانه سئ. که پر مخ راسئ زه به د بلوڅي ننګي سره سم خپل سر درکړم خو شجاع الملک به در ونه سپارم".

رحمدل خان د محراب خان پرده وکړه او بيرته کندهار ته ستون سو[۱۲].

## پر شال باندي د کندهاري سردارانو برید :-

د ۱۲۴۱ هـ ق کال په آخرو ورځو کي کندهاري سردارانو يو کندهاري پوځ د عبدالله خان دراني په مشرتوب د شال (کویټې) د نیولو له پاره ولېږه، او دا پوځ مي زی[۱۳] ته چي له کویټې څخه ديرش کوسه ليري دئ راورسېد، د بلوچستان پوځ د محراب خان د وزیر اخوند فتح محمد په مشرتوب مستونګ ته راغی (اخوند فتح محمد په دغو وختو کي ۱۲۰ کلن و. دی له نادر افشار سره نوکر و، بیا د لومړي نصیر خان وزیر سو. د میر محمود

---

(۱۱) تاریخ سیاسی ایران، ۱۲۱ مخ.

(۱۲) تواریخ بلوچستان، ۲۲۸ مخ.

(۱۳) مي زی د توبې له درې څخه لس کوسه فاصله لري او د کویټې و خوا ته پروت دئ. د توبې درې ته کوړک تېر هم وايي (وګ : سیداحمد شهید، ۱/۳۲۲ مخ).

او محراب خان په وختو کي هم وزير و). د ۱۲۴۲ کال د محرمي په ۱۹ ورځ چي سيداحمد شهيد له کويټې څخه مى زى تـه ورسيد، د عبدالله خان دراني مېلمه و. د ۱۲۴۲ کال د محرمي پـه ۲۵ مـه ورځ = ۲۹ – اگست ۱۸۲۶ چي شېردل خان په کندهار کي د ۴۹ کالو په عمر پـه لويـه تبـه ومړ، لـه بلوچستان سره سوله وسوه او پردل خان دکندهار حاکم سو[۱۴].

د تاريخ بلوچستان په ۲۲۲ مخ کې ليکلي دي :-

يو وخت سردار رحمدل خان د سيوى په نيت له يوه پوځ او څو توپـو سره شالکوټ ته راغى او د کلات د خان محراب خـان بلـوڅ لـه خـوا مقرر سوى حاکم محمد شهى يې له کوټي ويوست. کوټـه يـې پخپلـه قبضـه کـي راوستله. د سردار کوندل خان له خوا مهردل خان د رحمدل خـان مرسـتي ته راولېږل سو. دواړو په گډه پر مستنگ لښکري وخوځـولې او مسـتنگ يـې ونيو[۱۵].

## د سردار پردل خان بريد :-

په ۱۲۳۲ هـ ق کال منصور خان بارگزي او اخوند فتح محمد (د کـلات د خان وزير) له کندهاره وزير فتح خان ته، چي په هرات کي و، وليکل چـي د عبدالقادر په لمسون د مير قادر بخش پـه لاس د اخونـد فـتح محمـد مشر زوى ميرمبارک د شهادت او د کلات د خان له خوا د مير قادر بخش د قاتل، چي د اخوند صاحب زوم و، د وژلو خبر واستاوه. وزير فتح خـان خپـل ورور پردل خان ته وکښل :-

له اخوند صاحب سره بلوچستان تـه ولاړ سـه او د ده د زوى قـاتلان عبدالقادر او پلاريې عبدالرحمن قصاص کړه. هغه وچـي پـردل خـان لـه

---

[۱۴] سيداحمد شهيد، ۳۱۹/۱ مخ، ۳۲۲/۱ مخ، ۱/ ۳۲۴ مخ، د لاهور چاپ.

[۱۵] سلطان محمد خان پانى هم دا مطلب د (کوټه) په ۲۹ مخ کي راوړى دئ.

اخوند صاحب سره گنجابې ته ولاړ هلته د مير محراب (خان کلات) په خواهش اخوند صاحب د خپل زوی او زوم قاتلان وبخښل. خان صاحب (د کلات) د کاله اووه زره روپۍ (کلنگ) سردار پردل خان ته ومنلې او خوشاله يې بيرته کندهار ته ستون کړ[١٦].

## د سردار شېردل خان بريد :-

د ملا فتح محمد زوی ملا محمدصديق پخپل کتاب تاريخ بلوچستان کي کښلي دي :-

د کلات خان چي د دادمحمد پښتانه په سلا سردار مهرالله خان رئيساني بلوڅ وواژه، سردار مير اسد خان رئيساني، سردار محمدخان شهواني، سيد محمدشريف او سيد عبدالکريم رئيساني (د مير اسد خان ورور) او مير مصري منگل؟ په يوه سلا پښين ته ولاړل او د کندهار واکمن سردار شېردل خان ته يې استغاثه ولېږل. سردار شېردل خان خورا غيرتمن سړی و، خپل سړي يې راولېږل او دوی يې کندهار ته وغوښتل خو دوی ورسره ولانه ړل.

سردار شېردل خان له عسکرو سره پښين ته راغی او سردار اسد خان، محمد خان شهواني او سيد محمدشريف يې له ځانه سره کندهار ته بوتلل (مير عبدالکريم او مير مصري يې تسلی کړل، بيرته يې وطن ته ولېږل).

دا خبر چي د کلات خان ته ورسېد، له دې بېري چي ډېر ژر به شېردل خان له خپلو پوځونو سره بريد پر وکاندي، خپل وزير اخوند فتح محمد يې له شاغاسي نورمحمد خان سره د لښکرو د راټولولو له پاره مستنگ ته ولېږل. سردار شېردل خان له ١٠ يا ١٢ زرو سپرو او څو توپو سره پر راغی او په حاجي کلا کي يې ورته واړول. ناڅاپه سردار شېردل خان لويي تبي ونيو،

---

[١٦] تاريخ بلوچستان، ٢١٠ مخ.

لښکر يې بيرته کندهار ته بې جنګه ستون سو. سردار شېردل خان چې کندهار ته ورسېد ومړ[۱۷] او پردل خان يې پر ځای کښېنوست.

## پر هرات باندي د سرداري کندهاريانو بريد :-

د تازه نوای معارک په ۱۸۵ – ۲۰۸ مخونو کې ليکلي دي :-

په ۱۲۳۸ هـ ق کال شهزاده کامران چې د هرات واکمن و، پر کندهار باندي د بريد په نيامت فراه ته راغی. کندهاري سرداران له څلور نيمو زرو سپرو سره د ده جنګ ته مخ پر فراه وخوځېدل او سردار مهردل خان يې په کندهار کي د سرپرست په توګه پرېښوو.

دې سفر د ۱۲۳۸ هـ ق له څلورمي خور څخه د کال تر پايه پوري دوام وکړ. سرداران د ۱۲۳۸ هـ ق کال د لوی اختر د مياشتي په ۲۵ بيرته کندهار ته راستانه سول.

## له ايران سره د سردارانو تړون :-

د لندن خارجه وزير لارډ کليز کارډ چي کوم ليک د روس خارجه وزير ته استولی دئ، په هغه کي يې ليکلي دي :-

"دګورنمنټ برطانيه په قبضه کي د هغي عهدنامې نقل دئ کومه چي د ايران او د قندهار د حکومت تر منځ سوې ده[۱۸]".

دغه ليک غالباً په ۱۸۳۸ ع کي استول سوی دئ.

## د روسي سفير جان ويتکيويچ راتګ کندهار ته :-

روسي سفير د کندهار له لاري د ۱۲۳۷ ع کال د نومبر په مياشت کي

---

[۱۷] سردار شېردل خان په ۱۲۴۲ ق کال د محرمي په ۲۵ د جمعې په ورځ ومړ. دی اته کاله د کندهار واکمن و.

[۱۸] د پښتنو تاريخ، ۲۷۴/۱ مخ.

کابل ته ورسېدی. دغه وخت الکسندر برنس د انگرېزانو نماینده هم په کابل کي و. د برنس د هیئت اعضاء دا کسان وو :-

- میجر لیچ، چي بیا وروسته د شاه شجاع په دوهمه پاچهي کي د کندهار نائب الحکومه سو
- لیفټننټ ووډ
- ډاکټر لارډ
- منشي موهن لال

د دغه هیئت د راتگ کال کابل ته ۱۸۳۶ لیکل سوی دئ[۱۹] خو د نوای معارک په حواله یې کابل ته رارسېدل په ۱۸۳۷ ع کي دي.

ویتکویچ[۲۰] په کندهار کي له کهندل خان سره یو تړون لاسلیک کړ. په دې تړون کي د انگرېزانو پر ضد باندي د ایران او روس سره کهندل خان د همکاری وعده ورکړې وه[۲۱].

پر کابل باندي د کندهاري سردارانو حمله :-

امیر دوست محمد خان چي دوهمه پلا د کابل امیر سو، وراره او زوم یې (سلطان احمد خان) چي په پاچهي کي د گډون هیله درلوده، نامېنده

---

[۱۹] دسایس و جنایات روس در افغانستان، ۱۷ مخ.

[۲۰] د ویتکویچ نوم د Vitkavich – Vitkavitch – Vicovivh – Vitkovich په شکلونو ضبط سوی دئ. دی روسی نه و. د پولینډ و (وگ : افغانستان د سوبي لویه لار). برنس وایي چي دی یې په کابل کي ولیدی. تقریباً دېرش کلن ځوان و. په فرانسوي، ترکي او پارسي یې رواني خبري کولې.

ویتکیویچ چي سنټ پیترزبورگ ته ستون سو، تود هرکلی یې وسو، خو یوه هفته پس یې مړی، چي په گولۍ ویشتل سوی و، په پیترزبورگ کي وموندل سو.

[۲۱] تر دغه بحث وروسته د (گندمک تړون او له کندهاره ځخه د پښین او سیوۍ جلا کول) او (له کابله ځخه په سیاسي او اداري لحاظ د کندهار بېلول) عنوانونه سته خو تفصیل ته یې ځای تش پرې ایښی دئ (م. هوتک).

سو، کندهار ته ولاړ او کهندل خان يې د کابل نيولو ته وپاراوه، کهندل خان، رحمدل خان، مهردل خان او سلطان احمد خان له يوه لښکره سره مخ پر کابل وروخوځېدل. امير دوست محمد خان له کابله ځخه وزير اکبر خان وگوماره چې په غزني کي د سردار غلام حيدر خان مل سي او په گډه د کندهاري سردارانو مخه ونيسي. په مقر کي دواړه لښکري سره مخامخ سولې. درې ورځي پس بې جنگه داسي روغه سره وسوه چې امير دوست محمد خان به په کندهار کار نه لري او کهندل خان به په کابل.

سردار رحمدل خان له سردار محمداکبر خان سره کابل ته ولاړ او له امير دوست محمد خان سره يې دوستانه ليدنه وکړه[۲۲].

## پر لاش و جوين باندي د کهندل خان حمله :-

په ۱۲۶۷ هـ ق کال کهندل خان د احمدخان ساگزي په لمسه پر لاش و جوين بريد وکړ. تر نيولو وروسته يې د سردار مهردل خان زوی سردار شېرعليخان د لاش و جوين حاکم وټاکه. د کهندل خان زوی محمدصديق خان پر چخانسور بريد وکړ هغه يې ونيو.

## پر هرات باندي د کهندل خان حمله :-

د ۱۲۶۷ هـ ق کال د برات په وروستۍ ورځ چې وزير يارمحمد خان ومړ، زوی يې سيد محمدخان د هرات واکمن سو. د سيدمحمدخان له بې عقليو ځخه د هرات دراني خانان په عذاب سول، کهندل خان ته يې بلنه ورکړه چې هرات ونيسي. کهندل خان له خپلو لښکرو سره مخ پر هرات وخوځېد. شين ډنډ (اسفزار) يې ونيو. د هرات د ساتني له پاره چې د

---

[۲۲] تاريخ سياسی افغانستان، ۱۶۳ مخ.

اېران پوځونه د سیدمحمد خان کومک ته راغلل، کهندل خان کندهار ته راستون سو.

## د کلات د کلا خرابېدل :-

په ۱۲۶۸ هـ ق کال د کلات توخو او هوتکو د کابل لاربنده کړله. کاروانونه به يې لوټل. امير دوست محمد خان د دوی ځبلو ته خپل زوی سردار شېرعليخان وګوماره. په جنګ کي محمدافضل خان توخی ټپي سو. شېرعليخان، توخي او هوتک رايت (رعيت) کړل، کابل ته ستون سو. سردار کهندل خان د امير دوست محمد خان په دې کار خوابدی سو. سردار مهردل خان يې د کلات ساتني ته وګوماره. امير دوست محمد خان سردار شېرعليخان ته وکښل چي له غزني څخه پر کلات بريد وکړي او وليعهد سردار غلام حيدر خان يې هم د ده مرستي ته وګوماره. سردار مهردل خان کلابند سو. امير دوست محمد خان له نواب عبدالجبار خان، سردار سلطان محمد خان، سردار پير محمد خان او سردار سيدمحمد خان سره د زامنو مرستي ته له کابله رهي سو.

سردار کهندل خان هم له کندهاره څخه له لښکرو سره ځان کلات ته راورساوه. نواب عبدالجبار خان د ورونو تر منځ روغه وکړله. د کلات کلا يې خرابه کړله او دواړه لښکري خپلو خپلو مرکزونو ته ستنې سولې.

په ۱۲۷۰ هـ ق کال بيا توخي او هوتک پورته سول. د امير دوست محمد خان له خوا بيا شېرعليخان د دوی ځبلو ته وګوماره سو. سردار شېرعليخان کلات ته تر سردار کهندل خان دمخه ځان ورساوه. توخي او هوتک يې اېل کړل. د کلات کلا يې ترميم کړله او اکا (سردار کهندل خان) ته يې وکښل :-

ما دا کلا ستا له پاره ترميم کړېده. سردار کهندل خان چي د مقابلې

توان په ځان کي نه لید، غوړونه یې کانه واچول. د امیر دوست محمد خان له خوا د وزیر اکبر خان زوی سردار فتح محمد خان د کلات د حاکم په توګه وټاکه سو.

**د سردار کهندل خان د زامنو او سردار رحمدل خان جنګ:-**

د ۱۲۷۱ هـ ق کال د څلورمي خور په ۲۷ سردار مهردل خان او د دغه کال د لوی اختر د میاشتي په اوومه (سه شنبې) سردار کهندل خان مړ سو. د کندهار واکمني سردار رحمدل خان خپله بلله، خو د سردار کهندل خان مشر زوی سردار محمدصدیق خان ځان د کندهار د پاچهۍ وارث باله.

په دې اختلاف کي د کهندل خان زامن سردار سلطان علي خان، سردار محمد عمر خان، سردار عبدالله خان، سردار محمدعثمان خان د ورور پر سیله ودرېدل. بل ورور سردار غلام محی الدین خان هم له تیري څخه د سردار محمدصدیق خان په مرسته راغی. جنګ پېښ سو، څو ورځي نښتي وسوې. د سردار پردل خان لمسی د سردار میر افضل خان زوی سردار غلام محمد خان په دغه جنګ کي وواژه سو. ملایان و ستانه منځ ته راغلل. روغه داسي وسوه چي د کندهار حکومت دي د سردار رحمدل خان وي، خو د نورو سردارانو خرڅ به هم ورکوي. د کندهار محصول او مالیې د ټولو سردارانو خرڅ نه پوره کاوه او شخړه هسي لاینحله پاته سوه.

امیر دوست محمد خان چي دا واورېدل د غزني حاکم شېرعلي خان ته یې کندهار ته د تګ حکم وکړ او پخپله هم له کابله پسي را رهي سو. د کندهار په چاوڼي کي یې واړول او د سردار میر افضل خان په واسطه یې د ښار ځیني برخي هم ونیولې. امیر دوست محمد خان هم راورسېدی د کندهار ارګ یې له سردار رحمدل خان او سردار سلطان علیخانه څخه ونیو او په دې ډول په کندهار کي د کندهاري سردارانو حکومت پای ته ورسېد.

علیقلي خان په تاریخ افغانستان کي لیکلي دي :-

په دغه جنګ کي، چي د اکا او وریرو تر منځ په کندهار ښار کي پېښ سو، څلور سوه کسه مړه او ټپیان سول.

## د پښین جنګ :-

سردار رحمدل خان او سردار سلطان علیخان چي له ارګه راووتل امیر دوست محمد خان ورته وویل :-

زه په تاسي او ستاسي په مالونو او جایدادو اړه نه لرم. هغه و، چي سردار رحمدل خان خپل زوی سردار محمد علم خان د ښکار په پلمه تر ښار دباندي ولېږه. پخپله سردار رحمدل خان هم له دریو نورو زامنو او سردار سلطان علي خان سره پسي ورغلل او کلات ته یې ځانونه ورسول. نورو سردارانو د پښین لار ونیوله. امیر دوست محمد خان یو پوځ د خپل زوی سردار محمداعظم خان او وراره سردار سلطان احمد خان؟ په مشری پښین ته پسي ولېږه. جنګ ونښت کندهاري سرداران مات سول. د کهندل خان زوی سردار سلطان علي او د مهردل خان زوی خوشدل خان شالکوټ (کوټي) ته ولاړل.

امیر دوست محمد خان یو لښکر د شېرعلي خان په مشرتابه کلات ته ولېږه، چي سردار رحمدل خان ونیسي. خوشدل خان او سلطان علي خان له کوټي څخه پر ښوراوک برید وکړ. له ښوراوکه ملخان ته ولاړل او د امیر دوست محمد له زوی سره وجنګېدل. په دغه جنګ کي د سردار سلطان علي خان ټوله جبه خانه او باروبنه د امیر دوست محمد خان د لښکرو په لاس کښېوتل. سلطان علي خان د سیستان له لاري تهران ته ولاړ.

سردار رحمدل خان خپل زوی سردار محمدعلم خان تهران ته ولېږه چي د (ایران) مرسته تر لاسه کړي او کندهار د امیر دوست محمد خان له

لاسه وکاږي. د سردار محمدعلم خان په تهران کي ښه پذيرايي وسوله. سردار رحمدل خان چي هم ایران ته روان و، د امیر دوست محمد خان د سختي ناروغۍ خبر ورته راغی. بیرته کندهار ته ولاړ خو امیر دوست محمد خان ښه سو او حکم يې وکړ چي رحمدل خان به په دریو ورځو کي له کندهاره وزي. مګر په دې خبر سو چي رحمدل خان زما پر ضد له ایرانه څخه مرسته غوښتې ده، سردار رحمدل خان، سردار خوشدل خان، سردار میر افضل خان او سردار غلام محی الدین خان يې د ۱۲۷۲ کال ؟ د محرمي په میاشت کي له ځانه سره کابل ته بندیان را رهي کړل او د کندهار حکومت يې سردار غلام حیدر خان ته وسپاره[۲۳].

امیر دوست محمد خان چي کابل ته ولاړ، سردار محمدصدیق خان پر فراه برید وکړ او د وزیر اکبر خان د زوی جلال الدین خان سره چي د نیکه له خوا د فراه حاکم و ونښت او په جنګ کي بندي سو.

## د اسماعلیانو د مهدي اولاده په کندهار کي :-

د تاریخ ګزیده په ۵۰۸ مخ کي د تاریخ جهانګشای جویني په حواله کښلي دي :-

اسماعیلیان د اسماعیل بن جعفر داعي (زوی؟) مهدي بن ؟ موعود مهدي آخر زمان بولي. د مغرب اهل سنت و جماعت يې د عبدالله بن سالم بصري له اولاده بولي او عراقیان يې د عبدالله بن میمون قداح له نسله بولي. په عیون التواریخ کي علي بن انجب البغدادي، دی د جعفر صادق رحمة الله علیه له نسله بولي. په دې ډول :-

---

[۲۳] د تاریخ سلطاني په ۲۸۹ مخ کې لیکلي دي :-
امیر دوست محمد خان چي کندهار ونیوی، د محمدعظیم خان زوی سردار سلطان احمد خان او د رحمدل خان زوی محمدعلم خان يې له کندهاره فراره کړل.

المهدي محمد بن الرضي عبدالله بن التقي قاسم بن الوفي احمد بن الوصي محمد بن اسماعيل بن جعفر صادق رحمه الله.

دغه المهدي د عباسي خليفه گانو له لاسه رى ته وتښتېدى هلته په محمدآباد كي ښخ دئ او دا كلى ده ته منسوب دئ. د ده زامن او لمسيان كندهار ته ولاړل او هلته يې نسل مشهور دئ.

په كندهار كي يوه هديره د سيد مهدي آتش نفس په نامه سته؟. د شيعه گانو زيارت دئ.

## اغا خان اسماعيلي په كندهار كي :-

ميرزا خليل الله د ميرزا ابو الحسن زوى (په سيد كهكي مشهور) په يزد كي د اسماعيليانو امام په ۱۲۳۲ هـ ق = ۱۱۹۵ ش خلكو وواژه. فتح عليشاه قاجار د اسماعيليه فرقې د تسلي او تاليف له پاره د ميرزا خليل الله زوى لومړي اغاخان محلاتي (حسن عليشاه ۱۸۰۰ – ۱۸۸۱) تهران ته ور وغوښت، خپله لور سروجهان يې ورکړله، د قم او محلاتو حاكم يې وټاكه. په ۱۲۵۰ هـ ق كال چي فتحعلي شاه ومړ، محمدشاه زوى يې پر ځاى كښيناست. د پاچهى له مدعيانو سره په جنگو كي لومړي اغا خان د محمدشاه ملا وتړله او هغه هم د خپله جلوس په لومړي كال د بلوچستان او كرمان حكومت اغاخان ته وركړ. دوه كاله پس حاجي ميرزا اغاسي تهران ته وروغوښت او د كرمان و بلوچستان له حكومته يې ايسته كړ. اغاخان تهران ته نه ولاړ. د بم په كلا كي كلابند سو. په ۱۲۵۵ كال قاچاري پوځونه د عباسقلي خان سرتيپ او حسن خان ياور په مشرى پسي ورغلل. اغاخان ماته وكړله خو د كرمان حاكم فيروز ميرزا امان وركړ. بيا تهران ته ولاړ او د شاه عبدالعظيم په بست كي كښيناست محمدشاه وباخښه. اغاخان له بسته راووت، څه موده پس يې حجاز او عراق ته د تگ اجازه ومونده، كډي يې

کربلا او نجف ته ولېږلې او پخپله يې څه سپايان پيدا کړل د ۱۲۵۵ هـ د
رجب په مياشت کې کرمان ته ولاړ او د کرمان و بلوچستان د حکومت په
جوړ کړي (جعلي) فرمان يې د کرمان او بلوچستان حکومت خپل کړ.
جعلکاري رسوا سوله. د تهران له خوا فضل علي قره باقي د ده نيولو ته
وګوماره سو. په جنګ کې اغاخان ماته وخوړله د احمدي، لار، اسفندقه له
لاري بندرعباس ته وتښتېده. په بندر عباس کې انګرېزانو څو توپه او څه نور
جنګي تهجيزات ورکړل د انګرېزانو په کومک اغاخان دوهمه پلا پر کرمان
بريد وکړ ۱۴ مياشتي هلته په جنګ اخته و. پای ته د نرمانشير په ريګان کې
يې داسي ماته وکړله چي پښې يې په ايران کې ټينګي نه سولې. د لوت د
دښت له لاري کندهار ته په تېښته راغی. دلته د مېجر راولنسن له خوا
استقبال سو او ښه معاش يې ورته وټاکه (۱۲۵۷ هـ ق).

اغاخان چي له کندهاره کراچي ته تئ په لار کي يې دا معلومه کړله
چي د کلات خان غواړي د انګرېزانو ريزيډنټ له خپلي علاقې وباسي. دا
خبر يې انګرېزانو ته ورکړ او له دغي ورځي څخه د انګرېزانو په حمايت کې
راغی[۲۴]. تر دغه وروسته د اغا خان ورور سردار ابوالحسن د انګرېزانو په

---

[۲۴] په پژوهشی در تاريخ هزاره ۵۴ مخ کې ليکلي دي:-
لومړی اغا خان په ۱۸۰۰ ع کال په محلات کي زېږېدلی او هلته لوی سوی دئ. د
فتحعليشاه له خوا د محلاتو حاکم و. د انګرېزانو له پاره له سرتېرو مخلصانو څخه و او د
مرګ تر وخته (۱۸۸۲ع) پر دغه اخلاص پاته سو. تر ده وروسته يې زوی سلطان عليشاه
دوهم اغا خان سو. د اسماعيليانو امامت ده ته ورسېده. دی هم د انګرېزانو له سرتېرو
مخلصانو څخه و. په ۱۳۰۳ هـ ق = ۱۸۸۵ ع ومړ. دده تر مرګ وروسته يې اته کلن زوی دريم
اغام خان سو. دی د اسماعيليانو له لويو امامانو څخه و. د ده د امامت دوره ډېره اوږده
سوه. عمر يې په عيش و عشرت کي تېر کړ. ډېري ماينې يې درلودې. يوه فرانسوی ماينه يې
په ښايست کي په ۱۹۳۰ کال د جهان ملکه سوې وه. ده ته انګرېزانو د لومړي نړيوال
جنګ په دوران کي په ۱۹۱۶ ع کال د (پرنس آف بمبيي) لقب ورکړ.

لمسون او مرسته پر بلوچستان برید وکړ. څو واره یې د ایران له پوځو سره
نښتي وکړلې پای ته ونیول سو. تهران ته بوتلل سو خو هلته د انګلیسانو د
سفارت په سپارښتنه وباخښه سو او څه امتیازات هم ورکړه سول. د میرزا
حسن رایني تر مرګ وروسته د کرمان حاکم ابوالحسن خان سو. دی په
۱۳۰۶ هـ ق کال ومړ. د کرمان خلکو د ده تربور میرزا صادق مشروټاکه. د ده
حکومت لږ دوام وکړ ځکه مرګ پر راهله کړله.

لومړی اغا خان ځان د مصر د فاطمي اولاد باله[۲۵].

## د بارګزیو سردارانو په منځ کي د افغانستان وېش :-

لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي د جنبش مشروطیت در افغانستان
په ۱۰۲ مخ کي کښلي دي :-

د سدوزي پاچهانو واک چي له منځه ولاړ د پاینده خان زامنو د ۱۲۴۲

---

په ۱۹۳۴ ع کال د اقوام متحده په مجلس کي د هندوستان د هیئت مشر سو
او تر ۱۹۳۷ پوري یې دغي وظیفې ته دوام ورکړ. په ۱۹۳۵ ع کال د اګست په اتلسمه یې د
امامت پنځوسم کال په نسبت ګولډن جیوبلي ونیوله سوه. دی څلور واره د طلا او دوه
واره د الماسو سره تول سو. په ۱۹۵۶ ع کال د ۷۹ کالو په عمر ومړ. اویا کاله یې د امامت
دوره وه.

اسرار احمد آزاد په بین الاقوامي سیاست معلومات ۲ مخ کي لیکلي دي :-
د دریم اغا خان نوم محمدشاه و. دی په ۱۸۷۷ ع کال زېږېدلی دئ. د برتانیې له دوستانو
څخه و. دی د نړۍ په خورا بډایو خلکو کي راځي. د اسماعیلیه فرقې حاضر امام دئ. په
هند، منځنۍ ایشیا او ختیزه افریقا کي یې پیروان تقریباً یو کروړ تنو ته رسېږي. دی په
۱۹۳۴ کي د اقوام متحده د مجلس رئیس و.
په (امید مجله، ۱۳۷۱ ش کال، اسد - سنبله ګڼه) کې لیکلي دي :-
د اغا خان کورنی، چي د اسماعیلیانو امامت له دوی دئ، د انګرېزانو له مرستي څخه
ډېره برخورداره ده، اغاخان څلورم رهبر د اغای خانانو دئ. دی نهه څلوېښتم امام دئ.
(۲۵) وګ : دست پنهان سیاست انګلیس در ایران، ۱۶ - ۱۸ مخونه.

د ۱۸۲٦ ع) د دوهمي خور د میاشتي په یوه عهدنامه کي[٢٦] د
ه ق کال (۱۸۲٦ ع) د دوهمي خور د میاشتي په یوه عهدنامه کي
افغانستان هغه سیمي چي د سدوزو له نفوذه وتلي وې، پخپلو منځو کي
وویشلې. کندهار له شاه جوی څخه تر فراه او شکاپور پوري د غلجي مور
پنځو زامنو (شېردل خان، پردل خان، کهندل خان، مهردل خان، رحمدل
خان) ته ورسېد.

## پر کندهار باندي د سردار محمدامین خان حکومت[٢٧] :-

د ۱۲٦۷ ه ق کال په یوه سند کي د سردار محمدامین د مهر سجعه
داسي ده :-

نوشته است کلك قضا برنگین
که شد در دو عالم محمدامین

د ۱۲۸۷ د میانی په میاشت کي چي امیر دوست محمد خان د هرات
د نیولو په نیامت کندهار ته راغی د کندهار نیابت یې د سردار محمد امین
خان زوی سردار محمداسماعیل خان ته وسپاره او سیدنورمحمدشاه یې د
ده نائب ورمقرر کړ. قاضي عبدالسلام (د قاضي محمدسعید زوی) یې د
کندهار قاضي مقرر کړ.

سردار محمدامین خان له خپل ورور امیر شېرعلیخان سره د کجباز په
جنگ کي د ۱۲۸۲ ه ق د محرمي په ؟ وواژه سو. مړی یې کندهار ته راووړ
او د خرقې شریفي په غولي کي یې د خرقې شریفي د عمارت دروازې ته
مخامخ ښخ کړ.

---

[٢٦] دغه عهدنامه د کابل په ملي آرشیف کي خوندي ده.

[٢٧] دا برخه علامه استاد رحمة الله علیه نه ده بشپړه کړې. ځایونه یې خالي ورته پرې ایښي دي (م. ه).

## کندهار ته د امیر شېرعلیخان راتګ :-

امیر شېرعلیخان چې د پلار تر مرګ وروسته په هرات کې د پاچهۍ پر تخت کښېناست خپل سکه کشر ورور سردار محمدامین یې دستې کندهار ته ولېږه چې د پلار د وختو په ډول د کندهار والي وي.

امیر شېرعلیخان چې له هراته څخه کندهار ته راورسېده، پنځلس ورځې یې په کندهار کې تېرې کړلې. سردار محمدامین خان، امیر او ورسره لښکر ته درنې مېلمستیاوې وکړلې. امیر شېرعلي خان چې کابل ته رهي کېده، سردار محمدامین خان ته یې خورا غوره خلات له یوه مرصع کمربند سره ورکړ او مرصع موتې توره یې پخپله د ده په ملا کې وروتړله. دوه عربي آسه یې وروبخښل چې طلایي یرغ یې درلوده[۲۸].

## د امیر شېرعلي خان او سردار محمدامین خان جنګ :-

سردار محمدامین خان د امیر دوست محمد خان اتم زوی و، د کندهار نائب الحکومه و. امیر دوست محمد خان چې د هرات د نیولو نیت وکی، د ۱۲۸۷ هـ ق کال د روژې په میاشت کې یې له جلال آباده د کندهار په نیت کوچ وکړ. د کوچني اختر په ورځ کابل ته راورسېد. شاغاسي شېردلخان یې د کندهار والي سردارمحمدامین خان ته ولېږه چې پر فراه برید وکړي. محمدامین خان فراه ته وخوځېد او پر ځای یې د ده زوی سردار محمداسماعیل خان کفالتاً د کندهار والي سو.

امیر دوست محمد خان د کوچني اختر د میاشتي په ۱۸ له کابله مخ پر کندهار رارهي سوی و، د میانۍ د میاشتي په پنځمه کندهار ته ورسېد. ولیعهد سردار شېرعلي خان یې فراه ته د تګ له پاره وګوماره. د سردار

---

[۲۸] پادشاهان متاخر، ۱/۴۶ مخ.

شېرعليخان او سردار محمدامين خان تر منځه روغه نه وه.
سردار شېرعليخان د پلار د مرګ په څلورمه ورځ (۲۴ ذی الحجه ۱۲۷۹ هـ ق) په هرات کې پاچا سو. کله چې دی او لښکري يې کابل ته ستنېدلې، سردار محمدامين خان د کندهار خلکو ته امر وکړ چې رس او ازوغ به د امير شېرعلي خان لښکر ته نه ورکوي. دا خبره پر امير شېرعلي خان ډېره درنه پرېوتله او د سردار محمدامين خان د ايداد په فکر کې سو.
په ۱۲۸۱ هـ ق کال چې امير شېرعلي خان ترکستان ته د سردار محمد افضل خان د ځبل وله پاره تئ، سردار محمدامين خان د سردار مدد خان په خوله پيغام ورولېږه :-
"زه حاضر يم ستا سره په دغه لښکرکشي کې ملګری سم".
امير شېر عليخان په جواب کې سردار مددخان ته وويل، سردار محمدامين ته ووايه زما ستا سپکاوی نه دئ هېر. که تا زما په غياب کې کابل ونيو، نيولی به دي وي خو که زه په بري کابل ته راستون سوم، ايداد به درکړم.
د امير شېرعلي خان دا پيغام چې سردار محمدامين خان ته ورسېد، نوري يې هم وپاراوه. سردار جلال الدين خان او سردار محمدشريف خان هم له کابله وروتښتېدل او سردار محمدامين خان يې د امير شېرعلي خان دښمنۍ ته لا وپاراوه.
هغه و، چې د سردار محمدامين له خوا څخه سردار جلال الدين، سردار شېرعليخان کندهاری او سردار مدد خان د کلات نيولو ته وګومارل سول، چې کلات له سردار فتح محمد خان (د وزير اکبر خان زوی) څخه ونيسي. دوی ورغلل، کلات يې کلابند کړ. سردار فتح محمد خان، ميرزا حبيب الله وردګ، چې بيا مستوفي سو، خواجه محمدخان وردګ او سرتيپ عظيم الدين خان ابراهيم خېل کلابندي ټينګه کړه او د کندهار

پوځونه بې سوبې کندهار ته راستانه سول.

امیر شېرعلي خان چې د ترکستان له شخړې څخه فارغ سو، د کابل حکومت یې سردار ولي محمد خان ته ورکړ. عصمت الله خان جبارخېل او ارسلا خان جبارخېل یې په کابل کې ورسره پرېښوول او د کندهار په نیت له کابله راووت. د ۱۲۸۱ هـ ق کال د لوی اختر د میاشتې په ؟ یې د قلعهٔ قاضي په چنغر کې واړول.

د امیر شېر علي خان او کندهار لښکرې په کجباز کې[۲۹] سره مخامخ سولې. له سردار محمدامین خان سره په دغه جنګ کې سردار محمدشریف خان، سردار جلال الدین او سردار محمد سرور ملګرې وو.

په لومړي جنګ کې د امیر شېرعلي خان سرلام چې د سردار شمس الدین خان په مشرې و، ماته وکړه. سردار شمس الدین خان له پنځوسوو تنو سره د کندهار د پوځو په لاس کې بندیان سول. د محرم په ۹ شپه ۱۲۸۲ هـ سردار محمدشریف خان د امیر شېرعلي خان پر لښکرو شبخون راووړ او تر سهاره سره وجنګېدل. د عاشورې په ورځ لوی جنګ شروع سو. ګرده ورځ جنګ وسو. د محرمې په ۱۱ د جنګ په میدان کې د امیر شېرعلي خان زوی چې پر سردار محمدامین خان یې حمله کړې وه، په توره ټپې سو او یوه ګولۍ یې پر ټپک برابره سوه. د سردار محمدامین خان پر نس هم یوه ګولۍ ولګېدله. دواړه مړه سوه. د سردار محمدامین خان په وژله د کندهار لښکرو ماته وکړه کندهار ته ولاړل. د سردار محمدامین خان توپخانه د امیرشېر علي خان په لاس ورغله.

سردار جلال الدین خان، سردار محمدشریف خان، سردار محمدزمان خان، سردار محمداسماعیل خان او سردار مده خان له امیر شېرعلي خان

---

[۲۹] کجباز، شاجوی ته نژدې د یوه ځای نوم دئ. دا جنګ د کجباز په جنګ مشهور دئ (م. هوتک).

ځخه عفوه وغوښتله، هغه هم وبخښل.

## سید نورمحمدشاه صدراعظم :-

سید نورمحمد شاه د سید سلیمان زوی، د سید بېګ محمد لمسی، د سید موسٰی مرازي شنغزي کړوسی، د ده نهه ورونه (ګل محمد شاه، احمدشاه، امان الله، سید بېکر، سید یوسف، سید کریمداد، صاحبزاده، رحمت الله او یارمحمد شاه) او یو زوی دئ، چي سیدمحمد نومېږي.

سید نورمحمدشاه د امیر شېرعلي خان د زمانې یو ستر شخصیت او سیاسي سړی بلل کېږي. دی اصلاً د کندهار د پښین دئ. دی په تېره بیا د امیر شېر علي خان د پاچهۍ په دوهمه دوره کي مشهوره سو، داسي چي پرله پسې یې د افغانستان په سیاسي او بهرنیو مسئلو کي د امېر شېر علي خان د وزیر او فوق العاده نماینده په توګه برخه اخیستې او تل یې د خپل هیواد اولسي ګټي او ملي نوامیس په پام کي درلودل چي په دې توګه د وطن د نورو صادقو خدمتګارانو په ډله کي دربدلای سي.

سید نورمحمدشاه په ۱۲۸۵ ﻫ ق = ۱۸۶۹ ع له امیر شېر علي خان سره امبالې ته ولاړ او د هند له خارجه وزیر ستېین کار سره یې یو لړ سیاسي خبري وکړلې. دې خبرو کومه نتیجه ورنکړله او امیر و وزیر دواړه کابل ته راستانه سول.

په ۱۲۸۸ ﻫ ق = ۱۸۷۲ ع کي سید نورمحمدشاه د امیر شېر علي خان له خوا د سرحد د کتلو او د سیستان د اوبو د وېش له پاره وټاکل سو، نو د کنفرانس تر پای ته رسېدو وروسته، چي د ګولډ سمیت په نامنصفانه حکمیت ختمه سوه، د تړون د لاسلیکولو له پاره تهران ته ولاړ. په دغه وخت کي د امیر شېر علي خان د ناروغۍ خبر ورته راغی او کابل ته راستون سو. سید نورمحمدشاه او امیر شېر علي خان د ګولډ سمیت په نامنصفانه حکمیت

راضي نه وو او په دې باب يې احتجاج وکړ. انګرېزانو د زيان د تلافی له پاره پنځه لکه روپۍ ومنلې خو امير شېر علي خان له دې موضوع سره دلچسپي ونه ښووله. هغه وچي په ۱۲۹۰ هـ ق کال = ۱۸۷۳ ع کې انګرېزانو امير شېر علي خان ته بلنه ورکړه چې هند ته سفر وکړي او په شمله کې له وايسرا سره وګوري. امير شېر علي خان فيصله وکړه چې سيد نورمحمدشاه شملې ته واستوي. سيد نورمحمد شاه هند ته روان سو او په پېښور کې يې ډېر تود هرکلی وسو. په شمله کې يې له حاکم اعلی لارډ نارت بروک او د غه راز د هند له خارجه وزير سره خبري وکړلې (ربيع الثاني ۱۲۹۰ هـ ق = جولای ۱۸۷۳ ع)، سيد نورمحمد شاه په دې کتنه کې انګرېزانو ته هيڅ ډول امتياز ورنه کړ او له هنده څخه بيرته کابل ته راستون سو (اګسټ ۱۸۷۳ ع = جمادی الاول ۱۲۹۰ هـ ق). په دغه وخت کې امير شېر علي خان د يوه عصري حکومت د جوړولو له پاره ترتيبات نيولي وو نو سيد نورمحمد شاه پښنګی يې د پخوانيو خدمتونو، لياقت او پوهي له امله د صدراعظم په توګه وټاکه (۱۲۹۱ هـ ق = جولای ۱۸۷۴ ع).

سيد نورمحمد شاه د ۱۸۷۷ ع کال د جنورۍ په ۳۰ مه، چې د ۱۲۵۵ ش کال د دلو له ۱۱ = ۱۵ محرم ۱۲۹۴ هـ ق کال سره برابرېږي، د ليتن په غوښتنه پېښور ته ولاړ. په دې جرګه کې سيد نورمحمدشاه خورا قاطع او قناعت بخښه دلايل وړاندي کړل خو له بده مرغه دغه جرګه د هغه د ناروغۍ له امله قطعي نتيجې ته ونه رسېدله[۳۰].

---

(۳۰) د ترکانو يو هيئت د ۱۸۷۷ ع کال د سپتامبر په ۲۷ مه = ۱۱ رمضان ۱۲۹۴ هـ ق = ۵ مېزان ۱۲۵۶ ش کابل ته راورسېد. د دې هيئت مشر (ام کی افندي) و. ده غوښتل چې امير شېر علي خان د روسانو له دوستۍ څخه مخ واړوي. خو دې زياته څه ګټه ونه کړله او امير د روسانو دوستي نه پرېښووله (وګ : Afghanistan and British India ۱۸۳ مخ).

په ۱۸۷۶ ع (اکتوبر) کې په هندوستان کي د انګرېزانو د وايسرا لارډ لټن له خوا نواب عطا محمد خان د مسلمان نماينده په توګه د کابل دربار ته راولېږه سو او له

د سید نورمحمدشاه ناروغي په پېښور کې پسې اوږده سوه او هورې وفات سو. جنازې ته یې شهزاده عبدالله ولیعهد د یک لنګه غاښي ته ورغی او په ډېره درناوي یې په شهدای صالحین کې د بالاحصار غربي دروازې ته نژدې خاورو ته وسپاره (۲۶ یا ۲۷ مارچ ۱۸۷۷ ع = ٦ حمل ۱۲۵٦ ش = ۱۰ ربیع الاول ۱۲۹۴ هـ ق).

د سید نورمحمد شاه قبر شنخته نه لري[۳۱].

## د امیر محمد یعقوب خان په پاچهی کې :-

امیر محمد یعقوب خان چې د ګندمک معاهده له انګرېزانو سره لاسلیک کړه، کابل ته چې راغی د کندهار حکومت یې سردار شېرعلي خان (د سردار مهردل خان زوی. م. هـ) ته، د کلات حکومت یې محمدطاهر خان او د هلمند حکومت یې سردار محمدیوسف خان ته ورکړ.

د یعقوب خان تر بندي کېدلو وروسته د انګرېزانو لښکر چې د کابل له لارې په ۱۲۹۷ هـ ق کې د جنرال ستېوارټ په مشرۍ پر کندهار برید وکړ، په شاه جوی کې یې غازیانو مخه ونیوله مګر انګرېزانو برې ومونده. د پرنګي لښکرې په کندهار ننوتلې سردار شېرعلي خان یې بیرته د کندهار نائب الحکومه وټاکه مګر سردار محمدیوسف خان د هلمند حاکم له انګرېزانو سره روغه ونه منله.

---

امیر شیر علي خان سره یې خبرې اترې وکړلې (وګ : پورتني ماخذ - ۱۷۹ مخ). د پېښور کنفرانس چې بې نتیجې مات سو، دغه مسلمان نماینده هم له کابله هندوستان ته ولاړ او یو کال د کابل او بریتانیا تر منځ کومه واسطه نه وه.

[۳۱] د دې لیکنې په ترتیب کې د استاد رحمة الله علیه پر یادابنتو سربېره د بېنوا ویبسایټ له ۲۰۰۵/۹/۱ نېټې په خپرونه کې د هغوی له مقالې څخه استفاده سوې ده (هوتک).

## په دوهم جنګ کې پر کندهار باندې د پرنګیانو غلبه :-

د ۱۸۷۹ ع د جنوري په اتلسمه په مزارشریف کي امیر شېرعلیخان ته خط ورسېدی چي کندهار پرنګیانو ونیو[۳۲]. انګرېزانو دا پلا له پېښوره څخه د خیبر پر لار، د کورمي څخه د پکتیا پر لار[۳۳] او له کوټي څخه پر کندهار برید وکړ. د کندهار په محاذ کي د انګرېزانو دوې فرقې (۱۲۹۰۰ سپاهیان) او اتیا توپه ورسره وو. تر شا یې یوه بله فرقه هم په پسې وه، چي ۶۶۰۰ سپاهیان او ۱۸ توپه یې درلوده. په دې ډول نو په کندهار کي د پرنګیانو لښکر ۱۹۵۰۰ سپاهیان او ۱۰۸ توپه وو. د دغو پوځو سپاه سالار جنرل ستېوارټ و. د ده تر مشرۍ لاندي د کوټي له لاري پر کندهار برید وکړ. تر کوړک چي راتېر سو، په کدني کي یې واړول. د کندهار پښتنو د سردار میرافضل خان او د هغه د زوی سردار عبدالوهاب خان، سردار محمدیوسف خان، نورمحمد خان اڅکزي، عبدالمجید خان علیزي، او سلطان محمد خان په مشري په تخته پل کي د انګرېزانو مخه ونیوله، د انګرېزانو د توپخانې طاقت یې رانه ووړ، را تر شا سول. په حاجي کلي، شورندام کي هم سپک سپک جنګونه وسول. پای ته میر افضل خان ګرشک او بیا فراه ته ولاړ او سردار محمدیوسف خان په هرات کي سردار ایوب خان ته ځان ورساوه.

د جنرال ستېوارټ تر سپهسالارۍ لاندي د لومړۍ فرقې مشر جنرال

---

[۳۲] د انګرېزانو سره د افغانانو دوهم جنګ د ۱۸۷۸ له نوامبر څخه پیل سو او متجاوزین د ۱۸۸۰ ع کال په اګست کي ووتل.

[۳۳] په ننګرهار کي د عصمت الله خان جبارخېل په مشرۍ غازیانو مخه ورته ونیوله. د پکتیا سپاهیانو او غازیانو د غندمشر کریم خان، غند مشر ګل محمد او کندکمشر غلام علي خان په مشرۍ د پرنګیانو مخه ونیوله. اکرم خان په دغه وخت کي د خوست حاکم و. هغه له جنرال رابرټس سره تار واچاوه او د غازیانو معلومات یې ورکړل.

میکائیل، د دوهمي فرقې مشر جنرال بیډولف، د توپچي قوې مشر جنرال ایس آی ووډ کندهار په جبه کي د جنرال مکفورسن، جنرال بېکر او جنرال میسي نوموونه هم لیدل کېږي. دې پوځونو د ۱۸۷۸ د نوامبر پر ۲۱ د افغانستان خوا ته را رهي سول.

د کندهار د غازي پوځ مشر جنرال صفدر علي خان و خو هغه تر یوه سپک جنګ وروسته د هرات خوا ته تر شا سو. جنرال ستېوارټ چي کندهار ونیو د کندهار والي یې نواب غلام حسین خان وټاکه او سیاسي نماینده یې سنټ جان مقرر کړ. پخپله له لښکرو سره مخ پر کلات وخوځېد خو ډېر ژر د غازیانو هجوم دوی دې ته اړ ایستل چي د ګندمک تر منحوس تړون پوري د احمدشاهي کلا په دننه کي په دفاعي بڼه ځان وساتي. د ګندمک تر تړون وروسته د انګرېزانو پوځونه له کندهار او جلال آباد څخه هندوستان ته ستانه سول.

د ګندمک تړون د ۱۸۷۹ ع د می په ۲۶ مه = ۴ د دوهمي خور ۱۲۹۶ هـ ق سوی دئ. د دغي معاهدې له مخي په کندهار کي پښین، په پکتیا کي کورمه، او په پېښور خوا کي خیبر د افغانستان له سیاسي او اداري ولکې وایستل سو.

د ۱۸۷۹ کال د جولای په ۲۴ کیوناري د بریتانیا د سفیر په توګه کابل ته راغی او په بالاحصار کي ځای ورته ورکړه سو، خو د سپتمبر ۳ - ۴ غازیان پر راوغورځېدل، کیوناري یې له ۶۵۰ تنو ساتندویو سپاهیانو سره، چي هملتن یې مشر و، وواژه.

## د میوند جنګ :-

۲۰ جولای ۱۸۸۰ ع

غازي ایوب خان د نائب سالار حفیظ الله خان په ملګري له دوو لسو

زرو سپرو او ۲۹ توپو سره له هراته مخ پر کندهار راوخوځېد. پر لاري غازيان ورسره ملګري کېدل. د جولای په ۲۰ ميوند ته راورسېده[۳۴]. جنرال براون له ۱۲ زرو بريتانوي سپاهيانو سره مخ پر ميوند له کندهاره راووت. د سردار شېرعلي خان درې کندکه هم ورسره وو. خو د سردار شېر علي خان سپاهيانو چي د هرات څخه راغلي غازيان وليدل، د هغو خوا ته ور واوښتل. د غازيانو شپږ زره تنه د کارېز په پاکولو اخته سول او ډېر ژر يې د اُبو اړي ايسته کړل. شپږ ورځي جنګ پېښ نه سو. په اوومه ورځ جنګ ونښت. د دښمن توپخانې بېدرېغه ګولۍ اورولې او له لمر ختو تر ځاښته پوري يې پنځه سوه تنه غازيان شهيدان کړل او ۸۵۰ تنه ټپيان سول.

په دغو شهيدانو کي عبدالغفور خان هراتی غندمشر، کوميدان؟ حيدر خان د کندهار او محمد زمان خان بارکزی هم وو. حفيظ الله خان نائب سالار غازيانو ته د پروت بولۍ ورکړه. ټولو غازيانو پروت وکړ او له ميدانه څخه د پروت په ډول د ليري کېدلو امر ورکړ. انګرېزانو چي دا وضعيت وليد، زړه ور سول له خپلو سنګرو راووتل خو يوې ډلي غازيانو ځانونه د دوی شا ته ورسول او د شا و مخ له خوا پر پرنګيانو د غازيانو ګولۍ اورېدلې.

د پادشاهان متاخر افغانستان مولف يعقوب علي خان خافي د سردار

---

(۳۴) د ميوند د جنګ ورځ په افغانستان در مسير تاريخ ۶۳۷ مخ کي د ۱۸۸۰ کال د جولای اووه ويشتمه ښوولې سوېده چي د اربيلي په تقويم د ۱۲۹۷ د برات له ۱۹ سره برابرېږي. علامه حبيبي په تاريخ مختصر افغانستان ۱۲۷/۲ مخ کي د ۱۸۸۰ کال د جولای ۲۷ د شعبان له ۱۷ سره برابره ښوولې ده. په افغانستان در قرن نوزده ۲۵۹ مخ کي د شعبان ۱۷ د جولای له ۲۱ سره برابره ګڼله سوېده. نفت الله خالفين په شيپورهای پيروزی ميوند ۴۴۷ مخ کي د ميوند د جنګ ورځ ۲۷ د جولای ليکلې ده، چي ژباړونکي هغه د شعبان له ۱۹ سره برابره بللې ده، خو د کتاب په ۴۵۱ مخ کي بيا د سنت جارج د رسېدلو ورځ د جولای ۲۷ ښوولې سوې ده؟ د خيبولوفسکي په تقويم کي د شعبان ۱۷ مه د جولای له ۲۶ سره برابره ده.

کهندل خان د لمسي سردار محمد علي خان له خولې ليکلي دي :-

په دغه جنګ کې د انګرېزانو له ۱۲ زرو سپاهيانو څخه فقط ۲۵ تنه د سردار شېرعلي خان سره کندهار ته ورسېدل هغه هم د پښتنو په لباس کې[۳۵].

جنرال رابرټس چې د ميوند په ماتې خبر سو، جنرال ستيوارټ يې د کندهار د کلابندو پرنګيانو د خلاصون له پاره له کابله راولېږه. سردار محمدايوب خان هرات ته ولاړ. د ميوند تر سوبې يوه ورځ وروسته سردار عبدالرحمن خان په چاريکار کې خپل امارت اعلان کړ[۳۶].

د سراج التواريخ په ۳۸۳/۳ مخ کې کښلي دي :-

په ۱۲۹۸ هـ ق کال چې سردار عبدالقدوس خان (اعتماد الدوله) د امير عبدالرحمن خان له خوا د هرات نائب الحکومه و، د امير شېرعلي خان څو طرفداره، کورنۍ يې ايران ته د امير عبدالرحمن په امر فراره کړلې. د سرتيپ نورمحمد خان کورنۍ هم په دغو کورنيو کې وه[۳۷].

په افغانستان در مسير تاريخ ۶۵۸ مخ کې کښلي دي :-

۶۷ تنو ملي قهرمانانو چې له سردار ايوب خان سره وطن پرې ايښی و، په ۱۸۸۹ ع = ۶ - ۱۳۰۷ هـ ق کې يې د دوی ملکونه او جايدادونه ضبط کړل.

## غازي ايوب خان :-

د ګرشک د کارېز په جنګ کې چې د ۱۲۹۸ هـ ق کال د برات په ۲۲ د

---

[۳۵] وګ : نوموړی اثر، دوهم توک ۱۹۱ مخ، د کابل چاپ، ۱۳۳۶ هـ ش.

[۳۶] په افغانستان در مسير تاريخ ۶۳۸ مخ کې د ميوند سوبه د سردار عبدالرحمن خان تر پاچا کېدلو يوه ورځ دمخه بللې ده؟

[۳۷] سرتيپ نورمحمد خان د ميوند په غزا کې شامل سړی و، (م. هوتک).

امیر عبدالرحمن خان له خوا جنګېدونکو ماتـه وکړلـه، غـازي ایـوب خـان کندهار ته راغی او کندهار یې ونیو او ځان یې پاچا اعلان کړ.

په کندهار کي د غازي ایوب خان پاچهي دوې میاشتي و څـو ورځـي وه، غازي ایوب خان چي له هراته مخ پر کندهار را رهي کېده، هرات یـې خوشدل خان لوی ناب ته سپارلی و.




## د ده خوجي غزا :-

د ۱۸۸۰ ع کال د اګست په شپاړسمه په ده خوجه کـي غـزا وسـوه. د پرنګیانو لښکري د جنرال پرایمرس په مشرتوب جنګېدلې. ۱۶۰ مړي او ۱۲۸ ټپیان د پرنګیانو پر میدان پاته سول. دوی وتښتېدل. په کندهار کي د دغي سوبي په ویاړ یوه بدله ویل کېده چي څو بیته یې دا دي :-

غازیانو ډکي په سرو کړې جانخانی عالمه[۳۸]

## د بابا صاحب د کوتل غزا :-

د ۱۸۸۰ ع کال د سپتمبر په لومړۍ ورځ د بابا صاحب پـه کوتـل کـي غزا وسوه. په دغه جنګ کي د پرنګیانو د لښکر اداره د جنرال رابرتس پـه لاس کي وه. پرنګیانو سخته دفاع وکړلـه او پـه دغـه غزا کـي تقریباً زرتـنـه غازیان شهیدان سول.

## د امیر عبدالرحمن لخوا د کندهار نیول :-

د شوکت افغان په ۱۸۲ مخ کې لیکلي دي :-

د ۱۸۸۱ ع کال د اپریل په ۲۱ امیـر عبـدالرحمن کنـدهار ونیـوه او لـه

---

[۳۸] علامه رشاد مرحوم له بده مرغه د دغي بدلي همدا یـوه مصرع پـه یـادانبتو کـي ثبت کړېده، (هوتک).

خپلي خوا يې هاشم خان د کندهار نائب الحکومه وټاکه. د دغه کال د جولای پر شلمه سردار ايوب خان پر کندهار بريد وکړ او کندهاريې له هاشم خان څخه ونيوه. امير عبدالرحمن خان چي واورېدله له ۱۲ زرو سپاهيانو سره مخ پر کندهار رهي سو. په کابل کي يې سردار حبيب الله خان د نائب السلطنه او پروانه خان د سپهسالار په توګه وټاکه. په لار کي لس زره ايله جاري پښتانه هم ورسره مله سول. امير عبدالرحمن خان چي کندهار ته ورسېده، په تېموريان کي يې واړول، تېموريان د احمدشاهي ښار جنوب ته څلور ميله ليري واقع دئ. سبا ته د زاړه ښار په شاوخوا کي جنګ ونښت. ايوب خان هرات ته ولاړ او امير عبدالرحمن ميدان وګاټه.

ايو خان چي هرات ته ورسېد، پر هرات باندي د ميمنې له خوا سردار عبدالقدوس خان بريد کړی او.هغه يې د ايوب خان د لښکرو له لاسه کښلی و.

امير عبدالرحمن په تاج التواريخ (۹ فصل ۱۵۵ مخ) کي ليکلي دي:-

ايوب خان چي د کندهار د نيولو له پاره مخ پر کندهار را روان سو، حسين علي خان سپه سالار، نائب حفيظ الله خان، جنرال تاج محمد خان د ارسلا خان غلجي زوی، سردار محمد حسن خان، سردار عبدالله خان د سردار سلطان جان زوی، سردار احمد علي خان د سردار محمد علي خان زوی، سردار عبدالسلام خان قندهاری، قاضي عبدالسلام د قاضي محمد سعيد زوی ورسره وو.

د امير عبدالرحمن خان له خوا د کندهار حاکم سردار هاشم خان او سردار شمس الدي خان وو. دوی چي کوم پوځ د ايوب خان مقابلې ته ولېږه د هغو مشران دا وو :-

سپهسالار غلام حيدر خان توخی، د سردار خوشدل خان کندهاري زوی سردار محمد حسن خان، قاضي سعدالدين خان.

## د بدخشان د میر جهانگیر خان استول کندهار ته :-

د رهنمای قطغن و بدخشان په ۱۷۳ مخ کې لیکلي دي :-

امیر عبدالرحمن خان چې پاچا سو، سردار عبدالله خان توخی یې د بدخشان حاکم مقرر کړ. د بدخشان د میر جهاندار شاه خان زوی جهانګیر خان یې، چې د کشم حاکم و، کابل ته وغوښت. جهانګیر خان چې کابل ته ورغی، کندهار ته یې مقرر کړ خو عهده یې (په دغه کتاب) کې نه ده ښوولې.

## د سردار محمد عثمان خان بلوا :-

دغه بلوا په یکشنبه ۱۹ شوال ۱۳۳۱ ق = ۲۸ سنبله ۱۲۹۲ ش = ۲۰ سپتمبر ۱۹۱۳ ع وسوه. د قاضي میر جمال پشدي زوی قاضي امیر الله او د هغه زوی حمیدالله پکښې ووژل سوه[۳۹]. سردار محمد عثمان خان موقوف سو او پر ځای یې سردار محمدیونس خان امین الوجوهات مقرر سو. سردار محمدیونس خان د صوفي دین محمد خان زوی او د سردار سلطان محمد خان طلایي لمسی او د سردار پاینده محمد خان کړوسی و. د کرز زمان خان د دغو بلوایانو په سر کې و.

سراج الملة والدین امیر حبیب الله خان د شوال پر ۲۸ په سلام خانه کې عام دربار وکړ. په دغه غونډه کې د کندهار د بلوا موضوع د ملت په مخ کې تشریح سوه او هغه عریضه چې د کندهار د مشرانو له خوا د کابل دربار ته رسېدلې وه، ولوستله سوه. علامه محمود طرزي د دغې عریضې نقل او دغه د سلام خانې د غونډې خبر د سراج الاخبار په ګنه کې د ۱۳۳۱ هـ ق کال د میانې د میاشتي پر پنځلسمه خپور کړ.

---

[۳۹] پیښلیک، ۲۲۵ مخ.

په دې عریضه کې کښلي دي :-

د کرز و کلچابات و ده ورځ وه چې د یکشنبې د شوال پر نولسمه د جهالو په نامه یادوي، د خرقې شریفي خواجه ځیني کسان، چې دوی یې بست ته ننوتل او دا یې ویل :-

"کوتوال او کوتوالیانو زموږ سپکاوی کړی دئ او زموږ څخه یې مسلیاني او خوش آوازه ښځي غوښتي دي".

د کندهار نائب الحکومه سردار محمد عثمان خان د دوی د نصیحت له پاره د محکمې قاضي له څو مفتیانو سره خرقې شریفي ته ولېږه. خو خلکو برید پر وکړ. د خرقې شریفي په غولي کي یې قاضي او د ده زوی په لغتو او کوتکو وواهه، په ډبرو یې وویشت[40]. د رسالې یو دفعه داریې هم دومره وهلی و، چي له هغو وهلو څو ورځي وروسته ومړ. تر دغه وروسته د نائب الحکومه له خوا د کندهار خانان او عبدالوکیل خان برګډ د نصیحت له پاره ور ولېږل سول، خو بلواګرو یې پر خبرو غوږ ونه نیوه له بسته راووتل او پر ارګ یې ټکان وکړل. خو دغو بلواګرانو ته ایداد ورکړه سو. څه یې مړه څه یې ټپیان او څه یې بندیان سول. موږ د اعلیحضرت له حضوره د دغي پیښي له امله د کندهار د خلکو بخښنه غواړو.

د دغي عریضې په پای کي ٦٧٠ تنو لاسلیک کړی و او یا یې ګوتي لګولي وې، ١٥ تنه محمدزي، ١٥ تنه بارکزي، ۴ تنه پوپلزي، ٣ تنه نورزي، ٣ تنه الکوزي و ساګزي، ٢٠ تنه سوداګر[41]، ٢۴ تنه د کوڅو کلانتران[42]، ١۴

---

[40] خلک وایي د خرقې شریفي په باغچو کې کدوان کرلي او پاخه سوي وو. په دغو کدوانو یې قاضي او زوی ووژل.

[41] په دغو سوداګرو کي لومړی نوم د سید شېرمحمد تجار باشي او دوهم نوم زما (رشاد) د نیکه حاجي محمدایاز خان دئ. د سوداګرو د نومونو په پای کي زما د نیکه د اکا شېرمحمد خان بابري نوم هم سته.

[42] په دغو کي د بابړو د کوڅې کلانتر ولي محمد لیکلی دئ، چي ما (رشاد) لیدلی و.

تنه مهاجر؟[۴۳].

## د امير حبيب الله خان راتګ کندهار ته :-

سراج الملة والدين امير حبيب الله خان په ۱۳۲۵ هـ ق کال له کابله کندهار ته راغی او بیا هرات ته ولاړ[۴۴].

## د خرقې شريفې د سپينو زرو دروازه :-

د خرقې شريفي هغه دروازه چي په دننه عمارت کي هغي خوني ته خلاصېږي چي د خرقې شريفي صندوق پکښې پروت دئ، د سپينو زرو پوښ لري. دوه متره يې اوږده او يو متر و پنځه ويشت سانتي يې بر دئ.

دا پوښ لوی ناب خوشدل خان چي د کندهار نائب الحکومه و، دغي

---

[۴۳] افغانستان در مسير تاريخ، ۷۱۴ مخ.

د کندهار يو محلي شاعر دغه واقعه د نظم په قالب کي بيان کړېده، چي يوه دوه بنده يې علامه استاد پخپلو يادا ښتو کي داسي راوړي دي (م. هـ)) :-

نوی دا بيان دئ محمد عثمان کابل ته تللی و
غوښتی زموږ امير و په حضور يې وربللی و
دی لا خبر نه و، نصرالله دا کار جوړ کړی و
غوښتې مسلياني ښايستي ځي بنګلې لره

نوی دا بيان دئ چي هغه کاغذ په مهر سونا
سپور سو په موټر کي چي دوهمه شپه پر کور سونا
راغی کندهار ته په رعيت کي شر و شور سونا
وې باسئ له ملکه شرموښ درغی رمې لره

نوی دا بيان دئ غبور نژدې که دې قصې لره
ټول يې پښتني کړې تدبير وکئ دې نخرې لري

[۴۴] علامه استاد مرحوم د دغه سفر تفصيل نه دئ راوړی، خو ځای يې تش ورته پرې ايښی دئ، (م. هوتک).

دروازې ته ور جوړ کړ او دا عبارت یې پر لیکلی دئ :-

در زمان سلطنت اعلیحضرت سراج الملة والدین، هدیهٔ لوی ناب خوشدل خان نائب الحکومهٔ اشرف البلاد قندهار تقدیم شد ۱۳۳۶ ه ق

بضاعت نیاوردم الاامید

خدایا زعفوم مکن ناامید

## کندهار ته د مولانا عبیدالله سندهي راتګ :-

د کابل مین سات سال په ۲۳ مخ کې لیکلي دي :-

زه د ۱۹۱۵ ع کال د اپریل په میاشت (د دریمي خور نیمایي ۱۳۳۳ ه ق) کي له ډهلي څخه د کابل ښار په نیامت رهي سوم. څلور میاشتي مي په سنده کي تیري کړلې. د اګست په میاشت کي (د کوچني اختر په ورځ) له مولانا عبدالرحیم سندهي [۴۵] سره له حیدرآباده څخه ووتلم. پر ماریانو مو د بلوچستان درې ووهلې او د ښوراوک په سیمه کي د افغانستان په ټک ور داخل سوم. افغاني حاکم په اول کي څه په شک راته کتل ځکه چي پاسپورټ مو نه درلود خو ژر یې شک لیري سو. موږ ته یې په درنه سترګه وکتل او د معززو مېلمنو په توګه یې زموږ مېلمه پالنه وکړله او په خورا عزت یې کندهار ته ورسولو. هلته د کندهار نائب الحکومه سردار محمدیونس خان ډېر قدر وکړ. څو شپې چي په کندهار کي وو، د ده مېلمانه وو. په ډېر عزت یې کابل ته واستولو او هلته یې هم زموږ له پاره د څو شپو د ټاټوبي او ډوډۍ غم وخوړ. موږ د ۱۹۱۵ ع کال د اکتوبر په پنځلسمه کابل ته ورسېدلو.

د پورتني اثر په ٦۴ مخ کې لیکلي دي :-

موږ چي کندهار ته را ورسېدلو څلور تنه وو او په ټولو مو یو پونډ درلود. خدای کارسازه دئ د کندهار نائب الحکومه زموږ د سفر ټول خرڅ رابرابر

---

[۴۵] شیخ مولانا عبدالرحیم سندهي د مستر اچاریه کرپلاني مشر ورور و. اسلام یې راوړ.

کړ:

په ۸۸ مخ کې لیکلي دي :-

هغه درې تنه چي زما سره افغانستان ته راغلي وو، یو په هغو کي زما وراره محمدعلي بن حبیب الله و. اعتمادالدوله سردار عبدالقدوس خان چي د استقلال په جنګ کي کندهار ته ولېږه سو، دغه محمدعلي ورسره واو هلته یې ډېر خدمتونه وکړل.

د مولانا عبیدالله سندهي ماینه پښتنه وه د سکهر د اسلامیه سکول د معلم مولوي محمدعظیم خان یوسفزي لور وه (هماغه اثر، ۱۰۰ مخ).

## د استقلال جنګ په کندهار کي :-

د ۱۹۱۹ ع کال په اپریل کي صدراعظم عبدالقدوس خان له کابله څخه د کندهار محاذ ته له یوه غونډ سپاهیانو او څو توپو سره چي پر پیلانو بار وو، را رهي سو.

## د انګرېزانو نظامي قوت :-

د مېجر جنرال واب شیر او جنرال هارډې تر مشرتابه لاندي :-

۱۲ کنډکه +۱ پلې محافظه لوا

۳ سپاره کنډکه + ۱ سپاره هندی کنډک

۳ سپاره محافظ کنډکه + ۱ سپاره هندی لوا

۱ محافظه لوا + طیارې (چي په ډېری کې بمان وغورځول او یو آس یې وواژه).

۲ د استحکام ټولی

## د کندهار افغاني قوت :-

۲ سپاره کنډکه

۳ سرحدي ټولۍ

۱ پياده غونډ

۳ پياده کنډکه

## مشران :-

خوشدل خان لوی ناب والي

عبدالقدوس خان صدراعظم، د جبهې قوماندان

جنرال غلام نبي خان ناصر، د عسکري قوې مشر

داود شاه خان کرنيل، د سرحدي محافظ کنډک کرنيل[۲۶]

محمديوسف خان ابراهيم خېل، د سرحدي محافظ کنډک ټولۍ مشر.

د داود شاه خان تر ټپي کېدلو وروسته د سپين بولدک د محافظ کنډک مشر[۴۷].

د سپين بولدک غزا :-

د جنرال هارډې تر مشرتابه لاندې د می په ۲٦ دوه غونډه پلې او يوه

---

[۲۶] د داود شاه کرنيل په باب د يوه محلي شاعر دا څو نيمګړي بندونه د علامه استاد رحمة الله عليه په ياداښتونو کې وه (م. ه) :-

| | | |
|---|---|---|
| داود شاه خان کرنيل | پلټن يې وکې فير | کوي د حورو سېل |
| زما ارمـــان راځي | اسلام ته ورکې برى | جنګ پر ميدان راځي |
| صـدر بابا دئ پاچا | ربه کې وترې مـــلا | د ده په نيت کي غــزا |
| اوسې غــازيان راځي | زور د کافرو ګــوره | چي پر اســـلام راځي |

[۴۷] محمديوسف خان د حاجي آصف جان پاس يوسفي پلار دئ (م. هوتک).

قطعه د گوره وو تر افغاني سرحد راتېر سول. د سهار پر شپږ نيمو بجو جنرال هارډې، چي د سپين بولدک کلا ته خپل پوځونه راورسول، د افغانستان له سرحدي پوځو څخه يې د تسليمۍ غوښتنه وکړه. افغاني لښکر نتهه وکړله جنگ ونښت. اووه ساعته جنگ اوږد سو. افغاني قوت فقط يو کنډک (۳۰۰ تنه) و. له دغو څخه ۱۵۰ تنه شهيدان سول او پاته يې زياتره د لاس په لاس جنگ کي ټپيان سول.

## د پاړسيوانانو بلوا :-

۲۸ شعبان ۱۳۳۷ ق = ۸ جوزا ۱۲۹۸ ش = ۲۹ مى ۱۹۱۹ ع

غازيان چي مخ پر سپين بولدک رهي سول، د سيد بادا راغا زوى سيد عبدالروف چا وواژه[۴۸] او څو ورځي يې د بولکي قربانعلي[۴۹] د سراچې په امبارو کي ښخ کړ. امبارکښانو راوکيښ. دا خبر چي په ښار کي خپور سو، ډېر خلک سره راټول سول. بولکى قربانعلي يې د ارگ د دروازې په جنوبي خوله کي مخابراتو ته نژدې وواژه او د پاړسيوانانو چور پيل سو.

له دغي واقعې څخه يوه ورځ وروسته اعتمادالدوله عبدالقدوس خان د يو غونډ پوځ سره د کندهار د محاذ د قوماندان په توگه کندهار ته راورسېدى.

---

[۴۸] د سيد عبدالروف کور د باميزو په کوڅه کي د لوڼيانو په مسجد کي دننه و.

[۴۹] پخوا د ماليې ټولولو مامور بولکي بلل کېدى او د هري حوزې ماموريت ماليه بولک باله کېده. د کندهار ولايت هغه وخت پر بولکو وېشلى و. په ۱۲۹۸ ش کال د کندهار بولکي قربانعلي و. د بولکي کوڅه د کندهار د توپخانې بازار په چوک کي مخ پر شمال واقع ده. دا کوڅه د بولکي په نامه وروسته نومولې سوې ده.

## د برتانوي بلوچستان د پوځونو د مشر خط :-

د ۱۹۱۹ع کال د جون په لسمه (۱۱ رمضان ۱۳۳۷ هـ ق) په بلوچستان کې د پرنګي پوځونو مشر لفټننټ جنرال د غازي بابا سردار عبدالقدوس خان صدراعظم په نامه رالیږلی او په هغه کې یې د جنګ د معطلۍ په باب د موافقې خبر افغان صدراعظم ته ورکړی دئ. دا خط د کابل په ملي آرشیف کې خوندي دئ. نور خطونه یې هم سته.

## کندهار ته د اعلیحضرت امان الله خان راتګ :-

### لومړی راتګ :-

اعلیحضرت امان الله خان د ۱۳۰۴ ش کال د میزان پر اتلسمه، چې د یکشنبې ورځ وه، له کابل څخه د کندهار په نیت رهي سو[۵۰] او د دوشنبې په ورځ کندهار ته راورسېدی. له امان الله خان سره یې مور هم په دغه سفر کې ملګرې وه. تر مزل باغه پورې په موټر کې راغی بیا پر آس سپور سو او د کابل بازار، چارسو، شاه بازار له لارې برج ته راغی[۵۱]. د اوو وزارتونو مفتشین ورسره وو. د کندهار ادارې یې تفتیش کړلې.

اعلیحضرت غازي د دغه کال د عقرب پر پنځمه ۲۳ ګڼه فرمان د وکیل السلطان محمد ولي خان[۵۲] په نامه له کندهاره کابل ته لیږلی او په هغه کې

---

[۵۰] وګ : د امان افغان دغه کال د میزان د شلمي ګڼه.

[۵۱] زه (رشاد) د ماما پر دوکان ورته ولاړ وم.

[۵۲] امیر امان الله چې کندهار ته تئ د پاچهی نیابت یې محمدولي خان دروازي ته وسپاره، چې په دغه وخت کې د حربیې وزیر و. د اعلیحضرت امان الله شاه غازي په لاسلیک چې د دغي مقررۍ کوم فرمان له وزارت دربار (دارالانشاء) څخه صادر سوی دئ، ګڼه یې ۲۵۷ او نېټه یې د ۱۳۰۴ ش کال د میزان پنځلسمه ده. د دغه فرمان یو عکسي نقل زما (رشاد) په کتب خانه کې سته.

يې ليکلي دي چې زه نيت لرم پنځلس ورځې نوري په کندهار کې تېرې کړم. د عقرب د اوومې ورځې (جمعه) د جمعې لمونځ اعليحضرت غازي ورکړ او خطبه يې ولوستله. په دې سفر کې د طبي، خارجې، ماليې، معارفو، تجارت او عدليې څانګې تفتيش سوې. د تفتيش په پای کې د ۱۳۰۴ هـ ش کال د عقرب په ۲۲ امان الله خان د کندهار د ارګ په شمالي برنده کې دربار وکړ. خورا ډېر خلک ورغلي وو. په دې مجلس کې اعليحضرت ځنې مامورين ونازول او ځيني يې وترټل، ځکه نو دغه دربار د مکافات و مجازات د دربار په نامه يادېږي. د دې مجلس نازولي دا دي :-

۱. مولوي صالح محمد خان هوتک، د کندهار د معارفو مدير ته دوهمه درجه د ستوري نښان ورکړ او پخپل لاس يې د ده پر سينه وتومبه.

۲. ملا احمد جان اخوند خطيب د ګنج د مکتب سرمعلم او ملا عبدالحسين د پاړسيوانانو د مکتب سرمعلم ته دريمه درجه ستور نښان.

۳. شپږو تنو معلمانو ته د دوو دوو مياشتو تنخواوي د بخښښ په توګه، د تلګراف د کورس معلم او شاګردانو ته بخښښ ورکړه سو.

۴. عبدالغياث بلوڅ د توپچي غونډمشر.

۵. د ګمرک رئيس، درجه اول ستوری

۶. د ګمرک سرکاتب ته د حسن خدمت نښان

## د مکافات و مجازات د مجلس ترټلي دا دي :-

۱. عبدالقيوم خان لغمانی لوامشر

۲. محمديوسف خان ابراهيم خېل سرحد دار په درې کاله بند محکوم سو. دوه کاله يې بيا وروبخښل.

۳. د میوند پر اوسېدونکي یحیی خان محمدزي یې د اعدام حکم کړی او عملي سوی و. یحی خان د کشکنخود د حاکم علي محمد خان په وژلو متهم و.

۴. د مرافعې قاضي عبدالوهاب علیزی[۵۳] د مفتي عبده زوی یې له قضا موقوف کړ، کابل ته یې واستاوه او له هغه ځایه یې هرات ته فراره کړ او هورې ومړ.

5. د صحیې مدیر معزول او یو هفته کسر معاش

٦. د کوتوالی سرکاتب معزول سو

۷. کوتوال محمداکبر یوه رتبه تنزیل سو

۸. د محبس مامور په پنځه کاله بند محکوم سو

۹. د ابتدائیې ښوونځي قاضي محمدعثمان لس ورځي بندي سو

۱۰. اغابادار د میوند محمدزی یې شمالي ته فراره کړ.

11. او د مالیاتو په اړه یې د باقیاتو د حصول امر وکړ.

د طلوع افغان د ۲۲ شوال ۱۳۴۴ هـ ق = ثور ۱۳۰۵ ش گڼه کې لیکلي دي :-

اعلیحضرت امان الله شاه پسله ۳۵ ورځو سفر څخه د کابل دلکشا ته ورسېدی.

## دوهم راتگ :-

اعلیحضرت امان الله خان چي کابل ته رهي سو، یوه ورځ بیرته په پټه کندهار ته راغی. دی او معین السلطنه عنایت الله سره ملگري وو. په بازار

---

[۵۳] د یاداښتو په بله برخه کې د ده په باب علامه بابا رحمة الله علیه لیکي :-

"د کندهار د مرافعې قاضي عبدالوهاب خان علیزی (د ارواښاد ښوا مشر ورور) یې بندي کړ. بیا یې د کدهار له خوانینو سره کابل ته بندي راووست". (علامه رشاد اکاډیمي)

کې یې سوداوي وکړلې. له یک صمد ځخه یې په کابل دروازه کې انار رانیول. د باقیاتو حصول یې معطل کړ.

## دریمه پلا :-

اعلیحضرت غازي د ۱۳۰۵ ش کال د عقرب میاشت په کندهار کې تېره کړه. یو فرمان چې یې له کندهاره څخه د وکیل السلطان محمدولي خان دروازي په نامه د عقرب پر ۲۶ کابل ته لېږلی دئ، په هغه کې لیکلي دي :-

د عقرب په ۲۹ کابل ته د رهي کېږم.

په ۱۳۰۵ ش کال د عقرب په څلورمه چارشنبې = ۱۹ د دوهمي خور ۱۳۴۵ ه ق دریمه پلا اعلیحضرت غازي کندهار ته راغی. علامه عبدالحی حبیبي چې په دغه وخت کې له پنځم ټولګي (ابتدائیه مکتبه) فارغ سوی او د معلم په توګه په ګنج مکتب کې مقرر سوی و، یو شعر ورته ویلی او په طلوع افغان کې خپور سوی دئ. د طلوع افغان مدیر عبدالعزیز خان د دغه شعر په سر کې یو څو خبري کښلي او په هغه کې یې ویلي دي :-

"طلوع افغان طبع روان آقای ع. ح را تحسین مینماید".

## څلورمه پلا :-

اروپا ته تلل. امان الله شاه سه شنبه ۷ قوس ۱۳۰۶ ش له کابله حرکت وکړ. شپه یې تېره کړه د قوس پر اتمه د چارشنبې د ورځې په ماپښین کندهار ته ورسېد. مزلباغ ته یې خلګ مخي ته راوتلي وو. نهه شپې یې په کندهار کې تېري کړلې. جمعه ۱۷ د قوس یې له کندهاره حرکت وکړ. په دې سفر کې اعلیحضرت د کندهار له لاري اروپا ته ولاړ. کوم متحدالمال فرمان چې د محمدولي خان نائب السلطنه په نامه په کابل کې صادر سوی دئ، نېټه یې د ۱۳۰۶ ه ش کال د لېندی۱۵ ده او په دغه فرمان کې د

لېږدی له ښپاړسمي ښخه د محمدولي خان وکالت نافذ بلل سوی دئ. د کندهار د طلوع افغان مدير عبدالعزيز خان الکوزی يې د سفر ملګری کړ او تر بمبئي ورسره و.

مولوي صالح محمد خان يوه ترانه (ترکيب بند) ورته ليکلې وه، چې مقطع يې دا وه :-

دا سـفر دي بې خـطر سه اې غازي
پر دښمن دي تل ظفر سه اې غازي [۵۴]

اعليحضرت غازي د شنبې په ورځ د قوس په ۱۸ (۱۰ دسمبر ۱۹۲۷) له سپين بولدک ښخه د چمن خوا ته تېر سو. د جمعې په ورځ سهار له کندهاره ښخه را رهي سوی و. شپه يې په سپين بولدک کي تېره کړه. چمن ته سهار پر ۱۰ بجو او ۴۵ دقيقو ورسېدی. په چمن کي ورته جنرال John 1st Homington هر کلی وکړ.

## پنځمه پلا راتګ :-

له اروپا راستنېدل— د سرطان په پنځمه ۱۳۰۶ کال چي اعليحضرت غازي له اروپا ښخه راستنېدی، د هرات له لاري کندهار ته راغی. ملکه ثريا لڅ مخ ورسره وه [۵۵]. د ډنډ په چوک کې د ده له پاره يو متر جګه ګردی کوچنی تنګاچه جوړه کړې وه. کندهار خلک چې هر کلي ته وروتلي وو، د

---

[۵۴] وګ : طلوع افغان د شپږم کال ۹۶ ګڼه، چهارشنبه ۱ قوس د ۱۳۰۶ ش = ۱۲ جمادی الثاني ۱۳۴۶ ق. (ټوله ترانه په پاشلي ويناوي نومې مجموعه، ۵۷ مخ کې سته، م. هوتک).

[۵۵] د کندهار په مشرانو کي قيوم اخوندزاده پوپلزي، حاجي يارمحمد خان الکوزي او فيض الحق اخونزاده بارکزي اعليحضرت ته وويل :-

د دغه مخ لڅی له امله يواځي ته نه تباه کېږې، وطن هم درسره تباه کېږي. دغه درې تنه يې بنديان کابل ته بوتلل.

دغي تنګاچې پر شاوخوا راتول وو. شاوخوا سړکان له خلکو ډک وو. د مکتبو شاګردان يې هم ور ايستلي وو. اعليحضرت غازي پر هغه تنګاچه وخوت او خلکو ته يې وينا وکړله، ويې ويل :-

افغانستان به هغه وخت ترقي وکړي چې ښځو ته آزادي ورکړله سي او له نارينه وو سره اوږه پر اوږه د هيواد کار پر مخ بوزي. په دغه وخت کې سردار عبدالله جان طرزی رئيس بلديه و.

خواجه محمد بارکزي د طلوع افغان مرستيال يوه ښه راغلې ورته وويل :-

خدايه راولې پاچا په سفر تللی [۵۶]

دا پلا يې په کندهار کې درې شپې تېرې کړلې او د سرطان پر اتمه له کندهاره رهي سواو شپه يې په مقر کې تېره کړله.

## شپږمه پلا :-

پس له خلعي کندهار ته راتګ او د کابل د نيولو په نيامت غزني ته روانېدل.

رحمت الله پوپلزي عريضه نويس ده ته د ۱۳۰۸ کال د حمل په لسمه = ۱۸ شوال ۱۳۴۷ ق يوه په مخه ښې او خدای په اماني وويله. دا خدای په اماني د طلوع افغان د اتم کال په پنځلسمه ګڼه کې خپره سوې ده.

له امان الله خان سره په دغه لښکر کې سدو خان الکوزی، سيد اغا د کوکران او مشهور ستانه ملا محمد حسن اخوند الکوزی هم ملګري وو. امان الله خان د ۱۳۰۸ ش کال د نوروز له ورځې څخه چې د پنجشنبې ورځ وه (۹ شوال ۱۳۴۷ هـ ق) د کابل لور ته له کندهاره څخه د لښکر لېږل، پيل

---

[۵۶] ترکيب بند دئ څلور بنده لري. (د ۱۳۰۶ ش کال د دلوي ۸ = ۴ د شوال ۱۳۴۶ ق).

کړل. په دغه جنګ کې له ده سره لس زره ایله جاري ملګري و[57].

دی د حمل په شپږمه خرقې شریفې ته ولاړ. خرقه شریفه یې را وایستله. عیدګاه ته یې یووړله او هلته یې د عیدګاه د ودانۍ پر بام خلکو ته ښکاره کړله. امان الله خان پارسي وینا وکړله او ...؟ په پښتو ترجمه کوله.

**خاطره :-**

د اروابناد اعلیحضرت غازي امان الله شاه د پاچهۍ په وختو کې زه (رشاد) د لږ عمر وم، دی چې د پرنګیانو په چل و چم او د ځنیو وطنوالو په دروه و درغل د ګران افغانستان پرېښوولو ته اړ ایستل سو، زه د اووه نیمو کالو وم.

اروابناد اعلیحضرت غازي ما درې څلور واره په کندهار کې له لیري لیدلی دئ. وروستی ځل مې چا دی ولیده د ۱۳۰۸ ش کال د وري (حمل) شپږمه وه. زه دغه وخت د ګنج ښوونځي د دوهم ټولګي شاګرد وم[58]. په دغه ورځ (د ۱۳۰۸ ش کال د وري په شپږمه) زموږ د مکتب ټول شاګردان د سهار تر حاضرۍ اخیستلو وروسته په لین سره د خرقې شریفي متبرک زیارت ته راوستل سول او د خرقې شریفي د زیارت په غولي کې یې ودرولو، څو دقیقې وروسته د خرقې شریفي مشر متولي (عبدالحمید اخوندزاده الکوزی) د کندهار د نورو لویو ملایانو او سترو ستانه وو په ملګري د حضرت پیغمبر ﷺ د شریفي خرقې مبارکي سندوخ په ډېره درناوي سره د خرقې شریفي له ودانۍ څخه راویوست، ټول خلک په مبارک

---

[57] جنبش مشروطیت، ۱۶۳ مخ.

[58] د ګنج ښوونځی د کندهار د اوسنی ښاروالۍ شا ته واقع او د اروابناد احمدجان اخوندزاده، چې په خطیب صاحب مشهور و د دغه مکتب سرمعلم و.

سندوخ پسي مخ پر عیدگاه رهي سول، موږ هم په پسې وو[۵۹]. کله چې د خرقې شریفې موکب د عیدگاه مدخل ته ورسېده، عسکري قطعې نظامي سلامي ورته وکړله، د خرقې شریفې سندوخ یې د تهلیلونو او تکبیرونو په رو‌ږ کي د عیدگاه د ودانۍ بام ته وخېژاوه او موږ ته یې د عیدگاه په غولي کي ځای راکړ. تر دې وروسته اعلیحضرت غازي د عیدگاه د ودانۍ پر بام ښکاره سو، خرقه شریفه له مبارک سندوخه څخه راوایستله سوه او څو واري یې شاومخ خلکو ته وښوول سو، اوس زما دا نه دي په یاد چي خرقه شریفه چا ښکاره کړله.

تر دغو مراسمو وروسته اعلیحضرت غازي قام ته په خطاب کي وویل:-

"زه د لوی خدای په توکل او ستاسي مړنیو په اصرار او مرسته د سقاو د زوی جنگ ته مخ پر کابل رهي یم، خپلي مرستي او دعاوي به نه راڅخه سپموئ".

تر دې وینا او دعا وروسته اعلیحضرت غازي د عیدگاه د ودانۍ له بامه راکښته سو، ټول خلک له اعلیحضرت غازي سره پلي د خرقې شریفي په سندوخ پسي روان وو. غرمې ته نژدې دغه مبارک سندوخ د خرقې شریفي زیارت ته ورساوه سو او پر خپل ځای یې په ډېره درناوي کښېښوو.

زه چي غرمه کور ته راغلم، مور ته مي د دغي نیمي ورځي گذارشات وویل، ماما مي (عبدالخالق) ناست و، زما تر وینا وروسته یې دا پر زیاته کړه، اعلیحضرت چي د خرقې شریفي په مبارک سندوخ پسي پلی رهي و، اوښکي یې هم تر سترگو راتلې. پلار مي د ده تر خبرو وروسته وفرمایل :-

آهوی دشت معاصی را دو روزی سر دهید
تا کجا خواهد دوید آخر شکار رحمت است

---

[۵۹] عیدگاه د کندهار د احمدشاهي ښار دباندي شمالي لور ته له عیدگاه دروازې څخه نژدې یو فرلانگ لیري واقع ده. (اوس ۱۳۸۴ ش د محمود طرزي په نامه ښوونځی پکښې جوړ دئ، هوتک).

## د سلطان محمد خان عليزي پور ته کېدل :-

د کورنيو چارو وزير عبدالعزيز خان بارکزی یې د ځبلو له پاره راغی د ياغيانو مشران ونيول سوه او د ۱۳۰۲ ش کال په سنبله کي په کندهار کي د عيدگاه دروازې دباندي په توپ کي والوزول سول[٦٠].

## د اعليحضرت امان الله خان خلعه :-

د اعليحضرت امان خان کډي د موټر په واسطه د ۱۳۰۷ ش کال د قوس په مياشت کي له کابله کندهار ته راورسېدلې. د جدي په مياشت کي اعليحضرت امان الله خان پاچهي عنايت الله خان ته وسپارله او د دې مياشتي پر ۲۵ سهار له کابله راووت او پر ۲۷ کندهار ته راورسېد.

خو ورځي پس معين السلطنه، چي د ده تر خلعي وروسته په کابل کي پاچا سوی و، د پېښور او چمن له لاري کندهار ته پسي راغی.

اعليحضرت چي له غزني څخه کندهار ته راستون سو، کندهار ښار ته ننه نه ووت، له درواهی څخه مخ پر چمن رهي سو او د ۱۳۰۸ ه ش د جوزا لومړی نېټه (... ۱۹۲۹ ع د می پر ۲۳) له سرحد څخه واوښت. څه کم يوه مياشت يې په بمبئي کي تېره کړله او د چنگابښ پر دوهمه (... د جون پر ۲۲) له بمبئي څخه د بحر له لاري د ايټاليا په نيامت وخوځېد. اعليحضرت غازي چي له وطنه ووت، رحمت الله پوپلزي عريضه نويس اته بيته ورته وويل. په دې مطلع :-

دښمن ورکړله نری رشته په لاس
جاهلانو پسي ورکئ پيچ و تاب

د کندهار ښار تر يوې مياشتي کلابندی وروسته د شنبې په ورځ د

---

[٦٠] پښې ليک، ۲۴۴ مخ. د دغه بغاوت د تفصيل له پاره علامه استاد ځای تش پرې ايښی دئ (م. هوتک).

۱۳۴۸ هـ ق کال د دریمي خور په اتمه = ۱۹ میزان ۱۳۰۸ ش د مهردل خان بارکزي او زقوم خان اڅکري په مشرۍ (له سقاویانو څخه) ونیول سو. تر ټولو دمخه پر ښکارپور دروازه راغلل هغه ورخلاصه کړله سوه[٦١].

## بیان د قندهار امان الدیار :-

د افغانستان د خپلواکۍ ګټونکي د معارف پالونکی او پر ترقی مین پاچا اعلیحضرت امان الله شاه غازي (۱۲۹۷ – ۱۳۰۷ هـ ش) د ۱۳۰۴ هـ ش کال د میزان ۱۹ مه لومړی وار کندهار ته راغی.

د اعلیحضرت غازي امان الله شاه د دغه سفر له پاره په پښتو ژبه یو چا یوه لارښوونکې رساله لیکلې ده، نامعلوم مولف دغه رساله "بیان د قندهار امان الدیار" نوملې ده، د کندهار لقبونه د اشرف البلاد او دارالقرار په ډول ما اروېدلي وو، خو د امان الدیار پر لقب یې زه په دغه رساله کي پېښ سوم. د کندهار له پاره د امان الدیار لقب د اعلیحضرت امان الله شاه غازي له درانه نامه سره اړیکی لري. د بیان د قندهار امان الدیار مولف د خپل دغه تالیف نسبت د اعلیحضرت امان الله شاه غازي د نامه سره د رسالې په شپږم مخ کي داسي بیانوي :-

"پاسنی[٦٢] لار د کابل په څه تفصیل ځکه بیان سوېده، چي له دارالسلطنې[٦٣] به غازي پاچا امیر امان الله خان (پر دغه لار) تشریف و قندهار ته وړي، چي لومړی تګ یې دئ ..."

د دغي رسالې متن پر دغو اوو عنوانونو وېشلی دئ :-

---

(٦١) د طلوع افغان د ۱۳۰۸ ش کال د سنبلې په ۲۹ ګڼه کي د اڅکزو د پورته کېدلو خبر خپور سوی دئ.

(٦٢) په اصل کي "پاسنه".

(٦٣) په اصل کي "دارالسلطنه".

۱. په لار د قندهار تل بهار- په دغه څېړنه کې د کابله څخه تر کندهار پوري مزلونه، د هغو تر منځ واټنونه (فاصلې) او د بحر له سطحې څخه د هغو جګوالی بیان سوی دئ.
۲. نوري لاري – په دغه څېړنه کې د کندهاره څخه د هرات لار، د کندهاره څخه د پښين لار، له پښينه څخه ډېره اسماعيل خان ته لاري، له کوټې څخه ډاډر او سيوى ته لار او د هغو واټنونه ښيي، دلته مولف خپله څېړنه د پښتونخوا تر ختيځ بريده رسوي.
۳. موقعيت[۶۴] د ښار – په دغه څېړنه کې د کندهار ښار طول البلد او عرض البلد، د تودوخې درجه، د کندهار د احمدشاهي د کلا کيفيت، د غولي اندازه او بازارونه بيان سوي دي.
۴. پيداوار د قندهار
۵. سيرابي
۶. څو تاريخي ټکي – په دغه څېړنه کې مولف د کندهار د زاړه ښار ودانې د مقدوني سکندر بولي. د کندهار نور تاريخي حالات په خورا اجمال بيانوي او د ميرويس نيکه تر بري پوري دا لړۍ رارسوي.
۷. ايران او هوتک د قندهار – په دغه څېړنه کې مولف يوازې د هوتکو پر کارنامو بسنه نه کوي، بلکې د کندهار تاريخ تر غازي امان الله شاه پوري را رسوي. په دغه ترڅ کې ځيني فرهنګي مسئلې هم په ډېر اجمال څېړي.

دا رساله د ۱۳۰۴ هـ ش کال د تلې پر اووه لسمه له کابله څخه کندهار ته د اعليحضرت غازي تر رهي کېدلو يوه روځ دمخه په کابل کې پای ته رسېږي. د مخونو شمېر يې 53 دئ، قطعه يې وړه ده، د متن له انشاء څخه داسې ښکاري چې پښتو د مولف مورنۍ ژبه نه ده، زه ګمان کوم چې دغه زما د کتابتون نسخه د مولف پخپل خط کښلې ده.

---

[۶۴] په اصل کي د موقعيت پر ځای "موقع" ليکلی دئ.

## د کندهار واکمنان :-

بیرم خان، له ۹۵۲ هـ ق څخه تر ۹۶۲ هـ ق پوري. د همایون لـه خـوا د کندهار حاکم و.

شاه محمد کلاتی، ۹۶۳ هـ ق

شاه بېګ کابلی، ۱۰۰۳ - ۱۰۱۵ هـ ق، په کندهار کي مړ سو.

تخته بېګ ملقب په سردار خان، ۱۰۱۵ - ۱۰۱۷ هـ ق[1].

غازي بېګ

ګنجعلي خان، ۱۰۳۱ - ۱۰۳۴ هـ ق

علیمردان خان د ګنجعلي خان زوی، ۱۰۳۴ - ۱۰۴۷ هـ ق

قلیچ علي خان، ۱۰۴۷ - ۱۰۵۰ هـ ق

صفدر علي خان، د ۱۰۵۰ هـ ق د شوال په وروستی ورځ. د قلیـچ خـان په عوض کي د کندهار حاکم سو. دوه کاله يې حکومت وکړ. په ۱۰۵۴ هـ ق ومړ (افغانستان در عصر ګورګانی هند، ۱۰۱ - ۱۰۳ مخونه).

سعید خان بهادر ظفر جنګ، د ۱۰۵۲ هـ ق کال د روژې په میاشت کـي

---

[1] د میرزا حکیم له امراوو څخه و. د میرزا حکیم او اکبر په جنګ کي يې د توري نـوم ولاړ. د میرزا حکیم تر مرګ وروسته د اکبر په امراوو کي شامل سو (۹۹۳ هـ ق). له کنورمان سنګه سره د کابل لور ته واستاوه سو. د یوسفزو په څبلو کي له مان سنګه او زین خـان کوکـه سره ملګری و او د یوسفزو او روښانیانو په څبلو کي يې ډېر خـان سـتړی کړ. وروسـته د شهزاده سلیم (بیا جهانګیر) سره وګوماره سو. په لاهور کي يې جاګیر ورکړ. بیا د پېښور تانه دار مقرر سو. له روښانیانو سره يې جنګونه وکړل.

د جهانګیر د پاچهی په لومړي کال چي اوازه سوه د هرات صفوي نائـب الحکومـه حسین شاملو پر کندهار برید وکړ، تخته بېګ ته يې دوه زري منصب او د سردار خـان لقب ورکـړ د میرزا غازي بېګ سره يې د کندهار د والي شاه بېګ په مرسته ولېږه. دوی چـي کنـدهار تـه ورسېدل قزلباشو د کندهار کلابندي پرې ایښې وه. دی د شاه بېـګ پـر ځـای د کنـدهار واکمن سو او په ۱۰۱۶ هـ ق کال په کندهار کي مړ سو. (مآثر الامراء ۴۷۶/۱ مخ).

چي صفدر خان د کندهار له حکومته معزول سو. سعید خان یې پر ځای مقرر سو (سیرالمتاخرین، ۷۲ مخ).

میر بزرگ د میر معصوم بهکري قندهاري زوی (متوفی ۱۰۳۳ هـ ق)، د غازي تر خان، سردار خان، قراق خان؟ او بهادر خان په وختو کي د کندهار بخشي و.

خواص خان، ۱۰۵۷ هـ ق. دی د ۱۰۵٦ هـ ق کال د رجب په ۱۵ د کندهار حاکم مقرر سوی و. په دغه وخت کي شاه جهان په کابل کي و.

دولت خان بیټنی، ۱۰۵۹ هـ ق

خواجه کلان، د بابر د زوی کامران له خوا د کندهار واکمن و.

## د کندهار نائب الحکومه ګان د سدوزیو په دوره کي :-

عباس خان سدوزی، عبدالخالق سدوزی چي تېمورشاه ته پورته سو شپږمه ورځ یې لښکري مخ پر کابل رهي کړلې. د کندهار حکومت یې خپل ورور عباس خان ته وسپاره (زیب تاریخ ها، روسي ژباړه، ۳۸ مخ).

شهزاده همایون د تېمورشاه مشر زوی، ۱۱۸٦ - ۱۲۰۸ هـ ق

شهزاده قیصر د شاه زمان زوی، ۱۲۰۸ هـ ق

شهزاده حیدر د شاه زمان زوی، ۱۲۰۹ هـ ق

مهر علي خان ساګزی د شاه زمان له خوا، ۱۲۱۴ - ۱۲۱٦ هـ ق

محمد علي خان (ملقب په شاپسند خان) د زمان شاه له خوا، شاه محمود چي حمله وکړه، ده د کندهار تر ښار دباندي له شاه محمود سره جنګ وکړ، مات سو په کلا ننوت. ۳۰ ورځي یې کلابندي تینګه کړه.

شهزاده کامران د شاه محمود له خوا، ۱۲۱٦ - ۱۲۱۹ هـ ق

عبدالکریم خان د رحیمداد خان زوی، د زمان شاه په وختو کي د کندهار نائب الحکومه و (تازه نوای معارک).

شهزاده قیصر د شاه زمان زوی (د شاه شجاع له خوا)، ۱۲۱۹ هـ ق، پلاریې په کندهار کې ورسره و.

شهزاده کامران د شاه محمود زوی (دوهمه پلا)

شهزاده یونس د شاه شجاع له خوا

شهزاده یوسف د شاه شجاع له خوا

میرعلم خان (د فتح خان زوم) د دواړو نایب و (وګ: تاریخ سیاسی افغانستان، ۷۹ - ۸۲ مخونه).

شهزاده ایوب د تیمورشاه زوی، د شاه محمود د دوهمي پاچهۍ په پیل کې، نائب یې نواب اسد خان و.

نائب ګل محمد خان پوپلزی، ۱۲۳۵ هـ ق، (ګل محمد خان د اسلام خان زوی د محراب خان لمسی د سهراب خان کړوسی).

شهزاده فتح جنګ د شاه شجاع زوی، ۱۱ د دوهمي خور ۱۲۵۵ هـ ق، د شاه شجاع د دوهمي پاچهۍ په پیل کې. دی په نامه نائب الحکومه و، اختیارات د میجر لیچ انګریز په لاس کې وه. سردار سمندر خان او سردار عطا محمد خان د فتح جنګ نائبان وو (مهدی فرخ ۱۲۷ مخ).

شهزاده صفدر جنګ د شاه شجاع زوی، ۱۲۵۸ هـ ق، (د شاه شجاع د دوهمي پاچهۍ په پای کې).

## د کندهار نائب الحکومه ګان د محمدزیو په وختو کې :-

سردار شېردل خان د پاینده خان زوی

سردار پردل خان د پاینده خان زوی

سردار کهندل خان د پاینده خان زوی

سردار غلام حیدر خان د امیر دوست محمد خان زوی، ۱۲۷۲ - ۱۲۷۳ ق

سردار شېرعلي خان د امیر دوست محمد خان زوی، ۱۲۷۴ هـ ق
سردار محمدامین خان د امیر دوست محمد خان زوی، ۱۲۸۲ هـ ق
سردار محمد سرور خان د محمداعظم خان مشر زوی، ۱۲۸۵ هـ ق، (سردار محمدعزیز خان وروریې سپهسالارو).

سردار محمدهاشم خان، د ۱۲۸۵ د شعبان په ۱۵ د کندهار نائب الحکومه بښوول سوی دئ؟ د امیر محمد یعقوب خان له خوا هم د کندهار والي و.

سردار شېرعلي خان د سردار مهردل خان زوی [۲]، ۱۲۸۶ هـ ق

فتح محمد خان د وزیر محمداکبر خان زوی، د ۱۲۹۱ هـ ق په حدودو کي.

سردار میر افضل خان د سردار پردل خان زوی، ۱۲۹۵ هـ ق، د امیر شېرعلي خان له خوا.

---

[۲] سردار شېر علي خان وار د واره په ۱۲۸۶ هـ ق د امیر شېر علي خان له خوا د کندهار نائب الحکومه مقرر سو. د امیر شېر علي خان په دوهمه پلا پاچهي او د انگرېزانو د استېلا په وخت کي.
د انگستان د افغانستان پر ضد نومي کتاب په ۱۴۶ مخ کې لیکلي دي :-
د ۱۸۸۰ ع کال د اپریل په پنځمه لارډ لیټون سردار شېر علي خان ته خبر ورکړ، چي دی د انگرېزانو له خوا شخه د کندهار پر سیمه حکمران مقرر سوی دئ. د ۱۸۸۰ ع کال د مې په یوولسمه شېر علي خان د کندهار د خودمختار دولت د خپلواکه واکدار په توگه وټاکه سو. د پښتنو تاریخ په ۱۸۸/۴ مخ کې کښلي دي :-
امیر عبدالرحمن خان وایي په کومو ورځو کي چي د کابل په معاملاتو مصروف وم د وطن جنوب شرقي علاقه (کندهار) د پرنگیانو تر لاس لاندي وه او هغوی شېر علي خان والي مقرر کړی و او هم لا هغه شان هغوی په کندهار کي و مگر انگرېزانو دغه والي د قندهار نه لیري کړ او هغه له یې یو پنشن مقرر کړ او کراچي کي یې د استوگي ځای ورکړ. په ۲۱ اپریل ۱۸۸۱ ع کال = ۲۱ جمادی الاولی ۱۲۹۸ هـ ق انگرېزي پوځ د قندهار ښار خالي کړ او ما ته یې حواله کړ او ما هاشم خان د کندهار والي مقرر کړ.

صفدر علي خان پنجشېرى هزاره، د حسين علي خان وزيرجنګ ورور د امير شېرعلي خان د پاچهۍ وروستى نائب الحکومه.

محمداعظم خان د امير دوست محمد خان زوى، د خپل ورور محمدافضل خان د پاچهۍ په وختو کي (د رشتيا او طبيبي اظهارات).

نواب غلام حسين خان، ۱۲۹۶ ه ق = ۱۸۷۸ ع، د انګرېزانو له خوا د کندهار والي وټاکه سو.

سردار عبدالرسول خان، د ۱۲۹۸ هـ ق پای = ۱۲۹۹ پای، د امير عبدالرحمن خان له خوا لومړى والي

سردار شمس الدين خان

سردار محمدهاشم خان، ۱۲۹۸ هـ ق، د امير عبدالرحمن خان د جلوس په اوايلو کي.

سردار نور محمد خان د سلطان طلايي زوى، ۲۶ ذى الحجه ۱۲۹۹ هـ ق[۳].

سردار محمدعلي خان، د سردار پير محمد خان زوى د پاينده خان لمسى. دى په ۱۳۰۹ ه ق کي د دوهمي خور په شپاړسمه مړ سو پر ځاى يې تيموري مقرر سو.

عبدالله خان تيموري هراتى، ۱۲ د محرمي ۱۳۱۲ ه ق

امير محمد خان لوګرى، دوهمه خور ۱۳۱۲ ه ق

محمد عالم خان غوچي باشي، ۲۸ د کوچني اختر ۱۳۱۳ ه ق

سردار محمد عثمان خان، د سردار محمد عمر خان زوى د لوى سردار محمدعظيم خان لمسى. د ۱۳۳۱ ه ق کال د ذي القعدې په ۲۴ د کندهار

---

[۳] په يوه بل ياداشت کي د (صحيفهٔ زرين ۲۵۰ مخ په حواله) سردار نورمحمد خان له ۱۲۹۹ ه ق = ۱۸۸۲ ع څخه تر ۱۳۱۰ ه ق = ۱۸۹۲ ع پوري د کندهار حاکم بلل سوى دئ (م. هوتک).

له نائب الحکومگی څخه ولاړ.

سردار محمدیونس خان، ۱۷ د محرمي ۱۳۳۲ هـ ق د ۱۳۳۳ هـ ق تر پایه، امین الوجوهات یې لقب و د صوفي دین محمد خان زوی د سلطان طلایي لمسی.

خوشدل خان لوی ناب، د شېردل خان لوی ناب زوی د میرداد خان بارگزي لمسی.

سردار عبدالقدوس خان اعتمادالدوله، ۱۲۹۸ هـ ش، د ۱۳۰۰ هـ ش د جدي پر ۱۴ له کندهاره کابل ته ولاړ.

عبدالعزیز خان بارگزی (وزیر داخله)، ۱۹ جدی ۱۳۰۰ هـ ش

محمد سرور خان بارگزی (سردار اعلی)، ۱۳۰۱ هـ ش = ۱۹۲۳ ع

عبدالکریم خان بارگزی علومي، ۳ مېزان ۱۳۰۷ هـ ش، د ۱۳۰۷ ش کال د مېزان په نهمه کندهار ته راغی. تر دغه پخوا د بلخ والي و.

عبدالقدیر خان تره کی (د شمالي اوسېدونکی)، د سقاوله خوا د کندهار نائب الحکومه سو. پردل خان یې نائب سالار و.

## په نادري دوره کي :-

مهردل خان بارگزی

عبدالغني خان محمدزی

محمدگل خان مومند، د ۱۳۰۹ ش کال د حوت په اوومه د چمن له لارې کندهار ته راغی د کندهار د چاپخانې مصحح سید حسین د هرکلي یو شعر ورته وړاندي کړ، یو نیم بیتی یې دا دئ:-

خدای دي راوله وزیر محمد گل خانه !

او د ۱۳۱۱ هـ ش کال د کب (حوت) پر اوومه کابل ته رهي سو او د ۱۳۱۲ ش کال له ؟ څخه مزار شریف ته ولاړ او هلته د ماورای هندوکش

ریاست تنظیمیې ته تبدیل سو.

غلام فاروق خان د سردار محمدعثمان زوی، ۱۳۱۱ ش = ۱۹۳۲ ع، د ده د مقررۍ په وخت کي محمدګل خان لا رئیس تنظیمیه و.

## په ظاهرشاهي دوره کي :-

سردار محمد داود خان، ۱۳۱۴ ش = ۱۹۳۵ ع، د ۱۳۱۸ په اسد کي د قوای مرکز قوماندان سو. د سردار محمدعزیز خان زوی د سردار محمدیوسف خان لمسی د یحیٰی خان کړوسی.

غلام فاروق خان، ۱۳۱۷ ش = ۱۹۳۸ ع (دوهمه پلا)

سردار علیشاه خان، اسد ۱۳۱۸ ش = ۱۹۳۹، د سردار محمدسلیمان خان زوی د سردار محمدآصف خان لمسی د سردار یحیٰی خان کړوسی.

محمدقاسم خان، ۱۳۲۰ ش = ۱۹۴۱ ع

محمدیونس خان، ۱۳۲۶ ش = ۱۹۴۶ ع

عبدالغني خان ګردیزی، ۱۳۳۰ ش = ۱۹۵۰ ع

محمدصدیق خان وزیری، ۱۳۳۸ ش = ۱۹۵۹ ع

خان محمد خان پوپلزی، ۱۳۳۹ ش = ۱۹۶۰ ع

محمدصدیق خان محمدزی، ۱۳۴۱ ش = ۱۹۶۲ ع

انس خان محمدزی، قوس ۱۳۴۴ ش = ۱۹۶۵ ع

ډاکټر عبدالرحیم شریفي، ۱۳۴۶ ش = ۱۹۶۷ ع

محمدصدیق (دوهمه پلا)[۴]، ۱۳۴۷ ش = ۱۹۶۸ ع

سلطان عزیز زکریا، ۱۹۷۰ ع تر ۱۳۵۲ ش = ۱۹۷۳ ع

---

[۴] له غلام فاروق خان وروسته د عیسوي سنو شمسي معادل ما پر زیات کړی دئ، (م. هوتک).

## د جمهوریت دوره :-

ایوب عزیز، ۱۳۵۲ = ۱۹۷۳ ع، د ۱۳۵۷ ش د ثور په اوومه چې په کابل کې خلقي کودتا وسوه، ایوب عزیز یې بندي راوست.

## د دیموکراتیک جمهوریت دوره :-

۱. جنرال میر تاماس رؤف د کوهستان اوسېدونکی. د ایوب عزیز تر بندي کولو وروسته د کندهار رئیس تنظیمیه (ملکي او عسکري حکمدار) سو.

۲. انجنیر ظریف توتاخېل، د سي آی اې کوم اسناد چې په ایران کې خپاره سوي دي، په هغو کې دغه سړی د CIA جاسوس ښوول سوی دئ.

۳. صاحبجان صحرایي نورزی د دهراوت، د ۱۳۵۸ ش کال د جدي تر شپږمي پوري.

۴. شهنواز شیوانی[5]، (د ۱۳۵۸ هـ ش کال د مرغومي له ۱۳ څخه لس میاشتي).

۵. عبدیانی (د جلال آباد د بهسودو).

---

[5]. د ده زوی گلنواز شیواني ما (رشاد) ته وویل :-

زما پلار شهنواز شیواني د فقیر عبدالرحمن علیزي زوی، د عبدالکریم خان لمسی، د میرویس خان کړوسی، د حاجي محمدظریف کوسی دئ. شیوان د فراه له ښاره څخه تقریباً ۳۵ کیلومتره لیري پروت دئ. دی په دغه کلي کي په ۱۳۲۰ یا (۱۳۲۲) هـ ش زیږېدلی دئ. حربي ښوونځی او حربي پوهنتون یې په کابل کي ویلي دي، مسلک یې مخابره وه، ده خپله لیکلې سوانح "له گوروانی تر ولایته" په ۱۳۶۰ - ۱۳۶۱ کلو کي کښلې وه. له کندهاره چي موقوف سو، احتیاط ته ولاړ، نهه میاشتي په احتیاط کي و، بیا د افسرانو معلم سو، تر ۱۳۶۸ هـ ش پوري استاد و، د ۱۳۶۸ هـ ش د حوت پر ۱۶ د شهنواز خان تني کودتا وسوه، د دغي میاشتي په ۱۶ - ۱۸ ورځو کي شهید کړه سو.

٦. حمیدالله روهي
٧. محمدزمان
٨. جنرال اکوم
٩. محمدشفیق مشهور په (ګل اغا شېرزی)
۱۰. ملا محمد حسن
۱۱. ملا محمد حسن رحماني
۱۲. محمدشفیق مشهور په (ګل اغا شېرزی)
۱۳. انجنیر محمدیوسف پښتون
۱۴. محمدشفیق مشهور په (ګل اغا شېرزی)
۱۵. اسدالله خالد

## د کندهار د زون آمران :-

۱. عبدالمجید سربلند د سربلند خان بارکزي زوی د محمدکریم خان لمسی (د اطلاعاتو کلتوروزیر) مقرري د ۱۳۵۹ ش کال د روژې میاشت.
۲. عبدالحق بارکزی د عظیم جان زوی د عبدالکریم علومي لمسی.
۳. عبدیانی
۴. شیوانی
۵. نورالحق علومي، د عظیم جان بارکزي زوی، ۱۳۶۷ ش
محمدشفیق مشهور په ګل آغا، د حاجي عبداللطیف زوی د اسلامي انقلاب له پیله نائب الحکومه و. طالبانو لیري کړ.

## د کندهار د بلدیې رئیسان (ښاروالان) :-

عبدالرحمن خان لودین د کاکا سیداحمد خان زوی

سردار عبدالله جان طرزی د عبدالحبیب خان زوی، د ۱۳۰۷ ش کال د اسد په ۱۰ چي امان الله خان کندهار ته د اروپا له سفره راغی دی رئیس بلدیه و.

غفار جان پوپلزی، (د یحیٰی خان د کورنی)

اغا بادار محمد زی (د سقاو د زوی په پاچهي کي)

منشي محمد عثمان بارکزی (د مهردل خان په حکومت کي)

محمدناصر خان بامیزی

محمداکبر خان الکوزی

بابا عبدالعزیز خان الکوزی

.......

.......

افضل جان بارکزی

لعل محمد خان کاکړ

محمد صدیق سدوزی

.......

.......

حسن جان د نعیم جان معمار باشي زوی

.......

## د کندهار مستوفیان:-

پخوا په کندهار کي مستوفي نه و. فقط د سرښته دار په نامه د لومړي او دوهم دفتر مشر حسابي چاري اداره کولې. لومړي دفتر د معاش و مصرف (خرڅ) و او دوهم دفتر د مالیاتو او باقیاتو و.

محمدحسن خان سردفتر، د امیر عبدالرحمن خان په وختو کي

(سراج التواريخ ۱۲۰۸/۳ مخ)

میرزا عبدالرزاق خان دفتري اول کندهار[٦]

سید عبدالجواد آغا، د لومړي دفتر سرکاتب

میرزا محمدرفیق خان الکوزی، د دوهم دفتر سرکاتب و، چې بیا تر مرگه پورې د شرکت وطن مدیر محاسبه مقرر و.

گل محمد خان وردگ، د نظام سر دفتر (افغانستان در مسیر تاریخ)

میرزا عبداللطیف، په یکشنبه ۲۹ حمل ۱۳۰۴ په کندهار کې مړ سو.

سید حبیب، ۱۳۰۴ هـ ش، سید حبیب د سید قاسم رشتیا پلار و.

عبدالوهاب خان پوپلزی، ۱۳۰۷ هـ ش، تر دغه پخوا د کابل مستوفي و.

عبدالله خان لغمانی اتمرخېل مهمند، د ۱۳۱۴ هـ ش حدود

میرزا محمد اسلم خان، د رحمت الله لېوال پلار. په ۱۳۱۸ هـ ش کال په کابل کې مړ سو.

عبدالاحد خان، د ۱۳۲۱ هـ ش حدود، د عبدالله خان لغماني مستوفي زوی

عبدالغفور خان، د سید قاسم رشتیا ماما

منصوري، د ۱۳۶۳ ش د قوس په اتمه په کابل کې مړ

## تنخواوي :-

د ۱۳۱۲ هـ ق کال په دوهمه خور کې امیر محمد خان لوگری د کندهار نائب الحکومه مقرر سو. کالنۍ تنخواه یې ٥١٦٦ کابلۍ وه.

---

[٦] دا سړی تر ۱۳۳۳ هـ ق پورې لا په کندهار کې و. د دغه کال په دریمه خور کې د ده د ښو خدمتو په باب یو عریضه د کندهار خلکو امیر حبیب الله خان ته رالېږلې ده. دغه عریضه په ملي ارشیف کې خوندي ده (اسناد آرشیف، ٦۴/۱ مخ). مگر د دغه عبدالرزاق یوه بله عریضه د امیر حبیب الله خان په نامه سته چې تاریخ یې د ۱۳۳۲ هـ ق د شوال شلمه ده. په دغه عریضه کې ده لیکلي دي ما کوم بل کار ته مقرره کړئ. د اسناد آرشیف په ٦٥/۱ مخ کې سرشته دار سابقهٔ قندهار معرفي سوی دئ.

## د کندهار د مرافعې قاضیان :-

قاضي غلام هوتک[۷]

قاضي عبدالسلام بارکزی[۸]، د خان علوم قاضي محمدسعید زوی

قاضي نظر محمد خان پوپلزی د ارغسان قاضي[۹]

مفتي محمد جان ساګزی (په ابتداییه کې)، د نادر خان او ظاهرخان په پاچهيو کې[۱۰]

قاضي عبدالوهاب علیزی، (د بېنوا ورور)

قاضي عبدالکریم، په ګرشک کې قاضي و. درې متره ځلی یې سر ته ولاړ دئ.

قاضي محمداکبر خان، په ۱۳۰۵ ش کال د کندهار د مرافعې قاضي و[۱۱].

---

[۷] د سید نورمحمد شاه د پلار سلېمان شاه یو اقرار خط چې په ۱۲۵۹ هـ ق کال لیکل سوی دئ، د قاضي غلام مهر لري (اسناد آرشیف ۹۷/۱ مخ) دده د قضا په باب ویل سوي دي :-
ډېره زما ده، اختیارې د قاضي غلام دئ.
اشه اشه لالا اشه مربي دي قاضي غلام دئ.

[۸] د امیر شېر علي خان په وختو کې د سید نورمحمد شاه په یوه قباله کې، چې په ۱۲۹۲ هـ ق کې کښلې ده، د ده مهر سته (اسناد آرشیف ۴۵/۲ مخ).
د ۱۲۷۸ هـ ق کال چې امیر دوست محمد خان د هرات د نیولو په نیامت له کابله کندهار ته ورسېدی، قاضي عبدالسلام یې له قاضي توبه ایسته کړ او د ده پر ځای یې د ده وراره قاضي سعدالدین د خان علوم عبدالرحمن خان زوی مقرر کړ (سراج التواریخ).

[۹] د ۱۳۳۱ هـ ق په بلوا کې د خلکو له خوا وواژه سو.

[۱۰] د نورزیو په برجه کې اوسېده. زوی یې ګل نومېدی د زړو شیانو د خرخولو دوکان یې درلود.

[۱۱] د قاضي محمداکبر خان له زویه ځخه د سید محمد میوند سکه خور وه. د محمداکبر خان لمسی د کمونستانو په دوره کې جنرالی ته ورسېد.

قاضي محمداکبر خان اڅکزی، د قاضي عبدالشکور خان خوريی[۱۲] ملا غلام دستگير، د ملا غلام نبي پر ځای د محکمې مفتي (د عين الدوله په فرمان ۱۳۳۶ هـ ق)

عبدالحکيم اخندزاده، د قاضي رحمت الله هوتک زوی. د امير عبدالرحمن په وختو کې

قاضي کوچی – عبدالغفار هوتک[۱۳]

قاضي غلام دستگير هوتک[۱۴]

قاضي عبدالقيوم خان نورزی، د امان الله خان په وختو کې تر قاضي عبدالوهاب وروسته. د استقلال په جنگ کې مفتي و.

قاضي اخترمحمد ساگزی د ملنگ زوی، د نادر خان د پاچهۍ په پيل

---

[۱۲] قاضي عبدالشکور، عبدالواسع اخندزاده، قاضي محمداکبر خان، والي علي احمد خان، قاضي کوچی د سقاو د زوی په امر کابل ته بنديان ولېږل سول. قاضي محمداکبر خان يې د سقاو د زوی په دربار کې په برچو وواژه. عبدالواسع اخندزاده او والي يې د سقاو د زوی په حکم په توپ کې والوزول. عبدالعلي خان هم ورسره و. د کابل پر لار هزاره گانو وگرزاوه. قاضي کوچی يې ايله کړ.

[۱۳] د امان الله خان په وختو کې قاضي و. د سقاو د پاچهۍ په دوره کې تر غلام دستگير اخوندزاده هوتک دمخه د مرافعې قاضي و. د نادر خان په اوايلو کې هم د مرافعې قاضي و. قاضي نظرمحمد پوپلزی يې لومړی مفتي او عبيدالله جان صاحبزاده هوتک د ذاکر يې دوهم مفتي و.

[۱۴] د امان الله خان په وختو کې د ابتدائيې قاضي و. د سقاويانو لومړی د مرافعې قاضي و. د نادر خان په وختو کې هم دی قاضي مرافعه و. لومړی مفتي يې نظرمحمد پوپلزی (د قاضي کوچی په وختو کې مړ سو) او دوهم مفتي يې عبيدالله جان صاحبزاده و. قاضي غلام دستگير د عبدالعلي اخوندزاده وراره او د احمدعلي اخوندزاده د اکا زوی و. دوی د محمدهوتک لمسيان دي. د ارغسان په سيوري کې د ممو کارېز د دوی دئ. دی چې مړ سو د ابتدائيې قاضي اخترمحمد خان ساگزی د مددخان د کوشخې اوسېدونکی قاضي مرافعه سو.

کي قاضي ابتدائیه و.

قاضي خواجه محمدهوتک، د قاضي عبدالمنان پر ځای د ابتدائیې قاضي سو. دمخه مفتي و.

قاضي صاحبجان تګاوی[۱۵]

قاضي عبدالحی پنجشېری، ۱۳۳۰ ش

قاضي غلام نبي کامه وال[۱۶]

قاضي ایشان[۱۷]

قاضي غلام جان بارکزی د خیرالدین زوی، د دهلې قاضي د محمدګل خان په وختو کي.

قاضي محمدابراهیم کاموي، مرافعه[۱۸]، د ۱۳۳۵ ش حدود

قاضي ابوالقاسم. د مرافعې قاضي، د کوهستان اوسېدونکی

قاضي جلیلي، په ارغنداو کي قاضي و.

مفتي خیر محمد، د مرافعې قاضي[۱۹]

د بلدي ملا عبدالله پوپلزی د مرافعې قاضي و[۲۰]

---

[۱۵] دمخه د ابتدائیې قاضي و. په کندهار کي چا په چاړه وواهه.

[۱۶] سردار داود خان چي صدراعظم سو، کابل ته یې راوغوښت د کابل قاضي مرافعه یې مقرر کړ.

[۱۷] د کابل د شمالي اوسېدونکی و. تر قاضي عبدالحي وروسته د مرافعې قاضي سو. دمخه د ابتدائیې قاضي و. قاضي محمدیوسف اندړ؟ یې مفتي و. بل مفتي یې محمدسعید صاحبزاده و (د سپین کوځي صاحبزاده د کورنی).

[۱۸] د صدراعظم موسی شفیق پلار (م. ه).

[۱۹] په یوه سترګه ړوند و.

[۲۰] بلدی د کندهار د احمدشاهي ښار په جنوب کي د یوه کلي نوم دئ (م. هوتک).

## د ابتدائيې قاضيان :-

قاضي عبدالمنان د جلال آباد[21]

قاضي اختر محمد ساګزی

مفتي محمدعظيم توخی؟ د مرافعې مفتي و.

قاضي محسن نورزی[22]

قاضي مبين[23]

مفتي جمعه خان اندړ[24]

## د کندهار د پوهني مديران :-

مولوي صالح محمد خان هوتک[25]

غلام حيدر عدالت

غلام جيلاني جلالي[26]

برهان الدين کشککي

ډاکټر اصغر خان

محمداسماعيل پنجشېری

حاجي محمدآصف خان خوګيانی[27]

---

[21] د محمدسرور خان په وختو کي. قاضي نظرمحمد پوپلزی يې مفتي و.

[22] د ډنډ قاضي و بيا د ګرشک قاضي سو. ورورېې قاضي محمدرسول د دهلې قاضي و.

[23] د محمدګل خان په وختو کي د دهلې قاضي و.

[24] د قاضي غلام دستګير پر ځای سرپرست و.

[25] مولوي صاحب په ۱۳۰۰ هـ ش کال يې د کندهار په ښار کي د رسمي مکتبو لومړی ځښته کښېښووله. لومړی مدير معارف دئ. په ۱۳۱۵ هـ ش کي کابل ته تبديل سو او په پښتو ټولنه کي د پښتو ژبې مبصر او د اعليحضرت همايوني د پښتو استاد مقرر سو.

[26] د ۱۳۱۸ هـ ش کال د اسد په مياشت کي د کابل له مديريت معارف څخه د کندهار مديريت معارف ته تبديل سو.

[27] حاجي محمدآصف خوګيانی د قاضي صالح محمد خان زوی، پلاريې د سردار هاشم خان په وختو کي د کابل د مرافعې قاضي و. آصف خان بيا په ... کي والي سو. په ۱۳۷۰ هـ ش کال خپل وراره په خوګيانو کي وواژه.

غلام محی الدين ايوبي

ميرمحمود اغا

عبدالباري اشنا

عبدالشکور بابکرخېل

غلام نبي رښتين يار

عبدالغفور وياند

عبدالعلي کندهاری

نورگل خان

مير حبيب سهېلي

عبدالشکور بابکرخېل (دوهم ځل)

عبدالغفور وياند (دوهم ځل)

محمدنبي الکوزی

**د دموکراتيک جمهوريت دوره :-**

محمدعظيم هوشمند

عبدالشکور روستانی

شېراقا

عبدالله حامي

محمديوسف مجبور

سردارمحمد

حيات الله رفيقي

**د اسلامي انقلاب دوره :-**

شېرمحمد حقيار

## د طالبانو دوره :-

قاضي نظرمحمد

ملا عبدالهادي

مولوي غیاث الدین

مولوي محمدسلیم

مولوي عبدالحکیم حقاني

## اوسنۍ دوره (د حامد کرزي دوره) :-

محمدداود بارک

عبدالصمد خاورین

محمدشعیب وفا

محمدولي هوتک

حیات الله رفیقي

محمدانور[۲۸]

## د کندهار کوتوالان :-

ملا یوسف رستاقی[۲۹]

---

[۲۸] علامه بابا رحمه الله تر اوومي شمېرې وروسته ځای سپین پرې ایښی دئ، د د پوهنې د رئیسانو وروستي نومونه موږ د ښاغلي حیات الله رفیقي په مرسته موندلي دي، پر زیات مو کړل. (علامه رشاد اکاډیمي).

[۲۹] د ۱۲۹۸ په شوال کي چي امیر عبدالرحمن کندهار ونیو. د دغه کال د ذی الحجې په کابل ته روان سو. د کندهار کوتوالي یې ملا یوسف ته وسپارله.

عبدالرحیم خان[۳۰]

محمداکبر ارغنديږ وال، په ۱۳۰۴ کي

محمدظفر خان مورچه خېل مومند[۳۱]

نیازگل خان، د ۱۳۲۳ ش په شاوخوا کي

محمداکبر خان الکوزی، لومړی وار، د ۱۳۱۰ ش حدود[۳۲]. دوهم وار د ۱۳۳۰ ش

محمداکبر خان محمدزی، د ۱۳۲۷ ش په شاوخوا کي[۳۳]

عبدالقادر خان[۳۴]

سید عبدالغني وردګ. ۱۳۴۰ ش

میر عبدالرشید[۳۵]

---

[۳۰] په ۱۳۰۴ کي معزوله او له کندهاره کابل ته تللی و. اعلیحضرت امان الله شاه چي کندهار ته ولاړ. هلته د تفتیش په نتیجه کي دی ګرم او په لس کاله بند محکوم سو (نطق های اعلیحضرت ۲/۱۰۰ مخ).

[۳۱] د لالپورې د اکبر خان زوی په ۱۳۰۶ ش کال د کندهار کوتوال مقرر سو. تر ۱۳۱۰ ش پوري د کندهار کوتوال و بیا د وزیر محمدګل خان له خوا د دند حاکم سو.

[۳۲] د ده سره یارمحمد خان الکوزی واصفي (د کاکا رازق پلار) د ۱۳۱۱ ش کال په دلو کي سرمامور مقرر سو. لږه موده محمدرسول خان پښتون هم ورسره مامور و (د سردار علیشاه خان په وختو کي). د فراه له کوتوالی څخه راتبدیل سوی و. محمدرسول خان په ۱۳۱۱ ش کال د سپین بولدک سرحد دار و.

[۳۳] د کوهک له محمدزیو سره یې نسبي اشتراک درلود د پاکستان تحصیل یافته و. کشره لوريې د اشرف پاس یوسفي څخه وه.

[۳۴] د حاجي محمدهاشم بامیزي لوګري زوی د محمداکبر خان الکوزي په عوض کي.

[۳۵] د شمالي اوسېدونکی. د داود خان د جمهوریت په وروستي کال کوتوال و. د خلقیانو په حکومت کي د دولت له خوا وواژه سو. کړخولی نورمحمد د ده په وختو کي وواژه سو.

## فرقه مشران :-

کرنیل محمدصادق خان، ۱۳۰۳ ه ق[۳۶]

برگډ عبدالوکیل خان نورستانی[۳۷]، د ۱۲۹۲ ش = ۱۳۳۱ ه ق، د جوزا په میاشت کې د کندهار عسکري قوماندان سو[۳۸].

جرنیل غلام نبي خان ناصر، د استقلال د جنګ په وخت کې

جرنیل نېک محمد خان بارکزی، د ۱۳۰۴ ه ش کال تر عقرب دمخه مقرر سو.

جرنیل محمدیوسف خان، د نادر خان د پاچهی له ابتداء (۱۳۱۰ ش) څخه د وزیر محمدګل خان تر مقررۍ پوري.

عبدالاحد ملکیار[۳۹]

سردار محمد داود خان. رئیس تنظیمیه و[۴۰]

سردار علیشاه خان، رئیس تنظیمیه و.

جنرال محمدعلم خان ستانیزی د لوګر، تر ۱۳۲۹ ش پوري[۴۱]

جنرال سید عالم شاه[۴۲]

---

[۳۶] تاج التواریخ، ۲۱۴ مخ.

[۳۷] په ۱۲۵۴ ه ش کال د نورستان په کانتون کلي کې زېږېدلی دئ، د امیر عبدالرحمن خان له وختو څخه د اعلیحضرت نادرشاه تر وخته پوري یې خورا ډېر خدمتونه تر سره کړي دي. د ۱۳۰۹ ه ش د زمري په نهمه په شهادت ورسول سو. د دهمزنګ په څلور لاري کې د ده د خدمتونو په ویاړ یو څلی جوړ سو.

[۳۸] پېښلیک، ۲۲۵ مخ. د سردار محمدعثمان خان د بلوا په وخت کې دی په کندهار کې و.

[۳۹] د عبدالاحمد خان مومند زوی د غزني اوسېدونکی. د محمد داود خان د راتلو سره دی هرات ته تبدیل سو.

[۴۰] ملکي و عسکري چارو په ده اړه درلوده. فراه او چخانسور هم په دغه وخت کې په کندهار پوري اړه درلوده.

[۴۱] د ۱۳۷۲ ه ش کال په اوایلو کې په ډهلي کې ومړ او هلته خاورو ته وسپارل سو.

جنرال محمدسعید خان، د پروان د سیدخېلو اوسېدونکی

ډگر جنرال محمدعظیم لغمانی، د غوايي د کودتا په وخت کي

## د دیموکراتیک جمهوریت دوره:-

جنرال میر طهماسب رؤف، د کابل د شمالي (کوهستان) اوسېدونکی، د روسيې فارغ التحصیل، د تره کي په وختو کي لومړی فرقه مشر و.

نورمحمد سر روضه وال

مجید سربلند، د کارمل په وخت کي رئیس تنظیمیه

عبدالحق علومي

جمعه اخک، د شنډنډ اوسېدونکی

نورالحق علومي

## اسلامي جمهوریت:-

محمدشفیق مشهور په گل آغا شېرزي

ملا نقیب الله الکوزی (ملا گل)، د ارغنداو د چهارغلبې د کلي اوسېدونکی، طالبانو پسي واخیستی، په کور کي کښېنستی، او له حکمدارۍ څخه یې لاس واخیست. طالبانو هم نازاوه، وامي ورېدل په یوه اختر کي طالبانو یو کروزین موټر او څو میلیونه افغانۍ ور ولېږلې.

## پنچات:-

د سوداگرو د شخړو فیصلو په یوه مجلس پوري اړه درلوده، چي

---

(۴۲) لوکو Luku د دوی ځای دی د کوهدامن د بهزادی اوسېدونکی و. په بهزادی کي د دوی ځای لوکو بولي. سید ظاهر یې زوی دئ. سید عالم شاه په لوکو کي د خواجه گانو په هدیره کي ښخ دئ. د دوی کورنۍ په خواجه گانو شهرت لري.

پنچات باله کېده. وروسته دغه نوم واوښت او د سوداګرو د شخړو د فیصلې ریاست نوم پر کښېښووه سو.

## د کندهار پنچات باشیان :-

عبدالشکور خان بارکزی، د امیر عبدالرحمن خان په وختو کې

سید اکرم اغا، د ظاهرشاه د پاچهۍ په اوایلو کې

غلام فاروق خان توخی

## کچاری :-

د اعلیحضرت امان الله خان تر وختو پورې یې ګمرک کچاری بلله. د اعلیحضرت امان الله د پاچهۍ په اوایلو کې درې کسه د کچاری اجازه داران وو :-

1. نورمحمد خان پوپلزی د یحیی خان د کوڅې
2. عبدالله خان بابی
3. سید نورمحمدشاه پاړسیوان

دوی بیا هر یوه خپل شریکان درلودل. یو وخت محمد کریم خان بارکزی د سربلند خان پلار[۳۳] هم په دغو اجاره دارانو کې و.

لوه کچاری په کابل بازار کې وه. اوس قادري درملتون په هغه ځای کې دئ. کوچنۍ کچاری په ګنج کې وه.

## پښتو ادبي انجمن :-

د ۱۳۱۱ ش کال د قوس په ۹ په کندهار کې د وزیر محمدګل خان له

---

[۳۳] سربلند خان د مجید سربلند پلار و. مجید سربلند د کارمل د حکمرانۍ په وختو کې د اطلاعاتو او کلتور وزیر او د صدارت عظمی مرستیال و.

خوا، چي د کندهار رئيس تنظيميه و، پرانستل سو. رئيس يې محمدعثمان خان بارکزی و چي پښتون يې تخلص و. پښتون تر دغه دمخه د کندهار د بلديې په رياست کي سرکاتب و[۴۴].

**غړي يې :-**

مولوي عبدالخالق واسعي

حاجي ملا عطاء محمد اخوند

حاجي عبدالغفور خروټی

محمداعظم ايازي

محمدگل نوري، وروسته راغی.

خادم قيام الدين په ۱۳۱۳ ش کال د دغه انجمن د رئيس مرستيال سو. دې انجمن يوه مياشتنۍ مجله خپروله. (پښتو) نومېدله.

دا انجمن په ۱۳۱۴ ش کال په اوايلو کي کابل ته رانقل سو او د کابل د ادبي انجمن سره گډ سو. وروسته دغه گډ انجمن د پښتو ټولني په نامه ونومول سو. د کندهار په پښتو ادبي انجمن کي يو د تاليف مجلس جوړ سو. غړي يې دا کسان وو :-

عبدالحی حبيبي د طلوع افغان مدير

محمديوسف ايازي د طلوع افغان مرستيال

عبدالخالق واسعي د انجمن غړی

حاجي ولي محمد مخلص شاعر

حاجي عبدالغفور خروټی

محمداعظم ايازي د انجمن غړی

---

[۴۴] د طلوع افغان د شپږم کال (چهارشنبه ۲۳ عقرب ۱۳۰۶ - جمادی الاول ۱۳۴۶ هـ ق) کي يې يو اوږد مضمون خپور سوی دئ.

قیام الدین خادم د انجمن مرستیال

دوی په ګډه د معلم پښتو په نامه په ۱۳۱۴ ش کال یو کتاب خپور کړ.

**طلوع افغان :-**

د ۱۳۰۰ ش کال د تلې په پنځلسمه یې لومړۍ ګڼه خپره سوه. ژبه یې پارسي وه.

په ۱۳۰۴ ش کال د هفتې دوه واره (شنبه — چهارشنبه) خپرېدی.

د ۱۳۱۱ ش کال لومړۍ ګڼه ټوله پښتو سوله.

په ۱۳۲۴ ش کال ورځپاڼه سوه.

**مدیران یې :-**

۱. مولوي صالح محمد خان هوتک د فیض محمد خان زوی د حاجي محمداکبر لمسی دئ. حاجي محمداکبر هغه څوک دئ چې د ده له پاره پټه خزانه (عباس کاسي) استنساخ کړې ده.

۲. عبدالعزیز خان الکوزی د غزني د سرشته دار (مستوفي) میرزا عطاء محمد خان زوی د کابل په مطبعه کې له ۱۳۲۳ هـ ق څخه د ډبري مصحح و. له مشروطه خواهانو سره یې سیاسي رابطه درلوده. په ۱۳۰۱ ش کال د طلوع افغان مدیر سو. د سقاویانو په دوره کې په کندهار کې بندي و. یو وار تر دې دمخه هم د دوهم مشروطیت په خلکو کې له ۱۳۳۶ هـ ق څخه د ۱۳۳۷ هـ ق تر پایه پورې په کابل کې بندي سوی دئ. عبدالعزیز خان په ۱۳۰۹ ش کال کې په اولسي جرګه کې د احمدشاهي ښار د وکیل په توګه وټاکه سو. د ۱۳۱۰ ش کال د ژمي له پاره کندهاریانو څه بسپنه ورته راولېږله او ده په انیس جریده کې کندهاریانو ته کورودانی

ووایه. د طلوع افغان د ۱۳۱۱ ش کال د حمل په یوولسمه گنه کي دغه کور وداني نقل سوی دئ. عبدالعزیز خان له اولسي جرگې څخه وزارت خارجې ته بوتلل سو او د ۱۳۱۰ ش کال د دلوي په میاشت کي هلته مدیر مطبوعات خارجه مقرر سو. د ۱۳۱۲ کال د سنبلې په ۱۵ بندي سو دیرلس کاله سیاسي بندي و.

۳. علامه عبدالحی حبیبي

۴. محمدیوسف ایازي

۵. قیام الدین خادم

۶. محمدشاه ارشاد

۷. ایوبي غلام محی الدین

۸. محمدولي زلمی

۹. محمدابراهیم عطایي

۱۰. شېرآغا (د معصوم صاحبزاده د کورنی)

۱۱. مولاجان (د پښتونستان له خوا و)

۱۲. محمدظاهر شفق

۱۳. عبدالکریم طالب (د اطلاعاتو رئیس)، محمد امین (د کلتور رئیس)

۱۴. عبدالکریم طالب (د اطلاعاتو او کلتور رئیس

۱۵. عبدالعلي اریمل

۱۶. وکیل احمد متوکل

۱۷. امیر خان متقي

۱۸. عبدالحنان همت

۱۹. عبدالحی مطمئن

۲۰. عبدالمجید بابی[۳۵]

## وروړغ مجله :-

مدیر یې عبدالخالق واسعي او مرستیال یې محمدابراهیم خواخوږی و. د ۱۳۳۰ ش کال دوې ګڼې خپرې سوي دي.

## کندهار مجله :-

لومړۍ ګڼه یې د ۱۳۳۹ هـ ش کال د ؟ په میاشت کې خپره سوه. د ۱۳۵۷ ش کال په حدودو کې له کندهاره څخه کابل ته رانقل سوه او د (هیواد) د ادارې له خوا چاپېدله. مدیر یې څه موده کریم طالب (د عبدالرحیم جان متې خېل زوی) و. مرستیال یې راشد و.

## وړانګه مجله (په ترکیه کې) :-

په ترکیه کې افغاني محصلینو په ۱۳۱۲ ش کال یوه مجله راوایستله. د دې مجلې مدیر اخترمحمد خان کندهاری او مرستیال یې احمدعلي شاه کندهاری و.

د دغې مجلې لومړۍ ګڼه چې ۳۰ مخه وه، د ۱۳۱۲ ش کال د اسد پر اووه ویشتمه خپره سوې ده.

## د کندهار خلک چې د کابل په مطبعه کې یې کار کاوه[۳۶] :-

۱. میرزا عبدالعزیز خان الکوزی، (چې وروسته بیا د طلوع افغان مدیر

---

[۳۵] علامه بابا [illegible] تر نهمي شمېرې وروسته ځای سپین پرې اېښی دئ، د مطبوعاتو د مدیرانو یا د اطلاعاتو او کلتور د رئیسانو وروستي نومونه موږ د ښاغلي عبدالکریم طالب رحیمي په مرسته موندلي دي، پر زیات مو کړل. (علامه رشاد اکاډیمي).

[۳۶] آریانا مجله، ۱۳۵۰ ش کال.

سو).

۲. میرزا غلام قادر کاکړ
۳. ملا عبدالغني مستغني هوتک
۴. میرزا محمدجعفر کندهاری

## د کندهار مکتبونه :-

مکتب تجار[۳۷]

مکتب ګنج[۳۸]

مدرسهٔ محمدیه :-

وزیر محمدګل خان د ریاست تنظیمیې په پای کې په کندهار کې یوه دیني مدرسه افتتاح کړله نوم یې محمدیه مدرسه پر کښېښووله. دا مدرسه د ۱۳۱۱ هـ ش کال د حوت په لومړۍ هفته کې د کهندل خان په جامع مسجد کې وزیر صاحب افتتاح کړه. زه (رشاد) پخپله په دغو مراسمو کې حاضر وم. د پنځم ټولګي محصل وم او د مکتب له خوا بېول سوی وم. د دې مدرسې له شاګردانو څخه یو سړی عبدالرزاق فراهي و، چې وروسته ښه لیکوال سو.

---

[۳۷] مکتب تجار د کندهار لومړنی مکتب و، چې د سوداګرو په اعانه جوړ سو، ځکه یې (مکتب تجار) باله. د طلوع افغان په لومړۍ ګڼه کې له سوداګرو څخه د دغي اعانې له امله تشکر سوی دئ. د دغه مکتب ځای د سردار مهردل خان مشرقي شخصي کور و. دا کور په چارکوڅه کې واقع و او دا مکتب وروسته د شالمار او ورپسې د مشرقي په نامه نومول سوی دئ (م. هوتک).

[۳۸] مکتب ګنج د کندهار دوهم مکتب و، چې د ارګ د ګدامو مخي ته په یوه سرای کې تاسیس سو. سرمعلم یې احمدجان اخوندزاده خطیب و. ما د خپلي کورنی د مشرانو له خولې اورېدلي دي چې دغه مکتب ۷۰۰ تنه شاګردان درلودل. (م. هوتک).

## پښتو په طلوع افغان کي :-

د پنځم کال په لومړۍ ګڼه شنبه ۱۳ سنبله ۱۳۰۴ ش = ۱۶ صفر ۱۳۴۴ = ۶ سپتمبر ۱۹۲۵ ع د نائب الحکومه د پاړسي نطق پښتو ترجمه راغلې ده. دا نطق د استقلال د ۷ مي کليزي په مناسبت دئ ... جواب يې د عبدالقيوم اخندزاده له خوا په پښتو ويل سوی او پاړسي ترجمه يې درج ده. يوه پښتو ترانه ترکيب بند هم سته چي د مکتب تجار يوه هلک ويلی دئ.

په ۱۲ ګڼه پنځم کال ۲۴ ميزان ۱۳۰۴ = ۲۸ ربيع الاول ۱۳۴۴ ق د امان الله راتګ کندهار ته، د امان الله خان څو پښتو جملې او يوه پښتو ترانه چي د مکتب هلکانو ويلې وه[۴۹].

ښه راغلې شاه افـــغانه ښه راغلې - زموږ د سر تاج و ښښانه ښه راغلې

په وروستۍ ګڼه چهارشنبه ۲۸ ميزان ۱۳۰۴ ش کي د اعليحضرت ټول نطق په پښتو راغلی دئ. د حاجي ولي محمد خان (مخلص) شعر.

په ۲۱ - ۲۲ ګڼه ۱۳۰۴ ش کي يو عنوان سته :-

اهميت او قدرداني د پښتو په نظر کي د لوی پاچا د افغانستان، زړې د چاپېدلو د افغانستان د نظامنامو په پښتو (شنبه ۵ عقرب ۱۳۰۶ ش).

## لومړی پښتو فرمان :-

د امان الله خان چاپي پښتو فرمان چي د استقلال د جنګ په باب دئ، د افغانستان په ملي آرشيف کي د اسنادو په لومړي ټوک ۳۰ مخ کي په ۶۸۰ ګڼه خوندي دئ[۵۰].

---

[۴۹] شعر د مولوي صالح محمد خان هوتک دئ (م. ه).

[۵۰] په ملي آرشيف کي د نادر خان فرمان د کندهار د خلکو په نامه سته. د ۱۳۴۸ هـ ق کال د لومړۍ خور په شلمه يو خط د کندهار د خلکو په نامه لېږلی دئ او دوی يې د سقاو د زوی د پاچهۍ ړنګولو ته تحريک کړي دي (اسناد آرشيف ۳۵/۱ مخ).

## د کندهار تلگرافخانه :-

د اعلیحضرت امان الله خان په پاچهي کي په کندهار کي د تلگراف یو کورس جوړ سو. دغه کسان چي له پنځمه صنفه راوتلي وو، پکښې شامل سول :-

۱. فیض محمد خان (چي بیا په کندهار کي د تلگراف منتظم سو)
۲. غلام دستگیر خان پوپل
۳. غلام نبي خان (د هرات دروازې د کلافصیل)
۴. غلام جیلاني خان الکوزی د غلام رسول خان زوی
۵. احمدشاه خان الکوزی (وروستني مارشال)
۶. عبدالباقي (د علامه حبیبي ورور)
۷. غلام محی الدین خان اځکزی د مولاداد خان زوی
۸. محمدعلي خان هوتک (وروستني استاد)
۹. دوست محمد خان د غلام محمد خان الکوزي زوی

د غلام جیلاني خان د لیکني له مخي دوی په ۱۳۰۴ هـ ش کال له دغه کورسه څخه فارغ سول. اعلیحضرت امان الله خان چي کندهار ته راغی د شالمار په مکتب کي یې له دوی څخه امتحان واخیست. د دغه مکتب په جنوبي خوا کي یو شاگرد او په شمالي خوا کي اعلیحضرت ناست و. اعلیحضرت یو پیغام وسپاره. هغه تلگرافي خپل مقابل ته مخابره کړ. اعلیحضرت پخپله دستگاه ته ورغی او هغه پیغام یې واخیست.

د دغه تلگراف د کورس معلمان میر حبیب الله او عبدالفتاح وو[51]، چي په کراچي کي یې د تلگراف تحصیل کړی و[52].

---

[51] عبدالفتاح په نادري دوره کي بندي سو او په هغه بندیخانه کي مړ سو.

[52] اعلیحضرت امان الله خان لس تنه په تلگراف کي د تحصیل له پاره روسیې ته لېږلي وو، چي لالا محمدسعید خان او صدیق طرزي په هغو کي وو اولس تنه یې بیا کراچي ته لېږلي وو.

د تلګراف دغه کورس د کندهار د ارګ د غربي خوا په بالاخانو کې و. اوس پر هغه ځای د کتابفروشانو راسته جوړه ده. تر امتحان وروسته امان الله خان د تلګراف هر شاګرد ته درې سوه کابلۍ او معلمانو ته یې زر کابلۍ وروبخښلې.

## ډاګخانه :-

د ډاګخانې مشر میرزا شمس الدین خان د ۱۳۰۴ ش کال د قوس په ۲۹ ومړ او پر ځای یې زوی سراج الدین خان د ډاګخانې مشر سو. دغه کورنۍ په کندهار کې د ډاګیانو په کورنۍ شهرت لري او کورېې د هرات بازار جنوبي خوا ته د سردار شېرعلي خان او ملا فرح الدین د کوڅو تر منځ واقع دئ. د میرزا شمس الدین خان بل زوی نورمحمد جان و.

ترکیې ته د افغاني متعلمینو لېږل او په هغو کې د کندهار برخه :-

د ۱۳۰۷ ش کال په اواسطو کې اعلیحضرت غازي ۱۰۰ تنه هلکان او ۱۵ نجوني د تعلیم له پاره ترکیې ته ولېږلې. او دغو کړو د شینوارو له پاره د پاڅون پلمه جوړه کړله. په دغه ډله کې د کندهار دوولس شاګردان چې له پنځم ټولګي څخه فارغ سوي وه، ولېږه سوه.

۱. اختر محمد خان (وروسته د سرې میاشتي رئیس)
۲. امیر جان (ډاکټر)
۳. احمدعلي شاه پاړسیوان
۴. ګل محمد مشهور په پروفیسر
۵. محمدصادق (د پنچات مرستیال)
۶. دادمحمد صاحبزاده د سپین کوڅې صاحبزاده لمسی
۷. عبدالغفار کاکړ (ډاکټر غفار)

۸. صدیق الله الکوزی

۹. عبدالرزاق خان میوند

۱۰. افندي ( د احمدشاه بابا لیسې معلم )

۱۱. [۵۳]

۱۲. جان محمد یوسفزی (وروستنی پکتا پلار) ۱۳ کلن و.

دغو دوولسو تنو متعلمینو یوه میاشت په کابل کې تیره کړله. د ۱۳۰۷ هـ ش د خپلواکۍ په جشن کې یې ګډون وکړ او د اعلیحضرت غازي په حضور مشرفه سول.

## د میرویس نیکه هدیره :-

د میرویس نیکه دغه اوسنۍ هدیره د وزیر محمدګل خان د ریاست تنظیمیې په دوره کي ودانه سوې ده. استاد یارجان معمارباشي او استاد نعیم جان معمارباشي دغه نقشه جوړه کړې او د احمدشاه بابا د ګومبتي نقشه یې کوچنۍ کړې ده.

## مزل باغ :-

په ۱۳۰۰ هـ ق کال د کندهار له ښاره ښخه ۹۵۰۰ فوټه = ۳۲۰۰ ګزه لیري د شرق خوا ته د امیر عبدالرحمن خان په امر د مزلباغ په نامه یو باغ جوړ سو. یو لک و شل زره روپۍ (کابلۍ) په مصرف سوې (سراج التواریخ ۴۱۷/۳ مخ ).

په تاریخ خرقهٔ شریفه ۵۹ مخ کي د مزلباغ ذکر د احمدشاهي دورې په ودانیو کي سوی دئ.

---

[۵۳] لسمه شماره نوم ما (هوتک) پر زیات کړ یوولسم تن ما ته نه دئ معلوم (م. هـ).

## شرکتونه :-

### پښتون شرکت :-

وچه او لنده مېوه يې تر هيواد دباندي استوله. د شربتو او خوږو (شېرينيو) د جوړولو ماشينونه يې هم په کار اچولي وو. دا شرکت تر ۱۳۱۳ ش پخوا جوړ سوی دئ او غالباً به د کندهار لومړی شرکت وي.

رئيس يې موسیٰ خان توخی و، چي موسیٰ خان مړ سو، مشر ورور يې چي عطا جان نومېدی، د دغه شرکت رئيس سو. حاجي محمدنور خان توخی يې مرستيال و.

### وطن شرکت :-

د وړيو سوداګري يې کوله. حاجي عبدالخالق خان نيازی يې رئيس و. څه موده يې حاجي سلطان محمد خان پوپلزی مرستيال و.

### ويسا شرکت :-

د وړيو سوداګري يې کوله. سيد رازمحمد يې رئيس و.

### زرغون شرکت :-

د وچي مېوې سوداګري يې کوله. محمدانور خان لودين يې رئيس و. لږه موده يې حاجي محمدانور خان اڅکزی مرستيال و.

### د وړيو د اوبدلو فابريکه :-

(د ۱۳۱۵ ش کال د جوزا په ۲۸ پرانيستله سوه. م. هوتک).

### توپونه :-

په کندهار کي هره ورځ پر پوره ۱۲ بجې د توپ يو ډز کېده. د روژې

په میاشت کې د روژې د افطار او پېشلمي د امساک اعلان هم د توپ یوه یوه ډز کېده. د اخترو د لمونځو تر ادا کېدلو وروسته هم د توپو ډزې کېدلې.

## د میوند توپونه :-

هغه توپونه چې په میوند کې غازیانو له تښتېدونکو انګرېزانو څخه نیولي وو، اوس یې ځو دانې د هرات دروازې د شهیدانو په زیارت کې پراته دي او په میوند کې د میوند د شهیدانو[۵۴] په زیارت او د شپږو

---

[۵۴] علامه استاد د شپږو شهیدانو عنوان د یاداښتو په ۷۴۵ مخ کې راوړی او حواله یې پر (د کندهار زیارتونه ۹۰ مخ) ورکړې ده. تفصیل یې نسته. د کندهار زیارتونه د علامه استاد خپل ناچاپ اثر دئ. د شپږو شهیدانو زیارت د توپخانې دروازې او چونۍ تر منځ واقع دئ. (م. هوتک).

یادونه :-

د شپږو شهیدانو یاداښت د علامه بابا رحمة الله علیه (د کندهار زیارتونه) په خطي نسخه کې داسې راغلي دي :-

په ۱۲۹۸ هـ ق کې چې پرنګیانو په میوند کې له غازیانو څخه ماتې وکړه، ټوک ټوک، شکېدلي ځپلی کندهار ته راغلل او ښارېې تینګ کړ. یوه ورځ د پرنګیانو پوځ د خپلې عسکري چهاونۍ لمر ختیځ پلو ته د توپخانې دروازې دباندې پر دغه ځای چې اوس د شهداوو مزار دئ، عسکري تعلیم او تربیه کوله، تر تعلیم وروسته، چې وسلې کوټ سوې، د طالبانو غازیانو دغې ډلې، چې غلیم یې ځاره، له زمري پر راتوی سول او پخپلو چړو او توروېې ډېر پرنګیان تر ځان دمخه کړل. په پای کې دوی هم شپږ تنه سره شهیدان سول او پرنګیانو له ډېره خروښه د دوی پر مړو اورونه بل کړل. غازیانو د دوی سوي هډوکي پر دغه ځای، چې اوس یې مزار دئ ښخ کړل (د عین الوقایع تاریخ).

د ژړیو تبو د دفعې له پاره یې له هغه وخته خلک زیارت ته ورځي او ښه یې په کېږي. په ۱۳۱۳ هـ ش کال کې د عبدالاحد خان ملکیار (چې د قندهار فرقه مشر و) په لارښوونه او سرپرستي په قومي چنده دغه ګُنبده پر جوړه سوه.

زموږ هدیرې ته چې راځئ پښتنو
قــــــدم ایږدئ په ورو ورو
ټوله ټوک ټوک یو د پرنګ په ظلمو
بدن مو سوی دئ د اور په لــــمبو
(علامه رشاد اکاډیمي)

شهیدانو د گمبتي مخي ته هم د میوند د ولجې توپونه پراته دي.

**د کوټي زلزله :-**

د ۱۳۱۴ ش کال د جوزا د نهمي اولسمي ترمنځ د ۱۹۳۵ ع کال د می د ۳۰ او ۳۱ ترمنځ شپه کي د شپې پر ۳ بجو او ۳ دقیقو په کوټه کي زلزله وسوه. په دې زلزله کي شل زره تنه د خونو د چتو تر خاورو لاندي سول. له دغو ټپیانو څخه تقریباً پنځه زره تنه زخمیان له خاورو ژوندي راوایستل سول او پنځلس زره تنه یې مړه سول.

**د کندهار روغتون افتتاح :-**

په ۱۳۰۳ هـ ش کي پرانیستلې سوې ده (نطقهای اعلیحضرت غازی، ۹۲/۲ مخ)

په ۱۳۰۴ کال یې مدیر موقوف سو.

**د کندهار باغونه :-**

باغ مرجان (عروج بارکزایی ها، ... مخ)

د کامران باغ، د کندهار د کلا په شاوخوا کي (تذکرهٔ همایون و اکبر، ۳۵ مخ)

**د مخ لڅی بلوا :-**

د ۱۳۳۸ ش کال د استقلال په جشن کي سردار محمدداود خان صدراعظم خپله ماینه مخ لڅې کړه. نورو مامورینو یې هم تقلید وکړ. دا دود له کابله نورو ښارونو ته هم نقل سو. په کندهار کي محمدصدیق وزیري نائب الحکومه و. هغه هم مجلسونه جوړ کړل او مامورین و مخوریې له ښځو

سره دغو مجلسو او مېلمستياوو ته وروبلل. دې کار په خلکو کي د بلوا هڅه پيل کړله (د ۱۳۳۸ ش کال د لېندۍ وروستۍ ورځې).

د کندهار د فرقې مشر خان محمد خان پوپلزي، چي وروسته بيا ستر جنرال سو، دغه بلوا خاموشه کړله او محمدصديق خان وزيري يې کابل ته تحت الحفظ راواستاوه. په دغه بلوا کي څو تنه ووژل سول او ۱۷۲ تنه يې کابل ته بنديان راوستل. يوويشت تنه په وژلو محکوم سول، خو دا اعدام عملي نه سو. نورو ته له ۷ کلونو څخه تر ۲۰ کالو پوري بند وټاکه سو. په دې بلوا کي دا کسان بنديان سول :-

۱. حاجي حبيب الله خان باميزی د نېک محمد خان زوی
۲. عبدالقدوس خان بارکزی د عبدالرحمن خان زوی
۳. ميراحمد جان محمدزی د مشاور سيد جان زوی
۴. د کرز صالح محمد خان پوپلزی شملزی
۵. د کلچابات ملک شکور پوپلزی چي په بنديخانه کي مړ سو.
۶. عبدالصمد اخوندزاده خروټی
۷. محمداسحاق علومي د محمدرسول زوی د قاضي عبدالشکور خان لمسی.

علومي او ميراحمد جان (اول) خلاص سول. حاجي حبيب الله خان او عبدالقدوس خان په ۱۳۴۲ ش کي خلاص سول. عبدالصمد اخوندزاده او صالح محمد خان تر دوی وروسته خلاص سول.

## د کندهار لويه وبا (کولرا) :-

په کندهار کي په ۱۲۸۶ هـ ق = ۱۸۶۹ ع کال لويه وبا راغله او ډېر کسان مړه سول[۵۵].

---

[۵۵] په دغه وبا کي محمدامين عندليب د سردار غلام محمد خان طرزي زوی ۲۲ کلن مړ سو (وګ : کابل مجله، ۳ کال، ۷۷ مخ).

په سراج التواريخ کې ليکلي دي :-

د ۱۳۰۲ هـ ق کال په دوبي کي په کندهار کي وبا پېښه سوه. درې مياشتي وپايېدله.

په ۱۳۱۹ هـ ق کال بله وبا پېښه سوه[٥٦].

په ۱۸۹۲ ع = ۱۳۰۹ هـ ق کال په دوبي کي کندهار ته وبا راغله ډېره مرگو پېښه سوه. د کندهار نائب الحکومه عبدالله خان په کندک کي چي شپږ سوه تنه وه فقط ۲۷۱ تنه ژوندي پاته سول[٥٧].

په ۱۳۲۰ هـ ق = ۱۹۰۲ ع کال په افغانستان کي کاختي او وبا وه[٥٨].

په ۱۳۳۳ هـ ق رمضان و شوال = ۱۹۱۵ ع جولای و اگست = ۱۲۹۳ ش سرطان و اسد کي په کندهار کي وبا وه. د افغانستان په نورو ښارونو کي هم وه[٥٩].

پښتني ميندي د خپلو اولادونو د زوکړي کلونه د يوې لويي پېښي له مبداء څخه شميري. مثلاً د وبا کال، د کاختي کال، د سقاو کال، د پرنگي سره د غزا کال او نور. خان عبدالغفار خان د "زما ژوند او جد و جهد" په ۱۳۴ مخ کي ليکلي دي :-

غني[٦٠] د پنځو کالو و، چي موريې په وبا مړه سوه.

۱۹۱۸ ع کال د وبا د کال سره برابرېږي. په دغه وبا کي د ډگروال احمدشاه خان پلار ومړ او منصب يې کشر ورور جرنيل محمديوسف خان ته ورکړه سو.

---

(٥٦) پېښ ليک، ۲۱۳ مخ.

(٥٧) افغانستان در مسير تاريخ، ٦٨٢ مخ.

(٥٨) پېښ ليک، ۲۱۹ مخ.

(٥٩) پېښ ليک، ۲۲۷ مخ.

(٦٠) غني په ۱۹۱۳ ع کال = ۱۳۳۱ هـ ق کال زېږېدلی دئ.

په ۱۳۳۹ ش کال په کندهار کې بیا وبا راغله. ډېر خلک پکښې مړه سول[٦١].

**د کرز بخوله (فاجعه) :-**

د خلقیانو په حکومت کې ظریف توتاخېل په ۱۳۵۷ ش کال د کندهار نائب الحکومه سو. د نرو او ښځو له پاره یې د سوادآموزۍ کورسونه جاري کول. د کرز مکتب ته ورغی او د کرز، ذاکر او کلچابات مشران یې لا دمخه راغوښتي وو. د ښځو د سواد او په کورسو کې د هغو د شاملولو پیشنهاد یې مشرانو ته وړاندي کړ. هغو د ښځوله سوادآموزۍ او په کورسو کې له شاملېدلو سره مخالفت وکړ.

ظریف په خورا قهر د کرز له مکتبه راووت. څو تنه مشران او کشران یې هم له ځانه سره د کندهار ښار ته راوستل او ماښام یې د هغو په ماغزو د دارالحکومگۍ غالۍ ولړلې. وایي یو یو به یې راغوښتل. لاسونه او پښې به یې ور وتړلې، پرې به یې ایستی او په یوه لویه ښاخه به یې پر سر وویشتی ماغزه به یې تاش په تاش سوه. وایي د دغو مړو شمېر ۲۸ یا ۳۸ تنه وو. په وینو او ماغزو لړلې سوي غالۍ یې د ارغنداو د راده د غاړې پله تـه نـژدې یووړلې او هلته یې پرېوللې.

وایي په دغه پېښه کې دغه کسان وژل سوي دي :-

1. عبدالصمد خان (وکیل) د جرنیل زوی
2. محمدعیسیٰ د عبدالصمد زوی
3. حاجي عبدالواحد د جرنیل زوی
4. عبدالخالق معلم د حاجي عبدالواحد زوی
5. صالح محمد خان

---

[٦١] د دغي وبا یادونه ما (هوتک) پر زیاته کړه.

۶. سردار محمد د صالح محمد خان زوی
۷. فیض الله د حاجي احمد جان زوی
۸. غازي خدایداد
۹. سید خدایداد آغا
۱۰. حاجي روی محمد
۱۱. حاجي باز محمد[۶۲]

دا پېښه د ۱۳۵۷ ش کال په اسد ؟ کي پېښه ده. په دغو نژدې ورځو کي روسانو پر کرزاو کلچابات سخته بمباري وکړله او په دغه بمباري کي به تقریباً سل تنه وژل سوي وي. تر بمبارۍ وروسته پلي روسي سپاهیان په دغو کلیو ورننوتل، چور چپاو یې پیل کړ.

د ۱۳۵۸ ش کال د ؟ په میاشت کي د کندهار ځیني خانان او ملایان په الوتکو کي سوسیالیستي دولت کابل ته بوتلل او هلته یې ووژل. د هغو نومونه دا دي :-

۱. عبدالرب اخوندزاده د محمد حسن اخوندزاده زوی د محمدیوسف اخوندزاده لمسی د ابوبکر اخوندزاده ساګزي کړوسی معلم او مدرس و.
۲. عبدالاحد هلمندی د اخترمحمد خان زوی د عبدالرحمن لمسی د ملا حضرت اخوند بارکزي کړوسی، سوداګري یې کوله.
۳. وکیل عطاء محمد خان بارکزی د حاجي نېک محمد خان زوی د عبدالرحمن اخوندزاده لمسی د ملا حضرت اخوند کړوسی د زنګاوات د کلي اوسېدونکی، په اولسي جرګه کي وکیل و.

---

[۶۲] د دې پېښې د شهیدانو نومونه په افغانستان در پنج قرن اخیر نومي کتاب کي درج دي چي د نوموړي کتاب مؤلف ته د ښاغلي حفیظ الله کرزي له خوا ورکړه سوي وو (م. هوتک). (۱۷۹/۳ مخ)

۴. محمدکریم خان د نوموړي عطاء محمد خان کشر ورور.
۵. فیض محمد خان د عطاء محمد خان ورور.
۶. وزیر جان د امان جان زوی. امان جان د نیک محمد خان خوریی و.
۷. گلوجان محمدزی د سرپوزې (د احمدشاه بابا د لیسې مدیر).
۸. محمدافضل خان لودي د حاجي خان محمدخان زوی د ملا عبیدالله لمسی د ملا عبدالله کړوسی د ملا پیرمحمد کوسی دئ.
۹. فیض الله خان تره کی د ارغنداو د لوړ شوهین اوسېدونکی، د کلي خان.
۱۰. مولانا محمد زمان خان د میرزا عبدالودود خان یوسفزي زوي، سوداګري یې کوله.
۱۱. حاجي فضل محمد خان الکوزی، سوداګري یې کوله

**طلوع سرخ :-**

طلوع سرخ په ۱۳۶۶ هـ ش کال په کندهار کي جنرال عبدالعزیز خان راویوست. په هفته کي یو وار خپرېده. پنځلس ګنې یې خپرې سوي دي.

جنرال عبدالعزیز خان دغه وخت په کندهار کي د سولي کاروان سرپرست و. د اردو د سیاسي چارو تصدي په ده پوري اړه درلوده. مرکزیې کندهار و. هلمند او کندهاریې د کار ساحه وه. سرمقالې یې عموماً عازم لیکلې شعرونه یې هم خپاره سوي دي.

**کندهار پوهنتون :-**

کندهار پوهنتون د ۱۳۷۰ ش کال د جوزا په ۱۲ یکشنبه په کندهار کي د نورالحق علومي له خوا افتتاح سو. اوس یوازي د کرهنې پوهنځی

تشکیل سوی دئ. نور پوهنځي به ورو ورو جوړ سي.[٦٣] [٦٤]

---

[٦٣] د کندهار پوهنتون لومړی پیشنهاد ما (هوتک) په ١٣٦٧ هـ ش کال د علامه استاد په کور کي د اختر په ورځ ښاغلي عبدالرحیم هاتف ته، چي په هغه وخت کي د جمهوري ریاست مرستیال و، وکړ. دې پیشنهاد درې کاله وروسته د عمل جامه واغوستله.

[٦٤] د پوهنتون تر جوړېدو یو کال وروسته د طب پوهنځی هم پر زیات سو. اوس په ١٣٨٦ هـ ش کال دا پوهنتون څلور (د طب، د کرهنې، د انجنیرۍ او د ښوونې او روزنې) پوهنځي لري. د کندهار ښار په شمال لوېدیز کي د نوي عیدگاه څنګ ته پروت دئ. د علامه رشاد بابا (د پوهانو او مشاهیرو هدیره) د دې پوهنتون په محوطه کي پرته ده. د کندهار پوهنتون رئیسان یا سرپرستان :-

ډاکټر توریالی ویسا، ډاکټر رحمت الله کمواک، ډاکټر پاینده محمد ارغنداوی، استاد حیات الله رفیقي، پوهاند قمرالدین سیفي، ډاکټر اسدالله ترین او پوهاند حضرت میر توتاخېل، (علامه رشاد اکاډیمي).

# بېل بېل يادابنتونه

**يونا** Yauna **؟**:

Yauna ، Yona يا Yavana  د ټولو يونانيانو په وسيله (كه مقدوني دي او كه تر هغه وروسته) هندوستانيانو ته ورپېژندل سوي دي، دا نوم واضحاً له Ionia څخه جوړ سوي دي، چي د ايرانيانو  او هنديانو په نزد د گريك والاوو لومړنی نوم Ionian دی، د گريک خلک پر څلورو مشهورو فرقو وېشل سوي وو:

1. Dorian
2. Aeolian
3. Achaean
4. Ionian

Achaean  هغه فرقه ده، چي تر ټولو لومړی په بېړيو كي د Aegean تر بحيرې پوري وتل او د شالي Thessaly  خلک يې مطيع كړل، دا فرقه د هومر Homer په وختو كي ډېر مشهور او معروف خلک وو. Ionian او Dorian هم د گريک په تاريخ كي يو مهم رول لوبولی دی.

Jayaswal او نورو ليكلي دي، چي تر سكندر دمخه د Ionian  فرقې گريک وال د كابل سيند پر غاړو خاص په نيسا  Nisa (زما په خيال اوسنی نيشگام چي په اسمار كي واقع دی ؟) كي مېشته سوي دي.

Komboja؟:

کامبوجه یا کامبوجهٔ په Arthasatra نومي کتاب کي د ساوراشتره Saurastra د هغه وخت یو خورا لرغونې قبیله ګڼلې ده، چي دوی په کرهڼه، سوداګري او حرفوي جنګو بوخت وو. د سکندر د حملې په وخت کي کامبوجه او پَرَمَ کامبوجه Parama Kamboja دواړه ذکر سوي دي لکه په مهانیدیسه Mahaniddesa نومي اثر کي، چي یونا Iona او پَرَمَ یونا Parama Iona استعمال سوي دي. په مهابهارت کي کامبوجه قبیله له Darada یا Dard نومي قبیلې سره په ډله کي راوړل سوې ده. ( Daradan Saha Kambojian، دوهم ټوک، ۲۷ – ۲۸ مخونه)

پَرَمَ کامبوجه له لوها Loha (ښایي لوهانی = لوڼ وي) او شمالي ړشتیکا Rishtika سره په ډله کي راوړل سوی دی.

Lohan Parama Kambojan Rishtikan Uttaran Api

(مهابهارت، دوهم ټوک، ۲۵ – ۲۷ مخونه)

دديې څخه استنباط کیږي، چي دلته د Iona او Kamboja په نامه دوې بېلې سیمي یا دوې بېلي متمایزي قبیلې او ساکنین موجود وو.

Darada؟:

زه (رشاد) ګمان کوم، چي دله زا + ک ددغه "دردا" قبیلې محرف ډول دی؟ د دَرَدَه یا دَرو سیمه په دري Dary (زما په خیال به اوسنی دیر – دیره وي) ناوه کي واقع ده، چي د بر اباسین پر ښی غاړه پرته ده، او د Darin یا Daril سین په وسیله اوبیږي، چي ښایي له چتراله راځي او په اباسین ګډېږي.

د Tribes of Ancient India په ۸٦ مخ کي لیکلي دي:

اوسني دردستان Dardistan تر اوسه پوري د دردا نوم خوندي کړی دی، بطليموس (Ptolemy) د دردا قبيلې مسکن = Lambatai = Lampaka Laghman او د سوات د سيند Soustan د بېسن (ګډونځای) ختيځ او د اباسيند د بيخي لوړ بهېدنځی شمال خوا ته ښيي.

د کامبوجه سيمه به نو ښايي د اباسين لوېديځ خوا ته داسي پرته وي، چي د يونا سيمه به يې جنوب او د دردا سيمه به يې شمال ته وي.

د هيون ځانګ په سفرنامه کي په Darada ناوه کي د Udyana پخوانی پايتخت ښوول سوی دی. (وګ: د هيون ځانګ ژوند، ٦٦ مخ)

## شاه حسين زميندوري کندهاری:

دی د شرح الاسماء القادريه مولف دی، د دغه کتاب يوه خطي نسخه په ۲۵۸، ۱/۱۱۵/۲ شمېره د افغانستان په ملي آرشيف کي خوندي ده. ...



ددې کتاب د خطي نسخې د لومړي ټوک په ۱٦۲ - ۱۷۲، ۱۹۲، ۱۹۳، ۱۹۵ مخونو کي له ۱۱۸۷ هـ ق کاله څخه تر ۱۲۸۴ هـ ق کاله پوري د کندهار د علماوو، د ځينو قبالو، ځينو فرامينو او پر هغو باندي د قاضيانو او مفتيانو د مهرونو په باب لنډ بحثونه او همداراز د سيد موسی مرازي شنغري (د سيد نور محمد شاه د کورنی) او د حاجي عبيدالله مشهور په حاجي بيدک توخي، د وزير يارمحمد خان الکوزي او د يحيی خان پوپلزي لنډې شجرې هم راغلي دي.

په دغه لړ کي علامه بابا رحمة الله عليه ددې خطي نسخې په ۳۰۴ مخ کي ليکلي دي:

دا فرمان د غلام حیدر محمدزي ښخه و ما (رشاد) د ۱۳۵۱ هـ ش کال د حوت په ۲۱ نقل کړ. د فرمان متن په ۳۰۵، ۳۰۶ او ۳۰۷ مخونو کي راغلی دی.



**کونت گوبیو (۱۸۱۹ ـ ۱۸۸۲ع) :**

د عشاق کندهار (Les Amanto de Kandahar) په نامه په فرانسوي ژبه یو کتاب لیکلی دی. دی دیپلومات، ادیب او رومان نویس و. دا کتاب محمد صدر هاشمي په پارسي ژبه ژباړلی دی او په ۱۳۲۴ هـ ش کال په اصفهان کي چاپ سوی دی.



**قرانوین :**

په روضة الجنات کي لیکلي دي : په ٦٣٦ هـ ق قرانوین د مغلو له خوا د گرمسیر او افغانستان واکمن ؤ، ځکه چي هرات په .... هـ . ق کال مغلو سپیره کړی ؤ، د هرات خلکو د کرهني آلات له پښتونخوا ښخه یووړل او په هرات کي یې کښت و کر وکړ.

په غیاث اللغات کي نوئین پروزن موئین : ترکان سلاطین را به این نام خطاب میکنند. په کشف المويد کي : نوئین د شهزاده او امیر اعظم په معنی راغلی دی . نوئین Noyin مغلي کلمه ده په برهان قاطع کي کښلي دي : ترکان خپل پاچهان په دغه نامه بولي .

په رشیدي ۴۳۰/۲ مخ کي کښلي دي : مغلان پاچا ( شهزاده – امیر زاده) ته نوئین وایي. قرانوئین تور پاچا ته ویل کیږي.

په هرات کي د کرتا د واکمنۍ په اړه د تاريخ اسلام د دريم ټوک په حواله عزالدين عمرکرت د سلطان غياث الدين غوري له خوا د هرات والي و او د وزارت رتبه يې درلوده او د هغه د اولادې په اړه يادښتونه سته.



د ذوالنون ارغون او د صفويانو پاچهانو شجرې د ډېرو تفصلاتو سره.



د بابر او همايون مايني او اولادونه او د بابر د اولادې پاچهي.



ابوالبی ازبک بهادرخان د جهانګير په وختو کي څوکاله د کندهار والي ؤ، تر ده وروسته خواجه عبدالعزيز خان نقشبند د کندهار والي سو. ( ذخيرة الخوانين دوهم ټوک، ۳۱۵ مخ ).



د ۱۰۲۶ هـ. ق په پيښو کي د تزک جهانګيري د ۲۵۳ مخ په حواله په کندهار کي د موږکانو ډېرېدل او د کرهني محصولاتو ته د هغو د تاوان په اړه يو لنډ يادښت سته.



د اورنگزیب عالمگیر، دوهم عالمگیر، د غلام محمد معصوم مجددي او میر واعظ کابلي شجرې او تفصلات یې.



د ټیپو سلطان د سفیرانو راتګ کندهار ته : په .... هـ . ق کال د ټیپو سلطان له خوا یو سیاسي هیئات ( میر رضا علي او میر حبیب الله ) د بحر له لارې کندهار ته راغلل له کندهاره یې یوه عریضه کابل ته د زمانشاه حضور ته ولېږله چې دوی ته د کابل د ورتګ اجازه ورکړله سي.
دوی پنځه لکه روپۍ او نور سوغاتونه د ټیپو سلطان له خوا زمانشاه ته راوړي وې، دوی له زمانشاه څخه غوښتل چې ټیپو سلطان ته شل زره اسان ورولېږي او ورپسي په خپله هم پر هندوستان برید وکړي دغو سفیرانو دا هم تعهد کاوه چې د حملې په وخت کي به ټیپو سلطان درې کروړه روپۍ او د شلو زرو اسانو مصارف زمان شاه ته ورکوي.



د ۱۳۶۴ ، ۱۳۶۵، ۱۳۶۶ او حل و عقد په جرګو کي د کندهار د وکیلانو په اړه یادابښتونه

د کابل د ۱۳۵۷ کال تر اړودوړ وروسته په سوسیالیستي دولت کي د کندهار ځیني خانان او ملایان چې کابل ته بوتلل سول او هلته و وژل سول.



د دوهمي سقاوي پای، د ډاکټر نجیب الله وژونکی او د طالبانو په اړه یاداښتونه.



پر کشمیر باندي د ظفرخان احسن د واکمنۍ په اړه یاداښت.



د لارنس لاکهارت د اثر پارسي ژباړي ( انقراض سلسله صفویه ) په حواله د کروزینسکي د ژوند په اړه یاداښت.



د مصطفی افندي په اړه یاداښت



د MayerAshe تالیف Personal Records of Kandahar په ۱۸۸۱ ع کال په کندهار کي چاپ سوی دی.

**د کشیش رونال رساله :**

په دې رساله کي له ۱۷۲۲ څخه تر ۱۷۲۵ پوري د ایران د دربار پیښي او د سلطان حسین صفوي د خلعي نکل لیکلی دی، دا رساله په ۱۲۲۷ کال چاپ سوې ده.

دلوی آندرې دولامان کلراک تالیف ( د ایران تاریخ ) لومړی ټوک په ۱۷۴۹ م کال خپور سو ، دوهم ټوک یې د ده تر مرګ څو میاشتي وروسته چاپ کړه سو.



ګلزار قندهار د شیخ حسن جان قندهاري تالیف د نجف چاپ دی .



# د سړیو نومونه

# د ځایو نومونه

# ماخذونه


۱. آداب الحرب والشجاعه.

۲. آريانا مجله، ۱۳۶۷/۴.

۳. احوال و آثار ميرزا عبدالقادر بيدل.

۴. احياء الملوك، د ملک شاه حسين سيستاني کياني ليکنه.

۵. اسناد آرشيف ملي افغانستان.

۶. افغانستان د سوبي لويه لار.

۷. افغانستان در پنج قرن اخير، د مير محمد صديق فرهنگ ليکنه.

۸. افغانستان در عصر گورکاني هند، د علامه عبدالحي حبيبي ليکنه.

۹. افغانستان در مسير تاريخ، د غلام محمد غبار ليکنه، د ۱۳۴۶ ل کال چاپ.

۱۰. اقبال نامه، جهانگيري.

۱۱. اکبرنامه. د حميد کشميري ليکنه.

۱۲. اميد مجله، د ۱۳۷۱ ل کال د اسد سنبلې گنه.

۱۳. انگلستان د افغانستان پر ضد.

۱۴. اولس مجله، د ۱۹۶۳ ع کال د اکتوبر نومبر گنه.

۱۵. ايل ها چادرنشينان و طوايف عشايري ايران.

۱۶. بابر نامه، د ظهير الدين محمد بابر ليکنه.

۱۷. بررسي هاى تاريخي مجله، ۴۸ گنه.

۱۸. بصيرتنامه.

۱۹. بيان واقع، د حاجي عبدالکريم کشميري ليکنه.

۲۰. بين الاقوامي سياست و معلومات (۲)، د اسرار احمد آزاد ليکنه.

۲۱. پادشاهان متاخر، د يعقوب عليخان خافي ليکنه.

۲۲. پته خزانه.

۲۳. پژوهشي در تاريخ هزاره.

۲۴. پښتانه ليکوال.

۲۵. پښتو او پښتانه، د سيال کاکړ ليکنه.

۲۶. پنجاه مقاله.
۲۷. تاج التواریخ.
۲۸. تاریخ آل کرت.
۲۹. تاریخ افغانستان، د علي قلي خان لیکنه.
۳۰. تاریخ افغانستان، د کلنل میلسن لیکنه.
۳۱. تاریخ انقلاب ایران، د کروزینسکي لیکنه.
۳۲. تاریخ بلوچستان، د اخوند محمد صدیق لیکنه.
۳۳. تاریخ بلوچستان. د گل خان نصیر بلوڅ لیکنه.
۳۴. تاریخ جهانکشای جویني.
۳۵. تاریخ جهانکشای نادري. د میرزا مهدي استر آبادي لیکنه.
۳۶. تاریخ حاجي محمد عارف کندهاري.
۳۷. تاریخ خرقه شریفه.
۳۸. تاریخ خورشید جهان، د شیر محمد خان گنداپور لیکنه.
۳۹. تاریخ سلاطین افاغنه.
۴۰. تاریخ سلطاني.
۴۱. تاریخ سنده . د سید میر معصوم بهکري کندهاري لیکنه.
۴۲. تاریخ سیاسي افغانستان، د مهدي فرخ لیکنه. په ۱۳۱۴ ل کال په ایران کي چاپ.
۴۳. تاریخ سیاسي ایران.
۴۴. تاریخ عالم آرای عباسي.
۴۵. تاریخ فرشته، د محمد قاسم هندوشاه استرآبادي لیکنه.
۴۶. تاریخ کشمیر. د خواجه محمد اعظم لیکنه.
۴۷. تاریخ گزیده، د حمدالله مستوفي لیکنه.
۴۸. تاریخ مختصر افغانستان. د علامه عبدالحي حبیبي لیکنه. په ۱۳۴۶-۱۳۴۹ ل کال په کابل کي چاپ.
۴۹. تاریخ مرصع.
۵۰. تاریخ معصومي.
۵۱. تاریخ نامهء هرات، د محمد علي بن ابي طالب لیکنه. په ۱۳۳۲ ل کال په اصفهان کي چاپ.
۵۲. تاریخ هند، د دولافوز لیکنه.

۵۳. تاریخ هندوستان. د اې مارسدن لیکنه.
۵۴. تازه نوای معارک. د منشي عطامحمد شکارپوري لیکنه.
۵۵. تتمة البیان في التاریخ الافغان. د سید جمال الدین افغاني لیکنه. د مولانا خوګیاني ژباړه، په ۱۳۱۸ ل کال په کابل کې چاپ.
۵۶. تحفة الکرام.
۵۷. تحفهء سامي. د سام میرزا لیکنه، د ۹۵۷ هـ ق لیکنه.
۵۸. تذکرة الشعراء کشمیر.
۵۹. تذکرة الشعراء. د دولت شاه سمرقندي لیکنه. د ۸۹۲ هـ ق لیکنه.
۶۰. تذکرهء بیات. د بایزید بیات لیکنه.
۶۱. تذکرهء علمای هند.
۶۲. تذکرهء همایون و اکبر.
۶۳. تزک جهانګیري. د جهانګیر لیکنه. د میرزا محمد هادي راټولونه. د نولکشور چاپ.
۶۴. تلفیق الاخبار.
۶۵. تواریخ بلوچستان.
۶۶. جنبش مشروطیت در افغانستان. د علامه عبدالحي حبیبي لیکنه.
۶۷. جنګنامه. د نعمت خان عالي لیکنه.
۶۸. حالات محمد شاه پادشاه غازي.
۶۹. حبیب السیر.
۷۰. حیات افغاني. د دپټي حیات خان افغاني لیکنه.
۷۱. خوشحال خان خټک.
۷۲. د افغانستان پیښلیک. د علامه عبدالحي حبیبي لیکنه. په ۱۳۵۲ ل کال په کابل کې چاپ.
۷۳. د پښتنو تاریخ. د قاضي عطاء الله خان لیکنه. په ۱۹۴۷ ع کال په پېښور کې چاپ.
۷۴. د پیر روښان حالنامه. پخپله د پیر صاحب لیکنه.
۷۵. د خسرو بن محمد بني اردلان تاریخ. د خسرو خان لیکنه.
۷۶. د خواجه اعظم تاریخ.
۷۷. د کندهار زیارتونه. د علامه رشاد بابا ناچاپ اثر.
۷۸. د کندهار فتح نامه.

۷۹. د هندوستان تاریخ، د ذکاو الله خان لیکنه.
۸۰. داستان ترکتازان هند.
۸۱. دره، نادري.
۸۲. دسایس و جنایات روس در افغانستان.
۸۳. دست پنهان سیاست انگلیس در ایران.
۸۴. دولت درانیه.
۸۵. ذخیرة الخوانین، د شیخ فرید بهکري لیکنه.
۸۶. راجپوت مغول زن و شوهر.
۸۷. رجال و رویداد های تاریخي.
۸۸. رساله، افغانیه. د میرزا سلیمان لیکنه.
۸۹. رستم التواریخ. د محمد هاشم رستم الحکما، لیکنه. په ۱۳۰۲ ل کال په تهران کي چاپ.
۹۰. روضة السلاطین. د فخري هروي لیکنه.
۹۱. روضة الصفا. د میر محمد خاوند شاه (میرخواند) لیکنه. د ۹۳۰ هـ ق چاپ.
۹۲. روضات الجنات في اوصاف المدینة الهرات. د معین الدین محمد اسفزاري لیکنه. (د ۸۹۷ هـ ق لیکنه).
۹۳. زما ژوند او جدو جهد. د خان عبدالغفار خان لیکنه.
۹۴. زمان شاه.
۹۵. زیب تاریخها (روسي ژباړه).
۹۶. سالنامه، نیرنگ خیال.
۹۷. سخن مجله. د ۱۳۴۶ ل کال د ثور د میاشتي گنه.
۹۸. سراج التواریخ. د فیض محمد هزاره لیکنه. په ۱۲۹۲ ل کال په کابل کي چاپ.
۹۹. سقوط اصفهان. د پتروس سرکس کیلانتز لیکنه.
۱۰۰. سید احمد شهید.
۱۰۱. سیر المتاخرین. د سید غلام حسین طباطبایي لیکنه. په ۱۸۹۷ ع کال کي په نولکشور لکهنو کي چاپ.
۱۰۲. شاهان اوده کي کتب خانې.
۱۰۳. شرکت هند شرقي.
۱۰۴. شوکت افغاني. د عبدالحکیم خان لودي لیکنه.

۱۰۵. صحیفهء زرین، د پراگ نراین بهارگو لیکنه.
۱۰۶. صولت افغاني، د زردار خان ناغر لیکنه.
۱۰۷. طبقات اکبري، د نظام الدین بخشي لیکنه.
۱۰۸. عباس نامه، د میرزا وحید قزویني (۱۱۲۰ هـ ق مر) لیکنه.
۱۰۹. عبرتنامه.
۱۱۰. عروج بارکزائیها.
۱۱۱. عمل صالح.
۱۱۲. عین الوقایع.
۱۱۳. عیون التواریخ.
۱۱۴. غیاث اللغات. د محمد غیاث الدین رامپوري لیکنه، د نولکشور چاپ.
۱۱۵. فارسي اخبار و مراسلات.
۱۱۶. فرامین سلاطین.
۱۱۷. کابل مجله. ۳ کال.
۱۱۸. کابل مین ساتهه سال.
۱۱۹. گوربت مجله.
۱۲۰. گوهر مجله.
۱۲۱. کوته. د سلطان محمد خان پانی لیکنه.
۱۲۲. لودي پښتانه. پخپله د علامه رشاد بابا لیکنه، په ۱۳۳۶ ل کال چاپ.
۱۲۳. مآثر رحیمي.
۱۲۴. مآثر عالمگیري (اردو ژباړه).
۱۲۵. مآثرالامراء . د صمصام الدوله شهنواز خان لیکنه. په ۱۸۹۱ ع کال په کلکته کي چاپ.
۱۲۶. مجمع التواریخ. د میرزا محمد خلیل صفوي لیکنه.
۱۲۷. محمد ظهیر الدین بابر. د علامه عبدالحي حبیبي لیکنه.
۱۲۸. مخزن افغاني.
۱۲۹. مستشرقین، د علامه رشاد بابا ناچاپ اثر.
۱۳۰. مصطلحات الشعراء.
۱۳۱. مغلون کي ملک الشعراء .
۱۳۲. مفتاح التواریخ .

۱۳۳. مکتوبات سعدالله خان.
۱۳۴. منتخب اللباب. محمد خافي خان.
۱۳۵. مهدي فرخ.
۱۳۶. میخانه. د عبدالنبي لیکنه.
۱۳۷. ناصري روضة الصفا. د رضا قلي هدایت لیکنه.
۱۳۸. نامهء خسروان.
۱۳۹. نطق هاى اعلیحضرت غازي.
۱۴۰. هستري آف اورنگزیب.
۱۴۱. همایون نامه. د گل بدن بیگمي لیکنه.
۱۴۲. هنر و مردم مجله.
۱۴۳. هوتکیان. د عبدالروف بېنوا لیکنه.
۱۴۴. واقعات قایم خاني.
۱۴۵. یغما مجله. ۳۲۲ گنه.
۱۴۶. یغما مجله. د ۱۳۵۵ ل کال لومړی گنه.
۱۴۷. Afghanistan and British India.
۱۴۸. An Oreintal Biographical Dictionary.
۱۴۹. Dictionary of Indian Biography . د سي. اي. بَکلند لیکنه.
۱۵۰. Fall of the Maghul Impire. د جادوناته سرکار لیکنه.
۱۵۱. History of Mianji. د کروزینسکي لیکنه.
۱۵۲. The Persian Cromwell.

# Contents in Summary

## Part One



## Part Two

With an efforts to please and gratify the spirit of Professor Academician Abdul Shakoor Rashad (May God have mercy on him). I would like to express my heartiest appreciations, gratitude and admirations to all those who tirelessly and shoulder to shoulder made remarkable efforts and contributions and wholeheartedly participated in all stages of book preparations including sharing the charges of the publishing the book.

Our special thanks to Mohd Masoom Hotak, Afghan Association for Culture Development in Germany, and its director Mr. Zarin Anzor.

**Sincerely yours**

**Allama Rashad Academy**
**Researcher Shershah Rashad**
**August 2007, Kandahar**

task Mr. Masoom Hotak had undertaken. The soonest we got deep into the book, the easiest were able to uncover some of the errors and short falls and were able to make significant inroads toward the modification of the relative parts.

However, during the course of comparing original script versus photocopy notes, some parts which were not copied properly were scrutinized and in spite of reflecting the signs (?) or (. . .) additions wherever required were added accordingly. One thing of relative importance to mention here is that since significant modification were affected: taking into consideration its technicality, we were required to recompose the book.

Notwithstanding, the discussion of the book doesn`t cover some of the notes and comments indicated by writer, and even Mr. Hotak have not reflected in the book, but since Professor Rashad researched and analyzed more than 245 sources for the sake of it, it might have some connection with subject matter in his perspective. Therefore, in order for us to have safeguard and introduced the various notes, the brief notes are reflected in details and while the long detailed notes are reflected in summary at the end of the second volume under the name of miscellaneous comments.

In addition, in order for us to have achieved and met some milestones of Professor Academician Abdul Shakoor Rashad (May God have mercy on him), the names of people involved in the book publications, names of places, content areas and executives summary has been prepared in English as well.

## Preface & Acknowledgements

While many of the unpublished literary works of the Professor Academician Abdul Shakoor Rashad (May God have mercy on him) are under the process of publications, meanwhile, Allama Rashad academy and the dedicated admirers of Professor Rashad anticipates and tirelessly employ significant efforts on publishing many of his remarkable literary works with particular focus on avoiding any fit falls and errors that might appear.

In order for us to achieve the purpose aimed, last year we delivered one of his profound researched based historical book "The Historical Notes of Kandahar" (Da Kandahar Yadashtoona) a handwritten copy (manuscript) to Mr. Mohd Masoom Hotak in summer 2005, after his tireless and dedicated efforts, the book geared up for publication by the end of the year 2005.

Last year in March/April 2006, we received the book in Kandahar, since the script of the book was prepared based on the photocopy notes, it had several parts which due to photocopy were missed and even not copied properly and thus unreadable at all, therefore, we were required to compare the book with its original script.

After publishing the five books of Allama Baba, the Academy of Allama Rashad Baba in May 2007 consigned me Shershah Rashad and Hamid Mutawazee to compare this book with the massive 1400-pages original script (the manuscript). At the begging of the work, we could feel and weight the extent of how difficult and challenging

# NOTES ON
# KANDAHAR

(First & Second Editions)


**Author:**

Professor Academician
Abdul Shakoor Rashad

**Editor:**

Mohammad Masoom Hotak






Allama Rashad Academy
2007 Kandahar



# NOTES ON KANDAHAR




**Author:**

**Professor**
**Abdul Shakoor Rashad**






د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه _ جرمني
VEREIN ZUR FORDERUNG DER
AFGHANISCHEN KULTUR E.V
د خپرونو لړ (۹۴) او (۹۵)

درنگیانه (سیستان) هم د ده تر اداري لاندي و. دمیتریوس گدروزیا (بلوچستان) او سنده هم ونیول او په اراکوزیا کې یې یو ښار د (دمیتریاس) په نامه جوړ کړ. دی بلخ ته ولاړ او د اراکوزیا حکومت یې خپل ورور اپولودوت ته وسپاره. ایوتیدم چې مړ سو، پاچهي یې دمیتریوس ته پاته سوه. دمیتریوس د هندوستان ځیني سیمي هم پخپله پاچهي پوري ونښلولې او اپولودت یې د هغو سیمو حاکم وټاکه.

دمیتریوس چې د ټکسیلا تر نیولو وروسته بلخ ته راستون سو، خپل دریم زوی پانتالیون یې د اراکوزیا او درنگیانې (سیستان) والي وټاکه.

د دمیتریوس په پاچهي کې د ده دوهم زوی پنتسالیون په اراکوزیا او سیستان کې د پاچا وکیل و، بیا یې د پاروپامیزاد (د هندوکش سیمي) هم ور وسپارلې. دمیتریوس تر دغو اجراآتو وروسته ټکسیلا ته لا خپلو لښکرو سره ولاړ. په باختر کې د دمیتریوس له غیاب څخه ایوکراتید جنرال گټه واخیستله او په ۱۷۵ ق م کې یې خپله پاچهي اعلان کړه. په دغه وخت کې دمیتریوس په سنده او ختیځ هندوستان کې تر پاټلي پوترا (اوسنی پټنې) پوري په جنگو او سوبو اخته و. دمیتریوس چې د خپل پایتخت په حال خبر سو، مخ یې راوگرزاوه. څو جنگونه یې له ایوکراتید سره وکړه خو بری یې په برخه نه سو او په ۱۶۹ ق م کې ومړ[۷]. ایوکراتید په باختر او آریانا کې خپله پاچهي جوړه کړله او د دمیتریوس کورنۍ او جنرالانو د هندوستان پر نیولو ملکو پاچهي کوله او پایتخت یې سگالا (اوسنی سیالکوټ) و. دمیتریوس او کورنۍ چې یې د باختر د پاچهۍ د بیا نیولو له پاره جنگونه کول، لوی جنرال یې میناندر نومېده، په ۱۶۸ ق م کې دمیتریوس میناندر جنرال ته حکم وکړ، چې په پاټلي پوترا کې خپل نظامي فعالیتونه پرېږدي

---

[۷] د افغانستان پخواني تاریخ، ۵۹/۲ مخ.